# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

ملا متعلم عصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد الحمید الایوبی
القندھاری السلیمان خیلی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

الناشر
مکتبة القراءة والتجوید
کانسی روڈ شال الدین کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنی او په افغاني تاريخ کښې بې ساری په زرګونو
جديدو مسئلو باندې مشتمل




# تفسير ايوبي حنفي

اِقْتَرَبَ ۱۷ — قَدْ اَفْلَحَ ۱۸

تاليف او تصنيف

د علامة العصر ابو الفضل شيخ التفسير والحديث فقيه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبيد الله الايوبي

الحنفي النقشبندي السليمانخيلي القندهاري

مكتبة القراءة والتجويد

کاسي روډ کوټه بلوچستان

# د کتاب پیژندنه

د کتاب نوم.................. تفسیر ایوبي پښتو دوولسم ټوک
مؤلف.................. الحاج مولنا محمد عبید الله الایوبي الکندهاري
السلیمانخیلي الحنفي حفظه الله تعالی بفضله الوهبي
کمپوز.................. حبیب الحق حقاني
تایپ.................. حقاني کمپیوټر (اداره)
نشر کوونکې اداره.............. مکتبة القراء ت والتجوید کاسي روډ کوټه
د چاپ ځای.................. لاهور پاکستان

# یو نظر دې خوا

هیڅ یو مسلمان هم په قرآن مجید، احادیثو یا د فقې په کتابو کې په قصده سره غلطي نه کوي. زمونږ اداره تر خپله وسه پورې د کتابو تر لیکلو وروسته تصحیح نه زیاته پاملرنه کوي. چې له دې کبله زمونږ کتابونه معیاري دي. خو بیا هم بنده بنده دی. ونه یو ځای څه نا څه غلطي په املاء کې یا په یوه جمله کې ځینې صادره سي. نو زمونږ له تاسو څخه دا خواست دی چې که ستاسي تر نظر دا سې غلطي تیره سي لطفاً زمونږ سره تماس ونیسئ. تر څو د کتاب د دوهم وار په چاپ کې د هغې تیروتني اصلاح وسي.

په درناوی

ستاسي ورور شمس الحق شمس

بسم الله الرحمن الرحيم

## جميع الحقوق محفوظة



الطبعة الاولى

۱۴۳۰ هجري – ۲۰۰۹ ميلادي

مكتبة القراءة والتجويد

شارع كاسي كوئٹه - پاكستان

رقم الهاتف ۰۳۰۰۳۸۸۵۵۳۵

MAKTABTUL-QIRRAT
WALTAJWEED

ISBN 2-7451-3140-9




الحمد لله وكفى والصلوة والسلام على خير الورى

**وبعد:** دا چي تفسير ايوبي دوولسم ټوک چي پکښي اوولسمه او اتلسمه) سپاره او د هغه تفسير موجود دی. هيله لرو چي د کتاب الله د فهم او د تشريح مسائلو تنده به مو په عاله سي.

دا د خوشحالی ځای دی چي د پښتو په تاريخ کښي پر ترجمه، مسائلو او نحوي تراکيبو باندي مشتمل تفسير د تصور له اسمانه د جود په جامه کښي را ووت.

**دا حقيقت دی!**

که څوک دا ووايي چي څه رنګه دا د پښتو اولنی تفسير دی، سره د دي چي له دې څخه مخکي هم تفسيرونه په زياته پيمانه کښي موجود دي؟ نو ځواب دا دی چي هغه ټول تفسيرونه کوم چي له تفسير ايوبي څخه مخکي په پښتو کښي موجود دي هغه يا خو له عربي، يا له اردو، يا له فارسي څخه او يا هم له نورو ژبو څخه ژباړل سوي دي. تر کومه حده چي زموږ معلومات دي، دا ټول تفسيرونه له نورو ژبو څخه ژباړل سوي دي، خو يوازي او يوازي تفسير ايوبي ته دا

ویاړ وړ په برخه دي چي د پښتو په تاریخ کښي اولنی
تفسیر دی، چي تصنیف او تالیف او همدا رنګه اصل متن
یې په پښتو دی، که څېري تاریخ د عادلانو مؤرخینو په
لاس ولیکل سو، نو د حضرت علامه ایوبي او همدا رنګه دده د تصنیفاتو
او تالیفاتو او نورو خدمتونو به هرو مرو ذکر پکښي وي.

**او دا هم تر لمر روښانه ده!**

چي د عمر په اخیرنیو شپېو کښي دا ویاړ و حضرت علامه فقیه الوقت
و مفسر الزمان مولانا محمد عبید الله الایوبي القندهاري ته ورپه برخه کړی چي دده د
علمي شجر او پوهي څخه هیڅ یو معاند او معاصر هم انکار نه سي کولای.
الله تعالی دي ورته نبي شپې ورپه برخه کړي، خداوند پاک دي نور هم د
مسلمانانو د خدمت کولو توفیق ورپه برخه کړي امین.
عمر دي زیات، قلم دي ګړندی او بریاوي دي مل وي، دده یو ادنی شاګرد

**فضل الحق حقاني**

باني مکتبة القرائت والتجوید

خو دا هم د الله ﷻ یو لوی فضل او احسان دی چي هر کله چي د کمپیوټر دنیا نه وه،
نو د حضرت ایوبي کتابونه مور خپل د لاس په خط وچاپ ته وسپارل چي ژوندي
مثالونه یې قدوري، نور الایضاح، نور الظلم، ابو المنتهٰی، شروط الصلوة، شهادة
الحسنین او داسي نور دي، او کله چي کمپیوټر چاپ ریال ته راغلی، نو بیا مو د حضرت
کتابونه په کمپیوټري لیکنه باندي وچاپ ته وسپارل، خو کېدای سي چي دا هم د
حضرت ایوبي اخلاص او للهیت وي ورنه ........ د افغانستان یو عالم هم په دومره
تصنیفاتو او کتابونو، حواشیو وتفاسیرو باندي بریالی سوی نه دی لکه څرنګه چي دا
څرګند او واضح حقیقت دی، نو له دې کبله د ټولو مسلمانانو څخه د مکتبة القرائت
والتجوید د بنه خدمتونو لپاره د دعا، محتاجه او کار کوونکو ته یې د اسلام د خدمت
او چوپړ لپاره د توفیق غوښتونکي یو والسلام

**اداره مکتبة القرائت والتجوید**

کاسي روډ کوټه بلوچستان

# سُوْرَةُ الْأَنْبِيَاءِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ وَاثْنَتَا عَشْرَةَ اٰيَةً وَسَبْعُ رُكُوْعَاتٍ

## بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

الحمد لله رب العالمين والصلوة والسلام على سيد الانبياء والمرسلين وعلى اٰله وصحبه واتباعه اجمعين.

ابتداء تفسير هذا الجزء (۱۷) وهذه السورة يوم الاربعاء، وقت طلوع الشمس ساعة (۸) في حجرة الداري (۲۹) ربيع الاول سنه (۱۴۳۰) هجري قمري، اللهم وفقني لتفسير هذا الجزء ولتفسير جميع اجزاء القرآن الكريم بالصحة والسلامة والسداد، واجعله خيرًا باقيًا لهذا العبد الفقير العاصي الى يوم التناد، انك يا الله على كل شئ قدير وبالاجابة جدير.... بيت:

حاشاك ان تقنط عاصيًا ......... الفضل اجزل والمواهب اوسع

## اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ

نژدې سو خلکو ته حساب د دوی، يعني وقت حسابهم وهو يوم القيامة.

**درويش وايي:** چي مراد له (ناس) څخه مشركان د اهل مكة دي چي منكر له بعث بعد الموت څخه دي، روح البيان او مظهري وايي چي لام لپاره د تعريف الجنس دی يعني مسلمانان كافران دواړه ځندني مراد دي لكن اولی دا ده چي مراد ځندي كافران دي عمومًا بدليل ما بعده. او امام قرطبي او زمخشري رح وايي چي مراد مطلق مشركين دي كه اهل مكه وي او كه نور.

**پوښتنه:** د دې سورت له نازلېدلو څخه تر اوسه يعني سنه (۱۴۳۰) ډېره موده كېږي قيامت نه دی راغلی والله اعلم چي څو كاله به نور تېر سي، نو قيامت چي راځي نو دا څرنګه قريب دی؟

**ځواب:** قرب يې نظر و ماضٰی ته دی من عمر الدنيا، او يا ځواب دا دی چي هر راتلونكي شی نژدې دی، او هر شی چي تېر سو هغه لېرې دی كما قيل (ما اقرب ما هو آت وما ابعد ما هو فات)

**پوښتنه:** څه حكمت دی د خدای جل جلاله چي د قيامت ورځ له نفخه ثاني څخه

شروع کیږي په خپل علم کي پټه ساتلې ده چي نه مقربي ملکي په خبري دي او نه نبي مرسل په خبر دی؟

**جواب:** حکمت یې دادی چي خلک یې هر وخت د راتلو په حذر وي الی غیر ذالک من الحکم والمصالح فافهم. او په حدیث نبوي کي راغلي دي چي (اما بقائکم فیما سلف قبلکم من الامم کما بین صلوة العصر الی غروب الشمس.

**فائده:** بعض مفسرین وایي چي لام د (للناس) لپاره د تاکید د اضافت دی.

## وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ مُّعْرِضُونَ ①

او دوی په غفلت کي دي له حساب څخه. ولي چي دوی په دنیا او په شهواتو کي د دنیا غرق دي او نه پوهېږي چي په ورځ د حساب به زموږ سره څه معامله خدای ﷻ وکړي. او دوی اعراض کونکي دي له دې څخه چي په حساب د یوم القیامة دي فکر ووهي او ځان دي ورته اماده کړي بالایمان والطاعة. قال سعدي رح:

کسی را که پندار در سر بود ........ مپندار هرگز که حق بشنود
زعلمش ملال آید از وعظ تنگ ........ شقائق بباران نروید زسنگ

**دروش وایي:** چي شقائق گل لاله ته وایي چي سره گلان دي او د پسرلي د باران په وخت کي په دښتو کي پیدا کیږي لکن په ډبره کي نه پیدا کېږي یعني وعظ لکه د پسرلي باران دی او ایمان او قبول د اسلام لکه شقائق دی او زړونه د کفارو لکه ډبري دي. نو باران د وعظ د دوی په زړونو کي گل لاله د ایمان نسي پیدا کولای.

**پوه سه:** چي تنکیر د (غفلة) لپاره د تعظیم دی ای في غفلة عظیمة تامة.

## مَا يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ مِّن رَّبِّهِم مُّحْدَثٍ

دوی ته نه راځي یو ذکر. چي مراد ځني آیات قرآنیه دي یعني دد لپاره چي دوی له خوب څخه د جهالت او غفلت بیدار کړي.

**پوه سه:** چي کلمه د (من) زائده ده لپاره د استغراق د نفي ده. نو د ذکر لفظ لفظًا مجرور دی او محلاً مرفوع دی فاعل د (یاءتیهم) دی (من ربهم) له جانبه څخه د رب د دوی. دا جار او مجرور یا صفت دی د ذکر په حذف سره د متعلق ای کائنة من ربهم او یا ظرف لغو دی متعلق په یاءتیهم سره. والتقدیر الثاني اولی

كما لايخفى فافهم (محدث) صفت د ذكر دى يعني دا ذكر حادث يعني تنزيل يې او د دوى تر غوږو پورې رسول چې پند ښني واخلي، نو دا سوال نه وارديږي چې په عقائدو كې وايي چې قرآن قديم دى، وجه عدم الورود چې په هغه عقائدو كې مراد كلام نفسي دى چې صفت د خداى ﷻ دى. والمراد ههنا الكلام اللفظي المسموع بالاذنين والمقرو على الانس.

**مسئله**: كه څوک كلام نفسي حادث ويولي هغه كافر دى بالاتفاق. او كه كلام لفظي څوک قديم ويولي هغه جاهل مطلق دى، علماء وايي چې سړى دې دا سې وايي چې قرآن صفة الله قديم دا سې دې نه وايي چې قرآن قديم لئلا يذهب الوهم الى قدم الكلام اللفظي فافهم.

إِلَّا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ يَلْعَبُونَ ۝

مگر په غوږو خو يې اوري او دوى پسخند په وهي له جهته څخه د تناهي د غفلت او انكار د دوى وفرط الاعراض عنه او له عاقبت څخه د استهزاء بالقرآن دوى غافله دي.

**مسئله**: بعض جاهل طالبان قرآني آيتونه د مسخرو او خندا لپاره وايي، نو ويونكى يې هم كافر دى او چې پر خاندي هغه تو له كافران دي مثلاً نعوذ بالله من ذالک يو طالب د بل طالب څخه پوښتنه وكړي چې د پښې غول پاک دي؟ هغه بل دا آيت قرآني ورته ووايي (في شغل فكهون) نور پر خاندي.

**پوه سه**: چې جمله د (وهم يلعبون) حال ده له فاعل څخه د استمعوا.

لَاهِيَةً قُلُوبُهُمْ ۗ وَأَسَرُّوا النَّجْوَى ۚ

په لهو او غفلت اخته وي زړونه د دوى يعني په ما استمعوا كې فكر نه وهي چې دا كلام البشر دى او كه كلام الله المنزل على خير البشر دى، دا بل حال دى.

**فائده**: استثنا، حال دى له مفعول څخه د يا تيهم. والتقدير ما يا تيهم من ذكر في حال من الاحوال الا حال استماعهم جامعين بين الاستهزاء به والتلهى والذهول عن التفكر فيه كذا قال المظهري رح. مفسرين وايي چې قلب لاهي هغه دى چې مشغول وي په امورو سره د دنيا او غافل وي له احوال څخه د عقبى.

**پوه سه**: چي (نجوىٰ) په اصل کي مصدر دى (راز گفتن)۔

**پوښتنه**: د نجوىٰ معنى خو پټې خبرې کول دي، نو د اسروا څه فائده ده؟

**ځواب**: مقصود مبالغه ده په پټوالي کي د راز۔

## اَلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

هغه کسان چي ظالمان دي په سبب د کفر او عصيان۔

**سوال**: يو فعل لره خو دوه فاعله نه وي بېله عطفه په دې آيت کي، نو په اسروا کي ضمير د جمع سته هغه يې فاعل دى، او الذين ظلموا يې هم فاعل دى؟

والمشهور في الجواب چي واو د اسروا فاعل دى او الذين ظلموا يې بدل دى وفائدة الاعلان الا فلان بظلمهم فيما اسروا ومثله اكلوني البراغيث، وصاحوا اهل الدار كما في نفحة اليمن من كتب اللغة العربية، او يا الذين ظلموا خبر د متدا، محذوفي دى، والتقدير هم الذين، والجواب المشهور مذهب المبرد، او ابن عطيه رحمه الله وايي چي د سيبويه هم دغه مذهب دى. او ابو عبيده او اخفش رحمه الله وايي چي فاعل د اسروا موصول دى او واو د اسروا حرف دال پر جمعيت دى لکه واو د قائمون او تاء د قامت كذا في روح المعاني۔

**پوه سه**: چي دا وروسته جمله استيناف بياني دى كانه قيل فما قالوا في نجواهم فقيل قالوا.

## هَلْ هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ

(هل هذا) كلمه د هل استفهام انكاري ده او هذا اشاره و عليه الصلوة والسلام ته ده يعني نه دى محمد ﷺ مگر نه انسان دى مثل ستاسي يعني غوښي لري ويني لري او خوړک کوي او اوبه څښي و كل مايحتاج اليه البشر او يو وخت به مري لکه نور بشر، نو دى څرنگه وايي چي د خداى رسول يم.

**درويش وايي**: چي د دوى لعنهم الله حجت ؤ پر نفي د رسالت د عليه الصلوة والسلام څخه د دوى زعم باطل دا ؤ چي رسول بايد ملكه وي دوى دا زعم باطل درلود چي رسول بايد له جنس څخه د مرسل وي او ملائكه د دوى بنات الله بللې چي مرسل په صيغه د اسم فاعل چي خداى هم جنس دى او دا ټولې باطل خبري دي

په تسویل د شیطان، او حق دادی چي رسول باید له جنسه د مرسل الیهم وي تاچي افاده او استفاده سره وکړای سي وهذا عادة الله ﷻ في جمیع الانبیاء والرسل چي رسول و انساناتو ته باید انسان وي، کاشکي د مکې کافرانو د تاریخ پاڼې د انبیاء والرسل کتلي وای چي یو وخت خدای ﷻ و بشر ته ملکه را استولې ده په رسالت سره؟ (فاسئلوا اهل الذکر ان کنتم لا تعلمون) چونکه پر دوی یعني مشرکان مکه باندي دا سوال به کېدی چي دا معجزات چي پر لاس د محمد ﷺ ښکاره کیږي دا نو څه شی دي؟ په جواب کي ددوی یې داسي وویل.

**افتاتون السحر وانتم تبصرون**

آیا تاسي متابعت کوئ د سحر، او تاسي په سترګو ورته ګورئ چي سحر دی.
والمراد انکم تعلمون ان ما اتی به محمد سحر. والجملة حال من فاعل تاتون.

**پوښته:** چي همزه لپاره د انکار دی او فاعطف ده پر محذوف او لفظ د سحر منصوب دی علی المفعولیة والتقدیر افتصدقونه في دعوی الرسالة فتاتون السحر. حاصل ددوی د کلام دادی چي رسول خونه دی او دده سره چي خوارق ملګري دي لکه قرآن چي اتیان یې په مثل سره څوک نسي کولای او یا شق القمر وغیرهما دی هغه ټوله سحر او جادو دی. یا السحر منصوب دی مفعول له او مفعول د تاتون محذوف دی والتقدیر افتاتون محمداً لاجل سحره.

**پوښتنه:** دوی څه دلیل درلودی چي دا خوارق سحر دی؟

**ځواب:** دلیل خو یې نه درلودی ولي چي قول باطل به څرنګه دلیل ولري نو مجبوراً دعوی د بداهت یې وکړه.

**پوښتنه:** دا نجولی دوی ولي په پټه سره کوله؟

**ځواب:** ددوی غرض مشوره وه چي سره وه یې کړي چي په څه ډول اسلام ونړوي او امر د نبوت د علیه الصلوة والسلام له منځه څخه یوسي چي علیه الصلوة والسلام په خبر نسي چي نباید چي دی زموږ د سازش پلان ونه سنجوي، قال الله تعالی في بیان امثال قولهم ههنا یریدون لیطفئوا نور الله (ای الاسلام) بافواههم والله متم نوره ولو کره الکافرون وکان کذالک یعني لم یحصل مرادهم من انهدام الاسلام بل کان ما اراد الله من اتمام نوره والله عزیز حکیم.

قٰلَ رَبِّيْ يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۖ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝

(قُل) ووايه ته يا محمد (ﷺ) چي زما خداى ﷻ خبر دى په قول د هر چا كه په اسمان كي وي او كه په مځكه كي وي وسوا. كان القائل الملائكة او الانس او الجن جهرًا كان او سرًا فلا فائدةً في اسرارهم النجوىٰ. او خداى ﷻ سميع د اقوالو ددوى او خبر دى په احوالو ددوى ماظهر منها ومابطن..... بيت:

برو علم يک زره پوشيده نيست ....... كه پنهان و ظاهر بنزدش يكى است

بَلْ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ

**پوه سه:** چي كلمه د بل اضراب دى د الله ﷻ في حكاية قولهم في شان الرسول عليه السلام بانه بشر لايصلح ان يكون رسولاً من الله كمامر الى حكايت قولهم في شان القرآن اضغاث احلام.

**پوه سه:** چي اضغاث جمع د ضغث ده بكسر الضاد چي عبارت دى د يوي قبضي ونبوو څخه چي وچ او لانده سره ګډ وي او احلام جمع د حلم ده بضم الحاء وسكون اللام رؤيا يعني خوب ته وايي وضم اللام لغة فيه ايضًا. نو د احلام معنى خوبونه دى كه حق او كه باطل. نو اضافت د اضغاث و احلام ته اضافت دى د خاص وعام. نو اضغاث احلام هغه ګډوډ خوبونه دي چي معبرين يې تعبير نسي كولاى د دوى لعنهم الله مراد دا وو چي قرآن من عند الله نه دى بلكي د محمد ګډوډ خوبونه دي.

**پوه سه:** چي رؤيا په عرف كي د عربو حق خوب ته وايي او حلم و منام باطل ته وايي كما قوله عليه الصلوة والسلام الرؤياء من الله والحلم من الشيطان.

بَلِ افْتَرٰىهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ ۚ

اضراب دى د كفارو له خوا من كون القرآن اباطيل چي په محمد خوب ليدل سوى ګډوډ الى افتراء چي قرآن په قصد محمد (ﷺ) د رواغ په خداى ﷻ پوري تړلي دي يعني په خوب يې هم نه دى ليدلى، ولي د خوب ليدل خو بي اختيار شى دى او افتراء قصدًا د رواغو ته وايي (بل هو شاعر) دويم اضراب دى د كفارو له خوا من كون القرآن كلام مفترى الى كونه شعرًا.

**پوه سه:** چې بغوي ^ واېي چې بعض کافرانو به قرآن اضغاث احلام یاله بعضو به فریه قصدي دروغ بولی او بعضو به کلام شعري باله.

**درویش وايي:** چې روح المعاني دا قولونه پر بعض کذا وبعض کذا لکه بغوي چې وویل نه دي ویلي بلکې هغه وايي چې دا ټوله قولونه مشرکانو د مکې کوله. دی وايي چې دا عادت د عاجزي دی له دلیل څخه چې مبهوت، مغلوب او معتوه یې بولي گاهي یوه خبره گاهي بله خبره او انتقال د فاسد وافسد ته کوي بلکې د افسد الافسد ته.

**سپانه فائده:** درویش وايي چې انجیر خوردن نه کار هر مرغیست چې یو مثل په فارسي ژبه کې دی. ددې خبرې د مشرکانو د مکې چې قرآن شعر دی او علیه الصلوة والسلام شاعر دی نعوذ بالله من مثل هذا القول تحقیق باید وکړل سي چې ددوی څه مراد ؤ؟ دا معنی د شعر چې موضوع د علم العروض دی چې کلام موزون مقفی یقصد به الوزن، والتقفیة مراد د موزون څخه دادی چې هر یو وزن عروضي چې (۱۶) بحر دی ټوله د بحر پر ارکانو به برابر وي، وبیان تلک الابحر و اوزانها واجرائها في علم العروض لکه مختصر الشافي او محیط الدائرة وغیرهم. او د مقفی معنا داده چې قافیه به هم لري چې تفصیل یې په علم القافیة کې راغلی دی دا خو ددوی مراد نه ؤ، ولې یو بلید د عجمو خو په دې پوهیږي چې اسلوب د قرآن کریم خو داغسي نه دی او نه ممکنه ده چې ټوله د قرآن کریم آیاتونه دې څوک پر اوزانو عروضیه ؤ برابر کړي، البته بعض آیتونه په قرآن کریم کې اتفاقاً د یو بحر پر وزن به برابر وي لکه په محیط دائره کې یو ، وه مثاله یې راوړي دي، نو چې بلید سړی د عجمو په دې پوهیږي چې د قرآن مبارک اسلوب او طرز بیان د شعر نه دی، نو مشرکان د مکې چې بلغاء او د شعر او نثر په فرق ښه پوهېدل له څرنگه به قرآن ته په معنی مذکور شعر وایي.

**سوال:** دوی خو معاندان وه، عناداً دي دوی د غه مذکوره معنی غرض وايي؟

**خواب:** که دوی وايي چې قرآن په معنی مذکور شعر دی، نو ددوی د خاله د خورزوی به پر دوی د کذب شاهدي اداء کړې وای.

**بوستنه:** نو ددوی څه مراد ؤ، روح البیان که څه هم ویلي دي چې ډېرو مفسرینو

بل هو شاعر والقرآن شعر پر معنی مذکور حمل کړي ده چي قرآن منظوم مقفی دی حتی چي کفارو ټولو ماجاء في القرآن من الآیات علی الوزن الشعري من الابحر (۱۶) تطبیق کړی دی انتهی.

**درویش وايي:** چي دا تبطیق د ټولو آیاتو د قرآن مجید پر اوزانو عروضیه وُ ډېره بعیده خبره ده بلکې له حدودو څخه د امکان هم وتلي خبره ده ولم یاءت احد من المشرکین بذالک التطبیق فکیف یصح نسبة ذالک الی اکثر المفسرین بلکې تحقیق خبره داده چي کفارو د مکې نسبت د کذب و علیه الصلوة والسلام ته کاوه او قرآن یې هم کذب باله فان الشعر یعبر به عن الکذب والشاعر یقال للکاذب. ځکه په علم منطق قیاس مرکب من القضایا الموهومة او الکاذبة ته قیاس شعري وايي. او بله خبره داده چي شعر علی العموم ځای د درواغو دی، ځکه یو عالم خپل زوی ته نصیحت کاوه داسي یې وویل: درشعر مپیچ ودر فن او زانکه احسن او اکذب اوست... بیت

در قیامت نرسد شعر بفریاد کس.... گرچه سراسر سخنش حکمت یونان باشد

**سوال:** په حدیث شریف کي راغلي دي (ان من الشعر لحکمة) او بل دا چي حسان بن ثابت رض پر منبر نبوي په حضور انور کي د علیه الصلوة والسلام شعرونه په هجو کي د کفارو وویل، او بل دا چي ډېر کتابونه د بیان د عقائدو د دین او د احکامو د دین په اشعار فارسیه وو سره دي، دا نږدې پنج کتاب مطالعه کړئ مثنوي نو لا چېري ده، په خپله صاحب د مثنوي په یو بیت کي داسي وايي:

از کرامات بلند اولیاء........ اولاً شعر است واخر کیمیا

**ځواب:** په حدیث شریف کي من د تبعیض راغلی دی او حسان رض چي هجو د کفارو په مسجد نبوي کي کوله هغه خو عبادت وُ او بعض کتابو چي عقائد او احکام په اشعارو سره راوړي دي هغه له دائرې څخه د بعضیت نه دي. خبره خو په دې کي ده چي علی العموم والاکثر اشعار د عوام الناس له کذب څخه خالي نه دي بلکې د بلغاؤ د عربو د جاهلیت غالبًا کذب بحت وه فلا منافات فتدبر حق التدبر.

**پوښتنه:** مراد د کفارو د مکې نسبت د کذب و علیه الصلوة والسلام ته وُ في قولهم بل هو شاعر، نو نسبت د افتراء او کذب خو دوی د مخه و علیه الصلوة والسلام ته کړی وُ بقولهم بل افتراه، نو د بل هو شاعر څه فائده ده؟

**ځواب:** مظهري رح داسي ويلي دي والفرق بين المفترى (على صيغة المفعول) والشعر ان المفترى كلام كاذب چي د متكلم يې دا اراده وي چي حاصل كړي تصديق د سامع پر دغه نسبت غير مطابقة للواقع او شعر مركب من مقدمات تاثر في ذهن السامع يا رغبت يا بيره يا خوشالي يا غم يا تعظيم يا تحقير او غير ذالك. والغرض من الشعر ذالک التاثير في النفوس من دون حصول التصديق اصلاً فكان من قبيل الانشاء آه.

**درويش وايي:** چي داؤ تحقيق د دې مقام حتى الوسع ولايكلف الله نفسًا الا وسعها.

فَلْيَأْتِنَا بِآيَةٍ كَمَا أُرْسِلَ الْأَوَّلُونَ ۝

يعني كه محمد (ﷺ) صادق وي په دعوى كي د رسالت د خداى ﷻ نو موږ ته دي راوړي، داسي آيت لكه د نورو رسولانو يعني لكه ناقة د صالح عليه السلام يا عصاء او يد بيضاء د موسى عليه السلام يا ابرء الاكمه والابرص و احياء الموتى لعيسى عليه السلام وغير ذالک.

**پوه سه:** چي (بآية) متعلق دى په (فليأتنا) پوري او كلمه د ما يا موصوفه ده يا موصوله او عائد يې پر دواړه تقديره محذوف دى او كلمه د كما صفت د موصوف محذوف ده، والتقدير فليأتنا بآية كائنة كالآية التي ارسل بها (وهذا هو العائد المحذوف) التي ارسل بها الاولون من الرسل (على تقدير كون ما موصولة) او كآية ارسل بها الاولون (على تقدير كون ما موصولة)

**پوه سه:** چي ابن جرير رح له قتادة رض څخه روايت كړى دى چي اهل مكه و عليه الصلوة والسلام ته وويل ان كان ماتقوله حقًا نو موږ ته د صفا غر د سرو زرو وګرځوه، نو جبرئيل و عليه الصلوة والسلام ته راغلى او وه يې ويل كه ستا خوښه وي زه به د دوى غوښتنه پر ځاى كړم لكن كه دا غوښتنه د دوى پر ځاى سي او بيا هم ايمان نه راوړي بيا د استيصال عذاب وركوم مهلت بيا نسته، او كه ستا خوښه وي د دوى خواهش به نه كړم منظور او دوى ته به مهلت وركړم يعني ژر به عذاب نه پر نازلوم. قال عليه الصلوة والسلام شفقة على قومه بل استاني لقومي (يعني مهلت وركړه) فانزل الله تعالى هذه الآية.

مَآ اٰمَنَتْ قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا ۚ اَفَهُمْ يُؤْمِنُوْنَ ﴿٦﴾

ایمان نه دي راوړی د مخه تر مشرکینو د مکې له اهل څخه د لوی قریې. آیا دوی یعني مشرکان د مکې به ایمان راوړي که دوی ته د دوی غوښتلي معجزې ورکړل سي مع ان کفار مکة اشد کفرا دي تر ماقبل قومو نو من زائد دی لپاره د استغراق د نفي او قرية په محل کي د رفع فاعل د آمنت دی (اهلکنا) چي موږ هلاک کړي دي اهل د هغې قريې په حذف د مضاف اعني لفظ د اهل.

**پوه سه:** چي اهلکناها صفت د قرية دی یعني وروسته تر دې چي دوی آیات مقترحه وغوښتل لکه قوم د صالح ؑ چي له صالح ؑ څخه یې غوښتنه د ناقة وکړه او بیا یې هم ایمان نه راوړی، نو موږ دوی په هلاک استیصال سره هلاک کړل.

**پوه سه:** چي کلمه د فا لپاره د عطف ده پر ما آمنت او استفهام لپاره د انکار دی یعني کفار مکه هم ایمان نه راوړي که څه هم د دوی د خوا معجزه ورکړه سي.

**پوه سه:** چي خدای پاک تعقيب د نه ایمان د اهل مکه پر نه ایمان د مخه کافرانو وکړی والحاصل چي عدم ایتاء د مقترحاتو د اهل مکه له جهته څخه د عدم قدرت د خدای ﷻ نه دی بلکې د پرېښولو د دوی دی تر یو وخته پوري. ولي رحمة للعالمين ﷺ سوال د ابقاء د دوی کړی دی تاچه عذاب د استیصال پر دوی رانسي.

وَمَآ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ

موږ نه دي استولي تر تا د مخه یا محمد مگر نه رجال یعني لا ملائکة لکه اهل مکة چي یې مطالبه کول او موږ به وحي کولې دوی ته.

**پوه سه:** چي دا جمله معترضه ده لپاره د رد د قول و اهل مکة ته هل هذا الا بشر ملکم. حاصل د رد یې دادی چي دا عادت قديمه د خدای ﷻ دی چي انسانانو ته انسان نبي را استوي لا الملک.

فَسْـَٔلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٧﴾

نو تاسي یا اهل مکه پوښتنه وکړئ له اهل علم څخه چي اهل کتاب دي چي مخني رسولان بشر وه که ملکي تاچه ستاسي شبهه به دفع سي، که تاسي چي علم نه لري.

**پوه سه:** چي دا شرط دی جزا یې له ماقبل څخه فهمېږي.

**سوال:** مشركينو د مكې خو اهل كتاب هم منل ولې چې بعث بعد الموت يې نه مانه او اهل كتاب خو يې مني، نو له هغو څخه پوښتنه څه فائده لري؟

**ځواب:** مشركانو د اهل مكې به د اهل كتاب سره مشوره كول په باره كې د عليه الصلوة والسلام د نبوت او د اهل كتابو پر خبره يې باور درلود في الجملة او يا له دې سببه يې حواله پر اهل كتاب وركړه چې تواتر علم فائده كوي كه څه هم دوی كفار وي.

**وَمَا جَعَلْنٰهُمْ جَسَدًا لَّا يَاْكُلُوْنَ الطَّعَامَ وَمَا كَانُوْا خٰلِدِيْنَ ۝**

او موږ نه دي ګرځولي د مخه رسولان يو جسد چې طعام يې خوړی لكه ملكې او نه دي ګرځولي مخني رسولان خالدين يعني همېشه ژوندي په دنيا كې بلكې عند الاجل مړه سوي دي.

**سوال:** په (جعلناهم) كې ضمير د جمع ؤ، نو (جسداً) مفرد يې څرنګه پر حمل كړی؟

**ځواب:** جسد اسم جنس پر يوه او پر ډېرو يې اطلاق روا دی. او يا (جسداً) مصدر دی په اصل كې نو اطلاق يې روا دی پر ډېرو يا مضاف محذوف دی ای ذوی جسد او يا په تاويل د كل واحد.

**پوهنه:** چې بعض اهل لغت وايي چې جسد او جسم سره يو دی، او بعض اهل لغت وايي چې جسد تر جسم خاص دی چې جسد هغه جسم ته وايي چې لون او رنګ لري، نو ځكه هواء ته جسد نه ويل كيږي او جسم دی.

**فائده:** (لاياكلون) صفت د (جسد) دی په دې صفت سره يې رد د هغه قول د كافرانو وكړی (مال هذا الرسول ياكل الطعام آه).

**فائده:** په (ماكانوا) سره يې هغه قول د مشركينو دفع كړی چې دوی يو د بل سره ويل پر پرېږدئ محمد يو څو ورځې به ژوندی وي چې مړ سو ځندي خلاص به سو فافهم.

**ثُمَّ صَدَقْنٰهُمُ الْوَعْدَ فَاَنْجَيْنٰهُمْ وَمَنْ نَّشَآءُ وَاَهْلَكْنَا الْمُسْرِفِيْنَ ۝**

وروسته موږ رښتيا كړه د رسولانو ماضيينو سره په وعده كې د نصر پر اعداؤ د دوی (چونكه صدقنا متعدي و يوه مفعول ته دی چې هم دی نو نصب د الوعد په حرف جر محذوف سره دی ای في الوعد) نو موږ نجات وركړی د عذاب نازل پر كافرانو وه رسولانو ته (ومن نشاء) يعني المؤمنين بالرسل يا هغه كافران چې په

ابقاء کې یې د خدای حکمت ؤ چې یا به دی مسلمان سي یا به یې په اولاد کې مسلمان پیدا سي، او هلاک کړه مو بي هغه کسان چې چې متجاوز تر حد به وه په کفر او په طغیان کې چې نه به په دوی کې خای د ایمان ؤ او نه په عقب کې د ده یعني بحسب علم الله ﷻ.

**درویش وایي:** چې په دې آیت کې ضمنًا وعده د علیه الصلوٰة والسلام سره ده چې تا ته به هم نصرت در کړم پر کافرانو د مکې او تا او مؤمنانو ته به نجات در کړم او مسرفان د دوی به په ځای کې د هلاک واچوم کما في بدر وغیره من مغازي رسول الله ﷺ.

لَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكُمْ كِتٰبًا فِيْهِ ذِكْرُكُمْ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿١٠﴾

لام موطئه د قسم دی، په تحقیق نازل کړی دی موږ و تاسي ته یا معشر قریش قرآن کریم چې په هغه کتاب کې ستاسي شرف دی یعني که چېري تاسي عمل په وکړئ او یا له دې سببه ستاسي شرف پکښې دی چې ستاسي په ژبه دی. او یا د دې معنی داده چې ستاسي د خدای ﷻ ذکر پکښې دی او ذکر د هغو شیانو پکښې دی چې تاسي حاجت ورته لرئ من امور دینکم ودنیاکم، او بیضاوي وایي چې ستاسي ذکر حسن پکښې دی او موعظتکم او ماتطلبون حسن الذکر من مکارم الاخلاق (افلا تعقلون) دا جمله عطف ده پر (انزلنا) او تعقلون منزل منزلة اللازم دی ای فلا عقل لکم او یا یې مفعول محذوف دی، والتقدیر افلا تعقلون خیرکم وشرکم او کلمه د فاء لپاره د تعقب ده او استفهام لپاره د انکار دی د عدم تعقل د مافیه صلاحکم وشرفکم لا بمعنی عدم وقوع ذالک بل بمعنی لاینبغي لم ذالک.

وَكَمْ قَصَمْنَا مِنْ قَرْيَةٍ كَانَتْ ظَالِمَةً وَّاَنْشَاْنَا بَعْدَهَا قَوْمًا اٰخَرِيْنَ ﴿١١﴾

**پوه سه:** چې کلمه د (کم) خبر مفید د کثرت ده او (قصم) کسر او هلاک ته وایي ای اهلکنا کثیرًا، کلمه د (من) بیان دی د (کم من قریة یعني اهل قریة) چې وه دا قریه یعني اهل د هغې ظالمان وه بالکفر والمعاصي او ظلم یې پر خپلو ځانو کاوه. (انشانا) په معنی د اورثنا دی یعني اورثنا بعد هلاک اهلها اموالهم قوم آخرین ته چې د دوی قائمقام وه چې نه په نسب د دوی وه او نه په دین د دوی وه.

فَلَمَّآ اَحَسُّوْا بَاْسَنَآ اِذَا هُمْ مِّنْهَا يَرْكُضُوْنَ ﴿١٢﴾

**پوه سه:** چي ضمير د (احسوا) راجع دی و اهل ته چي د قريه سره مضاف محذوف ؤ، او د باس معنی شدة د جنګ وغيره ته وايي، مظهري رح ترجمه د احسوا په ادارک بحاسة البصر سره کړې ده، او روح البيان داسي ترجمه کړې ده ای ادرکوا ادراکا تامًا کانه محسوس بالبصر يعني مراد له احساس څخه علم کامل تام دی، احساس يې تشبيهًا ورته ويلی دی، کلمه د (اذا) لپاره د مفاجات ده، او ضمير د هم و اهل قريه ته راجع دی، او ضمير مؤنث وه قريه ته راجع دی، او رکض وهل د آس يا خره په پښو سره چي چابک سي، نو رکض چي نسبت يې وه راکب ته وسي پښې ښورول دي پر مرکوب چي وځغلي نحو رکضت الفرس، او چي پياده سړي ته يې نسبت وکړل سي مراد ځندي ځغاسته ده، والمعنی دوی چي احساس د شدت د عذاب د خدای وکړي نابيره بې په تېښته له قريه څخه پيل وکړي، که سپاره وه هغو به پر آسانو وغيره پښې ښورولې او که به پياده وه هغو به منډه شروع کړه، غرض دا دی چي څرنګه به د عذاب پر قريه خلاص سو.

لَا تَرْكُضُوْا

(لا ترکضوا) دا جمله مستانفه ده په جواب کي د دې سوال چي دوی ته په وخت کي د هرب من القرية څه وويل، نو قيل دلته محذوف دی يعني قيل لهم مه ځغلئ د خپلې محبوبې قريې څخه، دا خبره د استهزاء او پسخند پر ډول ورته وکړل سوه، دا قول يا يو ملکي د عذاب ورته ذکر کړی چي د دوی د عذاب په وخت کي حاضره وه، يا بعض مؤمنانو چي په قريه کي وه او يا په لسان حال ورته وکړه سوه، هذا ما قاله روح البيان والمظهري وروح المعاني والقرطبي والرازي رح.

وَارْجِعُوْٓا اِلٰى مَآ اُتْرِفْتُمْ فِيْهِ وَمَسٰكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْـَٔلُوْنَ ﴿١٣﴾

راوګرځئ وه هغو شيانو ته چي تاسي تنعم او تلذذ په قريه کي په کاوه من الماکولات والثمار والمفروشات وغير ذالک، شايد ستاسي څخه به پوښتنه وکړل سي، يا د دې چي پر تاسي او ستاسي پر اموالو څه عذاب نازل سو، نو به تاسي د ستړکو ليدلي حالات وسائل ته بيان کړی، او يا معنی دا ده راوګرځئ

کنښېنئ په خپلو مجلسو کي او په خپلو مرياتو کي او هغو ته به امر او نهي کوئ يا راسئ په خپلو کورو کي کښېنئ چي خلک سوال در څخه کوي د خپلو مشکلاتو او د نوازلو. او ابن عباس رحمه الله وايي چي تاسي خپل نبي څرنګه قتل کړی. بغوي رحمه الله په مختصره توګه داسي وايي چي دا آيت په اهل کي د حضورا چي د يو وطن نوم دی په يمن کي چي اهل يې عرب وه، نو خدای ﷻ نبي ورته راواستاوه (د نبي نوم بغوي رحمه الله نه دی ذکر کړی) نو هغه و دوی ته دعوت د توحيد د خدای ﷻ ورکړی دوی يې تکذيب وکړی او نبي يې قتل کړی، نو خدای ﷻ پر دوی بخت نصر بابلي مسلط کړی حتی قتلهم و سباهم، نو چي قتل په دوی کي تر اندازه ډېر سو، نو دوی پر قتل د نبي پښېمانه سوه او په جنګ کي يې شکست وخوړی او په تېښته يې پيل وکړی فقالت الملائكة لهم استهزا. لاتركضوا وارجعوا الى مساكنكم واموالكم. انتهى قول البغوي رحمه الله.

**سوال:** دوی چي پر قتل د نبي او شرک پښېمانه سوه، نو دا د دوی توبه نه وه؟ او سره ددې چي په حديث صحيح کي راغلي دي (الندم هو التوبة)؟

**ځواب:** ندم چي توبه ده هغه قبل نزول العذاب ده، دوی خو په وخت کي د نزول العذاب پښېمانه سوه دا توبه نه وه کما قال السعدي رحمه الله.

توبيش از عقوبت در عفو کوب ........ که سودی ندارد فغان زير چوب

او قتاده رحمه الله وايي لعلكم تسئلون شيئًا من اموالكم و دنياكم فتعطون من شئتم وتمنعون من شئتم فانكم اهل ثروة ونعمة. نو بخت نصر چي توري پسې راوکښلې د اسمان له خوا نعره وسوه يا ثارات الانبياء (ای کسات کښونکو د قتل د نبيانو يعني چي اهل حضورا خپل نبي قتل کړی ؤ) اقتلوهم (وژنئ ياست دوی، نو دوی چي دا نعره واورېدل پوه سول چي دا د مقتول نبي کسات خدای له موږ څخه کاږي) اقروا على انفسهم بالذنوب ای الشرک والمعاصي وقتل النبي وندموا حين ينفعهم ذالک الندم. قالوا.

قَالُوا يَٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا ظَٰلِمِينَ ﴿١٤﴾

اې هلاک زموږ په تحقيق موږ ظالمان ؤ.

**درویش وایي:** چي دا هغه د دوی ندم او پښېماني چي فائده يې ونه کړه.

**فائده**: د عربو دا قانون دی چي په وخت کي د سختي د يا ويلنا ياحسرتاه واندامتا نارې وهي، وهذا النداء مجاز.

**فَمَا زَالَت تِّلْكَ دَعْوَاهُمْ حَتَّىٰ جَعَلْنَاهُمْ حَصِيدًا خَامِدِينَ ﴿١٥﴾**

نو همېشه دوی دغه نارې چي هلاکه چېري يې راسه دادی وخت دی. مورو وکرځول دوی لکه غنم يا اوربشي وغيره چي خلک يې لو کړي بالمناجل (لورينا منګال) چونکه په فعيل په معنی د مفعول کي مفرد، مثنی او جمع سره برابر دي. نو له دې سببه يې مفرد راوری او سره د دې چي مفعول اول د جعلنا جمع ؤ. نو بايد مفعول ثاني يې هم جمع وای فتدبر (خامدين) يعني مړه کما يقال خمدت النار.

**درويش وايي**: چي روح المعاني و قصي ته د حضورا هيڅ تعرض نه دی کړی نه مختصرًا نه مطولاً، او روح البيان دا قصه ډېره په تفصيل سره بيان کړې ده، اول وايي چي له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي ظلم سبب د خرابي د آبادی دی، بدليل قوله تعالی انا کنا ظالمين. او په حديث صحيح کي هم راغلي دي (الظلم ظلمات يوم القيامة) او شيخ سعدي شيرازي قدس سره هم ودې خبري ته داسي فهم لرنه کړې ده:

بقومي که نيکی پسندد خدای ....... دهد خسرو عادل نيک رای
چو خواهد که ويران کند عالمی ....... کند ملک د رپنجه ظالمی

بيا روح البيان ويلي دي قال بعض اهل التفسير والاخبار چي حضور چي له قري وو څخه د يمن وه، او بعض راويان وايي چي د حجاز له قريو څخه وه، وطرف ته د شام، دوی ته خدای ﷻ راواستاوه نبي چي نوم يې موسی بن مشان ؤ کما في الکشف. او امام سهيلي وايي چي نوم يې شعيب بن ذی مهرم ؤ، او د دې شعيب[ؑ] قبر په يمن کي دی په يوه غره کي چي خلک يې (ضعين) بولي او په قاموس کي وايي چي ضعين بالکسر جبل عظيم بصنعاء اليمن.

**يوه سه**: چي دا شعيب هغه نبي نه دی چي په مدين کي ؤ او د موسی بن عمران[ؑ] خسر ؤ لان قصته حضور قديمة جدًا، او د دې د حضور خلکو خپل نبي قتل کړی او په عين دغه تاريخ اصحاب الرس خپل نبي حنظلة بن صفوان قتل کړی، نو خدای ﷻ وحي وکړې وبل نبي ته چي نوم يې ارمياء ؤ چي ته ورسه بخت نصر بابلي ته او دی خبر کړه چي ته خدای مسلط کړی يې پر اهل حضور او پر مځکه د

عربو او زه انتقام اخلم له دوی څخه په تا سره، او ارمیاء ته یې دا وحي را واستولې چي معد بن عدنان پر آس سپور کړه عراق ته یې بوزه چي د یمن په مځکه کي یا د نورو عربو په مځکو کي ده ته ضرر ونه رسېږي، خدای پاک ارمیاء ته وویل چي زه له نسل څخه د معد بن عدنان بعد قرون من الزمان یو نبي آخر الزمان پیدا کوم چي نوم یې محمد ﷺ دی، نو ارمیاء معد مذکور چي دوولس کلن ؤ عراق ته بوتلی او په اسرائیلو کي یې استوګنه وه حتی چي ځوان سو او په بني اسرائیلو کي یې ښځه په نکاح کړه چي نوم یې معانه ؤ، نو بخت نصر ډېر جیوش سره جمع کړه او غارات او حملې یې پر اهل حضور شروع کړې من کل جهة حتی قتلهم وسبی منهم او عمارات د حضور یې خراب کړل چي په حضور کي نه انسان او نه حیوان او نه عمران پاته سو کما قال الله تعالی (حتی جعلناهم حصیداً خامدین) بیا بخت نصر د عربو پر مځکو ښارو باندي یرغل شروع کړی یمنها وحجازها فاکثر القتل والسبي وخرب وحرق ثم رجع الی سواد بابل، او په دې آیت کي خدای پاک وایي (وکم قصمنا من قریة کانت ظالمة) دغه د عربو قریې مراد دي چي بخت نصر حملې پر وکړې، روح البیان په اخیر کي ویلي دي ان هذه الروایة منقولة عن ابن عباس ؓ، لکن ابن عباس ؓ یوازي ذکر د حضور کړی دی والله الذي احاط دائرة علمه بما کان وما یکون اعلم بالصواب وحقیقة المقال.

**درویش وایي**: چي دا وه پښتو ژباړه د عبارت د روح البیان مع زیادة یسیرة او ترجمة بعض العبارات من هذا العبد العاصي غفرله الباري ذنبه الجلي والخفي والله المستعان وعلیه التکلان.

## وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ ⑯

او نه دي پیدا کړي موږ اسمان (اسم جنس دی یعني السموات السبع) او مځکه او منځ د اسمان او مځکي (چي کره د هواء ده او بارانو او واوري وغیره) په داسي حال کي چي موږ عبث کار کاوه او بې فائدې کار مو کاوه بلکي آسمانونه او مځکه پر عجائبو د قدرت د خدای جل جلاله مالا مال دي تاچه ناظرینو ته تبصره وګرځي او هم سبب وګرځي د ژوندانه د چارو د مخلوقاتو او د آخرت په چارو کي
برګ درختان سبز در نظر هوشیار ... هر ورقی دفتریست معرفت کردګار

بنگر بچشم فکر که از عرش تابفرش . . . درهيچ زره نيست که سري عجيب نيست

**لَوْ أَرَدْنَا أَنْ نَتَّخِذَ لَهْوًا**

که اراده زموږ وايي چي د ځان لپاره ساتېري شئ وګرځوو . عطاء رح د ابن عباس رض څخه داسي روايت کړي دی چي مراد له لهو څخه مايينه ده وهو قول الحسن وقتادة رح ولي چي لهو په لغت کي وطي ته وايي او ماينه محل د وطي ته . او کلبي رح هم له ابن عباس رض څخه روايت کړی دی چي مراد له لهو څخه ولد دی ولي چي خلګ په کوچنيانو سات تېروي په غېږ کي يې ګرځوي او مچي ځني اخلي الی غير ذالک من انواع اللعب .

**بوه سه:** چي لهو مصدر دی په معنی د مفعول . حسين کاشفي په تفسير حسيني کي وايي : لهو چيزيست که بآن بازی کنند وبروئيت آن مستانس شوند چون فرزند انتهی .

**درويش وايي:** چي تفسير کاشفي ډېر جامع او په زړه پوري دی .

**لَّاتَّخَذْنَاهُ مِن لَّدُنَّا إِن كُنَّا فَاعِلِينَ ﴿١٧﴾**

ای من عندنا مما يليق بحضرتنا من المجردات . مظهري رح وايي که موږ بالفرض والتقدير المحال دا کار کولای .

**درويش وايي:** چي د مجردات قائلين غير د ذات د رب ﷻ خو حکماء دي ، نو مظهري رح څرنګه تفسير په مجرداتو سره وکړی ؟ او روح البيان يې داسي تفسير کړی دی ای من جهة قدرتنا لتعلقها بکل شئ من المقدورات (وفيه بحث لان المستحيل بالذات کشريک الباري واجتماع النقيضين وارتفاع النقيضين ليس محل القدرة لان محل القدرة الممکن) او واحدي يې داسي تفسير کړی دی چي معنی د لدنا من عندنا بحيث لايظهر لکم ولاتطلعون عليه ولايجری لاحد فيه تصرف لان ولد الرجل وزوجته يکونان عنده لاعند غيره آه (وفيه بحث لان الآية علی تقديره وتفسيره لاتدل علی استحالة الولد والزوجة) والصحيح في تفسير مالدنا ماينا سب کما هو المعلوم من ان الولد لکل شئ يکون من جنسه ولما ثبت بالدلة النقلية والعقلية ان ذاته تعالی لايماثله شئ ، کريمه : ليس کمثله شئ

ولايجانسه احد فاستحال انيكون له زوجة او ولد . و تعلق ارادته تعالى التي لاينفك المراد منها بالمستحيل مستحيل فامتنع اتخاذ الزوجة والولد فافهم.

**پوه سه:** چي (ان كنا فعلين) شرط مستغني له جزا. ځکه مما قبله دی یعنې که موږ فاعل د لهو من الزوجة والولد واى والجزا . دل عليه ماقبله لكن نه يو فاعلين لكونه مستحيلاً مناف للالوهية.

**درويش وايي:** چي د آيت پر تفسير صحيح اشاره ده و قياس استثنائي ته چي تالي يې محال دی. نو مقدم هم محال دی كقولهم ان كان زيد حمارًا لكان ناهقًا لكنه ليس بناهق فليس بحمار، وتقريره ههنا لو اردنا ان تخذ لهواً (وهذا هو المقدم للمقدمة الشرطية) لاتخذناه من لدنا (وهذا التالي للشرطية) لكن اتخاذ من لدناه مستحيل (وهذا هو المقدمة الاستثنائية المحذوفة كمامر تفسيرها واستحالتها) فالمقدم اعني ارادة اتخاذ اللهو (چي ترجمه د مقدم مذكوره ايضًا محال)

**پوښتنه:** تا تفسير چي تا وکړی، عوام خو څه کوې د بعضو طالبانو بلکې د بعضې ملايانو تر فهم لوړ دی؟

**ځواب:** غرض خو تفسير د آيت دی پر صحيح ډول بعض که نه په پوهېږي علماء مدرسين چي علاقه د عقلي علومو سره لري دې تفسير ته به خوش آمديد ووايي ان شاء الله عزوجل، سعدي شيرازي وايي:

توگوی آنچه دانی سخن سود مند ....... اگر هيچ کس را نيايد پسند

بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهُ

**پوه سه:** چي بل اضراب دی د اتخاذ د ولد او له ارادې ځکه د هغه، نو معنا د آيت داده چي هغه اراده د لهو خو موږ نه لرو بلکې شان زموږ دادی چي حق چي له جملې څخه د هغه ضد اللهو دی چي جد يې بولي او ايمان او قرآن دی غالب گرځوو پر باطل باندې چي له جملې څخه د هغه لهو او کفر او نور باطل شيان دي، نو هغه باطل خدای پاک هلاک او نيستي کړي او يا حق باطل نيستي او نابود کړي دا وه د آيت سليسه ترجمه. اوس واورئ د مفرداتو د آيت ترجمه (قذف) راغب رح وايي ويشتل دي له لېرې څخه كما يقال منزل قذف اى بعيد والباطل نقيض الحق. او له جملې څخه د باطل ذا هم ده اتخذ الله ولداً لكه نصارى چي وايي عيسى ابن الله ومريم زوجته

تعالی عن ذالک. او له جمله څخه دا هم ده چي خدای پاک دي د صاحبه والولد والدفع کسر الراس والدماغ المفضي الی زهوق الروح. صاحب المفتاح وایي چي اصل استعمال د قذف او دفع خو په اجسامو کي ده لکه یو څوک چي په کلکه ډبره د خاورو لوښي وولي او مات یې کړي. ثم استعیر القذف لایراد الحق علی الباطل والدفع لاذهاب الباطل ومحوه بالکلیة ففیه تشبیه للمعقول بالمحسوس لتتمکن المعقول في ذهن السامع فضل تمکن لان العقل الی المحسوسات امیل. نو معقول دلته ایراد الحق دی چي قرآن کریم دی پر باطل چي شرک دی او محسوس ما قول دی د خاورو د لوښي یا د سړي سر او دماغ په لویه ډبره چي وولي فافهم.

فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ ۚ وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُونَ ﴿١٨﴾

نو ناګاه هغه باطل چي شرک دی له منځه ولاړ سي چي هیڅ اثر یې پاته نه سي. په قاموس کي وایي زهق الباطل ای ذهب وهلک فهو زاهق آه. او تاسي لره دی یا معشر قریش مکه هلاک د هغه شي څخه چي تاسي یې په وصف کي د خدای پاک وایاست من الشریک وهي الاصنام. والولد چي ملائکه بنات الله بولئ مما لایلیق بشانه ﷻ.

**پوه سه:** چي کلمه د ما یا مصدریه ده ای وصفکم الله. یا موصوفه یا موصوله دی ای شئ تقولونه في وصفه تعالی او الذي تقولونه آه وعلی التقدیرین الآخرین العائد محذوف کما اشرنا الیه عنقریب.

وَلَهُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَمَنْ عِندَهُ

او خدای ﷻ لره دي هغه شیان چي په آسمانو او ځمکه کي دي یعني ملکا وخلقا یعني لایصلح شئ د دغو څخه چي د خدای پاک ولد سي او یا اهل او یا کفو کما في سورة الاخلاص (لم یلد ولم یولد ولم یکن له کفوا احد) (ومن عنده) عطف دی علی من في السموات آه من عطف الخاص علی العام مراد له عندیت څخه عندیة د شرف دی لا عندیة المکان. نو د عند په لفظ راوړلو کي قرب رتبي مشابه کړی دی د قرب مکان سره. روح البیان وایي وهم الملائکة علیهم السلام مطلقا او مظهري رح وایي وهم الملائکة والانبیاء علیهم السلام. په هر صورت که څه هم دا من عنده په من في السموات والارض کي داخل دي لکن لپاره د شرف د دوی علحدة راوړه.

لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَلَا يَسْتَحْسِرُوْنَ ﴿١٩﴾

دوی کبر او لويي له عبادت څخه د خدای نه کوي او نه ستړي کېږي په عبادت د خدای ﷻ. ولې چې دوی په عبادت کې د خدای پاک لذت ويني او ترک يې ودوی ته هلاک معلومېږي. قال رسول الله ﷺ وجعلت قرة عيني في الصلوة.

**پوهه:** چې (من عنده) مرفوع محلاً مبتداء دی (لايستكبرون) يې خبر دی.

يُسَبِّحُوْنَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُوْنَ ﴿٢٠﴾

دوی تسبيح او تنزيهه کوي او روای يې د شپې او د ورځې او سستي نه کوي په تسبيح ويلو کې دائمًا کر الازمان ومر الدهور.

**پوښتنه:** د روح المعاني پر تفسير چې د من عنده څخه مراد ملائکه عليهم السلام دي مطلقًا. د يسبحون الليل الخ توجيه خو آسانه ده. ولې چې د ملائکه تسبيح او تهليل وغيره لکه تنفس د بني آدم دی يا او په څېر د ماهيانو دی. نو لکه بني آدم چې په تنفس نه ستړي کېږي ليلاً او نهارًا يې تنفس جاري وي ما دام حيًا او د غه رنګه ماهيان په استنشاق د اوبو نه ستړي کېږي ليلاً او نهارًا استنشاق د اوبو کوي ملائکه کرام هم په تسبيح د خدای ﷻ نه ستړي کېږي ليلاً او نهارًا يې وايي. لکن پر تفسير د مظهري رح چې وايي چې له من عنده څخه مراد ملائکه او انبياء عليهم السلام دواړه دي. نو څرنګه به انبياء عليهم السلام دا خبره کول يسبحون آه متصوره کېدای سي. ولې چې دوی هم خوب کوي او هم اکل او شرب او نور مشاغل درلودل کما لايخفى؟

**ځواب:** مظهري رح ددې سوال په ځواب کې وايي چې د تسبيح او عبادت څخه د مقربينو دوام الحضور او ذکر خفي دی چې هغه لاينقطع عن المقربين بل لايمكن. وايضًا اذا دام الحضور فكلما يفعل المرء فهو عبادة لله مثلاً ياكل ويشرب وينام ليتقوى على طاعة الله وينكح عصمة الى غير ذالک او معصيت له دوی څخه نه صادرېږي ولې د معصيت بناء پر غفلت ده او دوی دائم الحضور دي او که فرضًا يو ذلة له دوی څخه صادر سي پر هغه پښېماني کوي ويتوب بحيث يبدل الله سيئاتهم حسنات ولهذا قال رسول الله ﷺ ينام عيني ولاينام قلبي وعلى

هذا نفس، ولهذا ورد رؤيا الانبياء وحي ولهذا قالوا نوم العالم عبادة.

**تبصره:** دروېش وايي چي كه د يو سړي سره د تهجد فكر ورسره ؤ او كه يو وخت ځني پاته سي د ېرېږي فكر خراب وي، نو دا سړى د شپي په اول كي وختي بدېږي او د چا سره د ماخستن تر لمانځه وروسته مجلس نه كوي په دې نيت چي د تهجد لمانځه ته رابيداره سم دا تېول خوب يې عبادت دى، يا يو سړى تجارت كوي او دا يې ټينګ قصد وي چي زه پيسي وګټم او مسكينانو ته لاس و غځوم او صله رحمي د اقرباؤ سره وكړم دا تجارت يې عبادت دى. نور له دې قسمه دنيائي كارونه په نيت سره عبادت ګرځي.

## اَمِ اتَّخَذُوْٓا اٰلِهَةً

**پوه سه:** چي كلمه د (ام) منقطعه ده په معنى د (بل آه) ده و معنى بل اضراب دى له مضمون څخه د كلام سابق چي خداى ﷻ د مشركانو د قول حكايت كړى ؤ، قال الله تعالى ما يأتيهم من ذكر من ربهم محدث الا استمعوه وهم يلعبون، وقال الله تعالى واسروا النجوى الذين ظلموا ان هذا الا بشر مثلكم وقال الله تعالى بل قالوا اضغاث احلام بل افتراه بل هو شاعر.

**دروېش وايي:** چي ددې آيتو ترجمې د مخه تېري سوي دي، نو د بل معنى اضراب دى ددوى له خبرو څخه چي طعن يې پر قرآن او پر عليه الصلوة والسلام وايه چي دا غسي نه ده بل اتخذوا آلهة او د همزه استفهام معنى انكار او توبيخ دى.

**فائده:** ضمير د اتخذوا و مشركينو ته راجع دى او مراد د آلهة څخه بتان دي.

## مِّنَ الْاَرْضِ هُمْ يُنْشِرُوْنَ ﴿۲۱﴾

له جنس څخه د مځكي، دا صفت دى د آلهة اى صنعوا من جواهر الارض من ذهب او فضة واحجار الارض.

**فائده:** من الارض لپاره د تحقير ددوى د خدايانو دى د تخصيص نه دى، ولي بعض ددوى د ملكو عبادت كاوه هغه خو د جنس الارض څخه نه وه (هم ينشرون) صفت د آلهة دى يعني دوى وايي چي دغه زموږ خدايان مړي ژوندي كوي، وهذا من غاية جهلهم حيث اثبتوا للجمادات احياء الاموات.

**سوال**: مشركانو خو دا نه ويل چي زموږ خدايان مړي ژوندي كوي بل انكروا الاحياء بعد الموت مطلقًا فكيف معنى هذه الآية؟

**ځواب**: هو! دوی خو په خولو دا خبره نه ده كړې، ولې دوی به ويله من يحيي العظام وهي رميم. لكن ددوی د دعوې د الوهيت د اصنامو خپل دا وينا ددوی لازمېږي ولې د الوهيت سره عقلاً ونقلاً د احياء الموتى قدرت لازم دی فكانهم ادعوا ذالك، كذا في روح البيان وروح المعاني والمظهري والامام الهمام الرازي والامام القرطبي رحمهم الله.

**درويش وايي**: چې خدای ﷻ خپل پر وحدانيت وابطال تعدد الآلهة داسې برهان قاطع وايي.

## لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللهُ

كه چېرې وای په اسمانو او په مځكه كې آلهة غير الله. نو معنى د الآ غير ده لپاره د استثناء نه دی، نو الآ از روی معنى صفت د الهة دی لكن چونكه پر صورت د حرف استثناء دی چې قابل د اعراب نه دی ځكه اعراب د رفع په لفظ كې د الله راغلی.

**فائده**: ضمير د فيهما كه څه هم ظاهرًا راجع دی و اسمانو او مځكې ته لكن مراد ځنې ټوله عالم علوي او سفلي دی لعدم القائل بالفصل والفرق.

**فائده**: مراد له فيهما څخه تمكن او استقرار نه دی لكه بعض مفسرانو چې ويلي دي بلكې مراد ځنې غايت قدرت پر تصرف فيهما وتدبير امريهما.

**درويش وايي**: چې په دې آيت كې اشاره وبرهان تمانع ته ده چې په حاشيه كې د مولى خيالي پر شرح عقائد نسفي ده او په حواشيو كې د فاضل لاهوري پر خيالي دی په ډېر بسط او تفصيل سره ذكر سوی دی، صاحب د روح المعاني تر اندازه ډېر تفصيل پر لار اچولی دی چې نقل به يې د ډېر تطويل او اطناب وګرځي، نو له هم دې سببه يې درويش له نقل څخه ډډه وكړه.

**پوښتنه**: څه سبب دی چې الا په معنى د غير دی او د استثناء لپاره نه دی؟
مظهري رحمه الله ددې پوښتنه په ځواب كې داسې ويلي دي چې نه په دې ځای كې د استثناء متصل حكم كېدای سي او نه د منفصل، ولې چې د مستثنى منه چې آلهة دی درک نه معلومېږي چې له آلهة څخه سره د خدای تعدد مراد دی حتى چې

استثناء متصل وګرځي او که بیله خدایه تعدد مراد دی چي استثنا، منفصل ده، نو ددې سببه الا يې په معنی د غیر وګرځاوه، هم دا سبب دی چي روح البیان د آلهة ترجمه مبهم کړې ده حیث قال سواء کان الله معهم اولا.

**فائده:** نحات وايي چي لفظ د غیر د استثناء لپاره کما في قولهم جائني القوم غیر زید ای الا زید دېر دی په استعمال کي د عربو تر استعمال د الا په معنی د غیر کما في هذه الآية للمانع من الاستثنا، کمامر في قول المظهري.

**فائده:** آیت مذکور که څه هم په رد کي د قول د مشرکانو نازل دی چي دوی خپل بتان آلهة بلل، لکن د مجوسیانو د مذهب رد قوي هم دی. ددوی مذهب دادی چي دوی وايي عالم لره دوه خدایان واجب الوجود خالق سته چي یو د خیر او د نفع کارونه کوي لکه بارانونه او نافع شیان پیدا کوي لکه مېوې ارتزاقي مواد، دې خدای ته دوی یزدان وايي. او بل خدای د ضرر کارونه کوي قحط یا شدید یخ پر مېوو مسلط کړي چي هغه له منځه یوسي او دا خدای مضر حیوانات لکه لړمان، ماران، لېوان وامثالها پیدا کوي چي دې خدای ته دوی اهرمن یا شیطان وايي، ددې مجوسیانو نوم په عربي ثنویه دي یعني دوه خدایان بولي، او مشرکانو ته وثنیه وايي چي وثن بت بولي دوی هم د بتانو عبادت کوي لکن نه یې واجب الوجود او نه یې خالق بولي.

## لَفَسَدَتَا

اسمانونه او ځمکه به نیستي سوې وای او یا به د نظام اصلح موجود څخه وتلې وای، مظهري رح وايي لبطلتا ولم يوجدا، وتقريره ان ادنى التعدد اثنان وشان الآله تمام المقدرة فاما ان يوجد السموات والارض بمجموع القدرتين فيلزم توارد العلتين المستقلتين على معلول واحد وهو باطل كما بين الحكمة اووان تخالف الآلهة في الخلق يمنع كل واحد منهما الآخر من الخلق فيتعطل خلق السموات والارض كما لايخفى. او روح البيان وايي لخرجتا اى السموات والارض من هذا النظام المشاهد لان كل امر يتصرف فيه الاثنان لايجرى على قضاء واحد والرعية تفسد بتدبير الملكين وحيث انتفى التالي انتفى المقدم وهو تعدد الآلهة بوجه عقلي برهاني.

**درويش وايي:** چي په شرح العقائد كي وايي چي دا تمانع د خدايانو خو احتمالي خبره ده لجواز الاتفاق على النظام الموجود المشاهد واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال كما هو القول المسلم الدائر على السنة العرب والعجم فافهم. والتقرير الراجح لهذه الحجة هغه دى چي بعض محققانو راوړى دى چي دا آلهه به يا متساوي په الوهيت او كمال القدرة كي وي فيلزم من احتمال التمانع بينهما عدم وجود السموٰات والارض في حين من الاحيان. او يا به بعض آلهه كامل القدرة وي او بعض به ناقص القدرة وي. نو پر دې تقدير كامل القدرة مستغني د ناقص القدرة څخه دى. نو ناقص القدرة مستحق د الوهيت نه دى. او يا به ټول ناقص القدرة وي او يو د بل قدرت ته به حاجت نه لري فلا يصلحون كل للالوهية ولي چي دوى ټول مكمل ته محتاج دي بل الخالق للسموٰات والارض هو المجموع من حيث المجموع لاكل واحد فلا حاجة الى هؤلاء الناقصى القدرة بل الله الواحد القهار الكامل القدرة بدون الشركة كاف في خلق السموٰات والارض بل جميع المخلوقات على حسب حكمته وارادته.

فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ

تفريع ده پر ماقبل. نو پاكي ده خداى لره يعني د نقائصو او عيبو څخه چي كافران يې پر ده وايي.

**پوهه:** چي اصل د سبحان الله دا سي ؤ اسبح الله (پر صيغه د متكلم) سبحانًا مفعول مطلق ؤ د اسبح من غير بابه لان اسبح من باب التفعيل وسبحانًا مصدر المجرد مثل انبت الله نباتًا او بعض علماء وايي چي سبحانًا په دې تركيب كي اسم مصدر دى يا علم مصدر يعني التسبيح، په هر صورت فعل سره د فاعله يې يعني اسبح حذف كړى لكثرة الاستعمال او مصدر چي سبحانًا ؤ معمول ته د اسبح چي كلمه د الله وه مضاف كړى سبحان الله څني جوړ سو وروسته تر اضافت اظهار د فعل يې نه دى روا كما في شرح الكافية للرضي والجامي رح لان المعمول لايرضى بمعانقة العامل الضعيف وهو المصدر حين يرى العامل القوي وهو الفعل يعني اسبح.

رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝

چي خالق دى د عرش يعني چي محيط دى پر ټوله عالم اجسام باندي او ځاى د تدابيرو او مقاديرو دى، چي دوى يعني مشركان و خداى ﷻ ته توصيف په كوي من اتخاذ الشريک والصاحبة والولد.

لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُونَ ۝

سوال نه كړل كېږي له خداى ﷻ څخه د كار چي دده اراده ورته وسي او وه يې كړي لانه يتصرف في ملكه ولا يسئل المالک عما يفعل في ملكه كيف شاء لا اعتراض عليه عقلاً ونقلاً، او بل سلطان د خداى ﷻ قوي دى او متفرد بالالوهية دى، نو ځكه به څوک ورته ويلاى سي چي دا كار دي ولي وكړى (وهم يسئلون) او د مافي السمٰوات والارض څخه پوښتنه كړل كېږي د عما يفعلون، ولي چي ددوى افعال تصرف دى په ملک د الله جل سلطانه فلا يجوز لهم ذالک التصرف الا باذنه واجازته فيسئلون عنهم من جانب الحق ﷻ لم فعلت الفعل الفلاني، مثلاً بندگان كه په خپل مال او ملک كي تصرف وكړي هغه په اجازه د خداى ﷻ دى او كه بل چا په مال كي د چا تصرف وكړى بالغصب والسرقة وغير ذالک فيسئله الله تعالى لم فعلت هذا الفعل بدون اجازته، يا يو سړى د خپلي كور والا سره جماع وكړي دا په اجازه د خداى ﷻ دى او كه د بلي ښځي نامحرمي سره زناء وكړي بې اجازې د خداى ﷻ ده، نو سوال ځني كېږي وعلى هذا فقس الافعال الاخر للعباد المجازة وغيرها فافهم.

**فائده:** اعتراض پر خداى ﷻ منحوس كار دى سبب د غضب د خداى پاک دى او موجب د غضا د خداى ﷻ دى، او امت مرحومه په اجماع سره وايي چي اعتراض پر خداى ﷻ كول چي ملک حق دى په افعالو كي د خداى ﷻ كفر دى وكذا الاعتراض على النبي ﷺ لانه انما يقول عن الحق لا عن الهوى. كريمه: ومالينطق عن الهوى انما هو وحي يوحى الآية. و اول المعترض على الله ﷻ هو ابليس عليه اللعنة ولي دى خداى پاک امر كړى په سجده سره و آدم ؑ ته ده داسي وويل اسجد لمن خلقته طينًا على طريق الاعتراض على الله ﷻ في ذالک الامر فلذالک صار ملومًا الى الابد اى ملعونًا.

## أَمِ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ آلِهَةً ط

آيا اخستي دوى يعني مشركانو د مكې ماسوى له خداى ﷻ څخه معبودان چي بتان دي كلمه د ام منقطعه ده په معنى د (بل آه) ده، بل لپاره د انتقال من مضمون الى مضمون آخر مناسب للاول او استفهام لپاره د توبيخ او انكار دى.

**پوښتنه:** توبيخ او انكار خو د مخه په آيت كي تېر سو (ام اتخذوا آلهة) نو په تكرار كي يې حكمت څه دى؟

**ځواب:** لپاره د استعظام د كفر د دوى او لپاره د تبكيت د دوى او لپاره د اظهار د غايت جهل د دوى تكرار وكړل سو.

## قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ ۚ هَٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَعِيَ

ته ورته ووايه يا محمد (ﷺ) چي راوړئ تاسي دليل ستاسي پر استحقاق د عبادت د بتانو اما دليلاً عقليًا او دليلاً نقليًا لانه لايصح القول والمدعى لا دليل عليه خصوصًا اذا كان في الجانب المقابل له يعني التوحيد دلائل عقلية كبرهان التمانع كما مر تفصيله ودلائل نقلية كالقرآن والمعجزات الباهرة. (هذا) اشاره ده و قرآن. تورات او انجيل ته يعني دا كتب ثلثة دليل دى د هغو كسانو چي زما سره راسره دي پر توحيد د خداى او پر بطلان د بتانو. ولي چي دا كتابونه پر دې اثبات د حقيقت د توحيد او پر بطلان د شرك سره متفق دى. نو دا كتب ثلاثه زما د امت دليل دى الى يوم القيامة.

## وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِي ط

او پند او نصيحت دى د هغو كسانو چي تر ما د مخه تېر سوي دي اى الامم الماضية. او عطاء رح له ابن عباس رض څخه روايت كړى دى چي هذا اى القرآن ذكر من معي وذكر من قبلي التورات والانجيل. والحاصل على كل تقدير چي تاسي اى مشركانو د مكې رجوع وكړئ و دغو كتب ثلثه وو ته چي تاسي په هغو كي دا پيدا كولاى سئ چي خداى پاك لره شريك سته؟ يا ولد سته؟ يا امر په اشراك د غير الله په عبادت كي؟.

**سوال:** مشركانو د مكې خو دا درې سره كتب سماويه خصوصًا قرآن نه منى چي

منزل من عند الله دی، نو څرنګه پر دوی احتجاج په کتب سماویه سره روا دی لان
مقدمات البرهان علی الخصم لابد ان یکون مسلمة عنده حتی یصح الالزام علیه؟

**ځواب:** صحت د کتب سماویه وو کونها من عند الله په معجزاتو باهراتو سره د
علیه الصلوة والسلام او د عیسی ؑ او د موسی ؑ ثابت ؤ او انکار د مشرکانو خو صرف
او صرف عناداً او تکبراً ؤ لم یعتد بانکارهم وجعلوهم کالمسلمین للکتب الثلثة.

**بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ الْحَقَّ فَهُمْ مُّعْرِضُوْنَ**

بلکې ډېر د دوی په حق نه پوهېږي چي له باطل څخه یې جلا کړي او په حق
عمل وکړي چي توحید دی او شرک پرېږدي چي باطل دی نو ځکه دوی روی
ګرداني له حق څخه و باطل ته کوي.

**وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ**

او مونږ نه دی را استولی تر تا د مخه یا محمد (ﷺ) یو رسول د رسولانو،
مګر مونږ وحي کړې دي و هغه ته چي په تحقیق نشته مستحق د عبادت بېله ما، نو
یو ازې زما عبادت کوئ.

**پوه سه:** چي کسره د نون عوض له یا ء څخه ده اضافت ده، په دې تعمیم بعد
التخصیص دی، یعني ثبوت د توحید او بیان د هغه او بطلان د شرک او بیان د هغه
حصر په دې درو کتابو کي نه دی بلکې دا امر مجمع علیه دی د ټولو رسولانو من
لدن آدم ؑ الی محمد ﷺ.

**وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا**

وایي دوی چي خدای ﷻ کړځولی دی ځان لره ولد، ولد عام دی نر او ښځي
دواړو ته شامل دی.

**درویش وایي:** چي اتخاذ الولد که څه هم نصاری وایي چي عیسی ابن الله او
یهودان هم عزیر ابن الله بولي، لکن په قول د بغوي ؒ دا آیت په شان کي د خزاعة
وو نازل سوی دی چي هغو ملائکه بنات الله بللې، دوی ویله چي خدای ﷻ لونې

د اميرانو د جن په نکاح کړي دي او ملکي يې لوڼي دي، نو ځکه دوی د ملکو عبادت کوي. او دا آيت (الکم الذکر وله الانثی تلک اذاً قسمة ضيزی) هم ددوی په شان کي نازل سوی دی.

**پوهه**: چي دا جمله عطف ده پر مضمون (ام اتخذوا آلهة من الارض) و مضمون قوله تعالی ام اتخذوا من دونه آلهة.

## سُبۡحٰنَهٗ ؕ بَلۡ عِبَادٌ مُّکۡرَمُوۡنَ ۙ﴿۲۶﴾

پاک دی خدای ﷻ له اتخاذ څخه د ولد، بلکې ملکي لوڼې د خدای پاک نه دي مګر عباد معزز عند الله دي او مقربون بندګاني د خدای ﷻ دي.

## لَا یَسۡبِقُوۡنَهٗ بِالۡقَوۡلِ وَ هُمۡ بِاَمۡرِهٖ یَعۡمَلُوۡنَ ﴿۲۷﴾

دوی وړاندي والی و خدای ﷻ ته نه کوي په خبرو کولو سره يعني بې اجازې د خدای ﷻ له جهته څخه د غايت ادب خبري نه کوي، او دوی په امر د خدای پاک عمل کوي يعني امتثال دامر الهي کوي او عصيان له امر څخه د خدای ﷻ نه کوي اصلاً وهذا معنی عصمتهم کما هو المشهور وبهذا جزم العلماء.

## یَعۡلَمُ مَا بَیۡنَ اَیۡدِیۡهِمۡ وَ مَا خَلۡفَهُمۡ

او خدای ﷻ علم لري پر هغو اقوالو او اعمالو چي دوی د مخه کړي وي او په هغو اعمالو او افعالو چي دوی څندولي وي يعني په مستقبل کي د زمان يې کوي.

**پوهه**: چي دا جمله تعليل ده د ماقبل يعني وهم بامره يعملون يعني چي خدای ﷻ علم لري پر قبلي او بعدي حالاتو ددوی او دوی هم په دې پوهيږي. نو دوی د خپلو اعمالو او اقوالو غايت مراقبت کوي، نو ځکه دوی لايسبقونه بالقول وهم بامره يعملون، او دغه تمهيد دی و مابعد ته يعني.

## وَ لَا یَشۡفَعُوۡنَ ۙ اِلَّا لِمَنِ ارۡتَضٰی

او دوی شفاعت نه کوي له دې هيڅ څخه مګر د هغه چا چي خدای راضي وي په شفاعت د هغه. قال ابن عباس رض الا لمن قال لا اله الا الله يعني ای من امة ای رسول کان ولذا لم يقل ابن عباس رض محمد رسول الله فافهم. وقال مجاهد رح الا لمن

رضى الله تعالى عنه والمآل واحد كما لايخفى، ولي چي په منځ كې د رضاء د خداى او د رضى بالشفاعة تلازم دى.

## وَهُم مِّنْ خَشْيَتِهِۦ مُشْفِقُونَ ﴿٢٨﴾

او حال دا دى چې ملائكه سره د هغه چې عباد مكرمون دي له بېرې ځخه د خداى ﷻ (اضافت دى د مصدر و مفعول ته والفاعل الملائكة) روح البيان وايي رېږدي او كاشفي وايي از مهابت وعظمت او ترسان.

**پوهه:** چې ابن شيخ په خپل تفسير كې وايي چې خشيت او اشفاق په معنى كې سره نژدې دي، د و مره فرق يې دى چې په خشيت كې جانب د مخشى منه معتبر دى و عظمته ومهابته وهو ههنا الله ﷻ، وفي الاشفاق جانب المخشي عليه يعني الاعتناء بشانه وعدم الامن من ان يصيبه مكروه، په پښتو كې يې فرق دا دى چې له فلاني ځخه بېرېږم او پر فلاني بېرېږم يعني ملائكه د خداى ﷻ له هيبت او جلال ځخه پر خپلو ځانو بېرېږي فتدبر.

## وَمَن يَقُلْ مِنْهُمْ إِنِّىٓ إِلَٰهٌ مِّن دُونِهِۦ فَذَٰلِكَ نَجْزِيهِ جَهَنَّمَ ۚ

يعني له خلګو يا له ملكو ځخه فرضًا وايي چې زه خداى يم ماسوى له الله ځخه، نو دغه شخص ته به مونږ جزاء وركړو د دوږخ.

**پوهه:** چې له دې آيت ځخه مقصود نفي د ربوبيت له غير ځخه د خداى ﷻ او نفي دادعاء د ربوبيت دى له ملكو ځخه او وعيد شديد دى د مشركانو چې بتان د خداى ﷻ شريكان بولي، او د نصارى وو چې مسيح د خداى ﷻ زوى بولي يا يې ثالث ثلثه بولي، او د يهودانو چې عزير ابن الله بولي كريمه لن يستنكف المسيح ان يكون عبدًا لله ولا الملائكة المقربون، ومن يستنكف عن عبادته ويستكبر فسيحشرهم اليه جميعًا.

## كَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٢٩﴾

يعني دغسې لكه چې ذكر شول من جزاء من يدعى الالوهية بنجري، مونږ جزاء وركوو وه ظالمانو ته چې وضع د الوهيت يې ځايه وكړي كما هو معنى الظالم.

أَوَلَمْ يَرَ الَّذِينَ كَفَرُوٓا أَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنٰهُمَا

آیا علم نه لري هغه کسان چي کفر کوي (نو رؤیت په آیت کي په معنی د علم دی یعني رؤیت بصري نه دی) دا چي اسمانونه اووه دي او دا چي مځکي اووه دي په اول خلقت کي سره متصل دي (ففتقناهما) يعني دوی، نو مونږ سره جلا کړه په منځ کي ددوی مو هواء پیدا کړه.

**سوال:** کانتا يې تثنيه ولي راوړه او سره ددې چي سمٰوات او مځکه خو ډېر دي؟

**ځواب:** مراد دلته جماعت د اسمانو او جماعت د مځکو دی، نو دوه جماعته دي (رتقًا) ابن عباس رض، قتاده، ضحاک او عطاء رح وايي چي شيئًا واحدًا يو په بل پسي مبنتي وه فصل يې نه درلودی.

**پوه سه:** چي رتق په لغت کي سد او ضم ته وايي او فتق الشق او فتح ته وايي.

**سوال:** رتقًا خو خبر د کانتا دی، نو ولي يې مفرد راوړی؟

**ځواب:** رتقًا مصدر دی، والمصدر لايثنى ولايجمع.

**سوال:** د مصدر حمل نو څرنګه پر اسمانو او مځکي روا دی؟

**ځواب:** حمل يې مبالغةً دی لکه زيد عدل، يا يې د مضاف يعني ذواتی رتق او يا په تاويل د مشتق ای المرتوق.

**پوه سه:** چي حسن، زيد بن علي، ابو حيان او عيسى رح تو له قراء د غه لفظ رتقًا وايي بفتح التاء او هغه مصدر نه بولي بلکې په معنی د مفعول دی ای المرتوق.

**سوال:** پر دې تقدير چي په معنی د مفعول سي، نو تثنيه ولي نه وايي، زمخشري رح ددې سوال په ځواب کي وايي چي د رتقًا موصوف محذوف دی ای شيئًا رتقًا والشئ اسم جنس يتناول القليل والكثير، ابو الفضل الرازي رح وايي چي اکثره علماء پر دې رايه دي چي رتقًا په سکون د تاء مصدر دی او په حرکت د تاء اسم دی په معنی د مرتوق دی.

**فائده:** ددې فتق فائده دا ده چي تميز د هري طبقې ده اسمانو او د مځکي سره راسي.

**درويش وايي:** چي د رتق او فتق په معنی کي اختلاف دی، اظهر توجيه يې هغه ده لکه عکرمه او عطيه چي وايي، او د وروسته آيت سره سمون هم لري، کانت السماء رتقًا يعني باران يې نه اوراوه او مځکه رتق وه نباتات يې نه شنه کول، نو خدای ﷻ خپل په قدرت د حکمت سره برابر آسمان يې فتق کړی په باران سره او مځکه يې فتق کړه د نباتاتو په راوتلو له دې ځخه.

**سوال:** باران خو له اول آسمان څخه اوري، نو سمٰوٰت يې جمع ولې راوړه؟
**ځواب:** مراد خو اول اسمان دی جمع يې په اعتبار د آفاقو ده چې پر هر افق باران اوري او يا ټوله اسمانونه مراد دي چې ټوله د باران په اوريدو کې دخل لري، او ارض چونکه مفرد راوړې ده دې توجيه ته ضرورت نه لري.
**پوښتنه:** تا وويل دا اظهر تفسير دی د رتق او فتق دليل يې څه دی؟
**ځواب:** د دې آيت مخاطبه خو د کفارو سره ده چې خدای د خپل قدرت نخښې او نښانې ورته بيانوي، او کفار ټوله چې لږ عقل لري په دې پوهيږي چې باران د آسمان له خوا اوري او کلونه کلونه د باران قحط وي، او نباتات له مځکې څخه راوزي او ډير کلونه چې باران نه وي مځکه له نبات څخه خالي وي، نو د اوريښت او د مځکې څيرل په نبات سره امر حادث دی او هر حادث محدث واجب الوجود غواړي اما کون المحدث واجب الوجود لا محدث آخر لان الحادث مستعير في وجوده فلا يطيق افادة الوجود لغيره.
**سوال:** د يوه حادث محدث دې بل حادث وي د هغه لپاره بل وهكذا؟
**ځواب:** نو تر کومه پورې به دا سلسله روا نه وي تسلسل خو عقلاً ونقلاً باطل دی فلابد ان ينتهی سلسلة الايجاد الى واجب الوجود وهو الله عز وجوده بلا شركة غيره فيكون هذه الآية الزامًا تامًا على المشركين.
**نکته:** قدرت د خدای ﷻ دی چې آسمان سره د ډيره کلک والي په ډير لين شي سره لکه اوبه فتق (څيري) کړي، او مځکه بلکې غرونه د مځکې په يو نازک نبات سره فتق کړي، دا ؤ بيان د اظهر توجيه د دې آيت، او کعب احبار او نور بعض مفسرين وايي چې خدای ﷻ په اول خلقت اووه اسمانونه او مځکه سره متصل او جفت پيدا کړه بيا يې تر منځ د دوی لپاره د تميز د دوی تر منځ هوا او باد پيدا کړی، نو سره جلا جلا يې کړه ومثل هذا منقول عن المجاهد والسدي رحمهما الله.
**سوال:** په دې معنی به نو دا آيت پر مشرکانو چې د دې آيت مخاطب دي څرنګه به الزام راسي، دوی خو په دې سلسله هيڅ خبر نه وه او نه د دې سلسلې قائل وه؟
**ځواب:** هو! دوی خو بالفعل که څه هم خبر نه وه لکن قدرت پر علم د دې مسئلې يې درلودی چې يا يې استفتاء له علماؤ څخه کړې وای يا يې مطالعه د

کتب سماویه وو کړي وای، نو په دې آیت تمکن ددوی او قدرت ددوی پر علم ددې سلسلې پر دوی باندې الزام دی فافهم وخل خاطرک علی الخیالات الفاسدة للعلماء الطبیعین خصوصًا الضال المضل الاعظم.

دیمقراطیس (من ان وجود العالم الکبیر انما هو بالاتفاق بدون الموجد والخالق) لعنه الله دې فکر نه وهي چې یوه دروازه بېله نجاره نه جوړیږي او نه یوه خونه بې بناء جوړیږي وهکذا، نو څرنګه دا عالم کبیر بېله صانع قدیر پیدا سو، وقد رد مذهبه الشیخ ابن سینا، في الهیات الشفاء اشد رد فطالعه، نو دې ډلې ته دهریان وایي چې اوس هم په نړی کې ډېر خلک چې خلک یې روشن فکران بولي ددغې ګمراه کن ډلې سره هم مذهبه او هم نوا دي.

**درویش وایي:** چې ددې ډلې سره د سوال او ځواب لپاره عقلي علوم په کار دي، ولې چې دوی قال الله وقال الرسول نه مني، او ډېره ښاهانه خبره داده چې د داسې خلکو سره سرې په جوال کې ځان نه واچوي.

## وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَىْءٍ حَىٍّ ۖ أَفَلَا يُؤْمِنُونَ ۝

**درویش وایي:** چې دا هغه آیت چې ما د مخه وویل چې د ترجمې سره د ابن عطیه او عکرمه وروسته آیت مناسب دی، او دا جمله عطف پر فتقناهما، والمعنی فتقنا السماء وانزلنا منها ماء وفتقنا الارض واخرجنا منها نباتًا او موږ ګرځولي له هغو اوبو څخه چې له اسمانه نازلیږي هر شی ژوندی (افلا یؤمنون) آیا دوی یعنې مشرکان ایمان نه راوړي پر وحدانیت د خدای ﷻ. الاستفهام للانکار او نفي د نفي اثبات دی یعني باید ایمان یې راوړی وای، وکلمة الفاء للتعقیب یعني وروسته تر لیدلو ددې دلائل قاطعه وو چې پر وجود د صانع واجب الوجود المتصف بکمال القدرة وجلیل الحکمة دوی ایمان نه راوړي.

**پوښتنه:** د نباتاتو چې یوه نوع د حیوٰة لري له اوبو څخه خو ظاهرۃ ده ولې اوبه د اسمان لکه نطفه د حیوان ده، او دغه رنګه د بعض حیواناتو لکه حشرات الارض هم ظاهره ده، ولې اوبه د اسمان لکه نطفه د حیوان ده، او دغه رنګه د بعض حیواناتو لکه حشرات الارض هم ظاهره ده، ولې د حشرات الارض خلق په رطوباتو سره چې د اسمان له اوبو څخه پیدا کېږي تینګې اړیکې لري لکن اکثره

حیوانات خو له نطفې څخه پیدا کیږي یا بالذات یا بالواسطه لکه د چرګې له هګۍ څخه چیچې، فما معنی قوله تعالی (وجعلنا من الماء کل شئ حي)؟
**ځواب:** اوبه لوی شی دی د بقاء د حیوان او حیوان ډېر ضرورت ورته لري او په اوبو سره فائده اخلي، نو ګویا چې ټول له حیوانات له اوبو څخه پیدا سوي دي، نو مجازًا دا صحیح ده وجعلنا من الماء کل شئ حي کما في آیة خلق الانسان من عجل، ولې چې انسان ډېر تلواري دی ګویا له عجل څخه پیدا دی.
**سوال:** کل شئ خو جمادات و ته هم شامل دی، نو هغه د اوبو سره څه اړه لري؟
**ځواب:** مراد په آیت کي کل شئ قابل للحیوة له اوبو څخه یې ګرځوو، او بعض مفسران د اول سوال په ځواب کي په آیت کي مضاف محذوف بولي، والتقدیر وجعلنا من الماء بقاء کل شئ.

## وَجَعَلْنَا فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِهِمْ

**پوهسه:** چي رواسي جمع د راسیة والموصوف محذوف ای جبال ثوابت، او جعل که څه هم په معنی د خلق دی چي مفعول غواړي، نو مفعول یې رواسي دی، او في الارض حال دی له رواسي څخه قدم علی ذی الحال لتنکیره، نو معنی داسي ده، پیدا کړي دي موږ رواسي حال کونها في الارض، او که جعل په معنی د تصییر سي چي دوه مفعوله غواړي، نو مفعول اول یې رواسي دی او مفعول ثاني یې في الارض، نو معنی یې داده ګرځولي دي موږ په مځکه کي رواسي، اول ته په اصطلاح د عقلي علوم جعل بسیط وایي او دویم ته جعل مرکب وایي فافهم.
**پوهسه:** (مید) ښوریدلو ته وایي او عبارت په حذف د مضاف دی یعني کراهة ان تمید چي مځکه حرکت وکړي متلبسة بهم یعني که غورزنه نه وای، او یا تقدیر داسي دی لئلا تمید بهم دده لپاره چي مځکه حرکت ونه کړي متلبسة بهم والمآل واحد.
**سوال:** قرینه پر دې حذف څه شی ده؟
**ځواب:** په کلام کي د عربو دا حذف شهرت لري فلا یلبس المراد فالشهرة قرینة للحذف.

## وَجَعَلْنَا فِيهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ۝

**پوهسه:** چي ضمیر د فیها یا راجع و مځکي ته دی چي مؤنث سماعي ده او یا و

(رواسي) ته یعني غرونه، او جلالین یوازي دویمه معنی راوړي ده ولي چي غرونه ډېر محتاج دي ولارو ته (یعني خلک د غرو لارو ته ډېر محتاج دي) (فجاجًا) جمع د فج ده وهو الطریق الواسع بین الجبلین. قاموس (سبلاً) وهو جمع سبیل چي طریق واضح ته وایي.

**پوه سه:** چي په دې کي بیان د بل قدرت د خدای ﷻ دی او نعمت دی پر خلکو کما یدل علیه قوله تعالی (لعلهم یهتدون) ای لکی یهتدون ای الناس الی مصالحهم. نو لعل په معنی د لام کی دی.

**وَجَعَلْنَا السَّمَآءَ سَقْفًا مَّحْفُوظًا ۖ**

او گرځولی دی موږ اسمان بام د کرې د مځکي چي محفوظ دی له ړېدلو څخه بقدرته تعالی من غیر عمد بېله میلانو تر وخت معلوم پوري یعني تر یوم القیامة پوري.

**درویش وایي:** چي دا بل آیت او دلیل دی د قدرت د رب ﷻ او ضمنًا نصحت وه خلکو ته هم دی او یا معنی د آیت داده چي آسمان محفوظ دی د استراق الشیاطین المسموعات من الملائکة بالشهب. مفسرین وایي چي د استراق السمع لارې پر شیطانانو ډېره تنګه سوه په سبب د بعثت د سید المرسلین ﷺ کما جاء في مواضع آخر من القرآن المجید وورد فیه الاحادیث الصحیحة في بخاري ومسلم وغیرهما.

**وَهُمْ عَنْ اٰيٰتِهَا مُعْرِضُوْنَ ۝**

او مشرکان د مکې له دلائل عظیمه وو څخه د اسمانو من الشمس والقمر والکواکب وغیرها چي دال دي پر قدرت عظیمه د خدای ﷻ او پر وجود د صانع او پر وحدانیت د هغه کما مر في بیان برهان التمانع بالتفصیل اعراض کونکی دی یعني دوی په دغو آیاتو کي فکر او غور نه کوي حتی چي شرک پرېږدي.

**فائده:** عقل چي یو عظیم نعمت و انسان ته ورکړل سوی دی او په سبب د عقل یې تفضیل پر نورو حیواناتو ورکړی دی، کریمه (ولقد کرمنا بني آدم) د دې لپاره چي په عجائبو مصنوعاتو کي د خدای ﷻ غور وکړی او قلب یې منبع د نور المعرفة وګرځي او درجي ته د علم الیقین او حق الیقین ورسېږي کما هو معنی الاحسان علی ماجاء في الحدیث الطویل المروي عن عمر ﷺ بروایة البخاري

ومسلم. حين جاء جبرئيل علیه السلام الی النبي ﷺ في صورة البشر وسئله ما الايمان وما الاسلام حتی قال ما الاحسان؟ قال رسول الله ﷺ الاحسان ان تعبد الله كانك تراه فان لم تكن تراه فانه يراك آه.

**وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ**

او خدای هغه ذات دی چي پيدا كړي يې ده شپه او ورځ او لمر او سپوږمۍ (يعني لمنافع عباده ومخلوقه)

**پوه سه:** چي په قرآن عزيز كي شپه تر ورځي دمخه راځي يا ددې سببه چي قرآن عزيز د عربو پر اصطلاح نازل سوی دی، په عربو كي كه مياشت بيانوي او كه شبانه روز هغه يې د شپې څخه شروع كوي كما هو المعلوم، او بل دا چي شپه پر ورځي شرافت لري. ولي شپه وخت د آرام او استراحت ده. نو نمونه د جنت ده، او ورځ وخت د تعب او ستړيا ده چي نمونه د دوږخ ده، او بل شپه عمومًا د احبه وو سره د ملاقات وخت دی ولهذا وقع معراجه ﷺ في الليل دون النهار. او ورځ د دوست او دښمن د دواړو د ليدلو وخت دی فافهم. پوه سه! چي دا آيت د بعض آياتو د قدرت بيان دی كما لايخفی (كُلٌّ) التنوين عوض من المضاف اليه دی كل واحد منهما (في فلك) مظهري رح وايي ان كل واحد منهما في فلك واحد وهو السماء الدنيا آه. او روح البيان وايي كل واحد من الشمس والقمر في فلك علی حدة كما يشهد به الرصد آه. او روح المعاني وايي بناء علی ان المجموع ليس في فلك واحد آه. قاموس وايي چي فلك دی د ستورو الذي يضمها. وفي كلام العرب الفلك كل شئ مستدير. او بعض علماء وايي فلك هغه آسمان دی چي ستوري پكښي ښخ وي وكل كوكب يجری في السماء الذي مدر فيه آه وهو قول قتادة الی غير ذالك من المذاهب (يسبحون) تگ كوي په فلك كي په اساني سره لكه اوباز چي په اوبو كي اوبازي كوي.

**پوه سه:** چي ضمير د جمع راجع دی وشمس او قمر ته په نېز د بعض مفسرينو رح.

**سوال:** لمر او سپوږمۍ خو دوه دي. نو ضمير د جمع څرنگه ورته راجع كړل سو؟

**ځواب:** جمعيت د ضمير په سبب د اختلاف د مطالع دی. ولي چي د هيئت په كتابو كي وايي چي شپږ مياشتي لمر او سپوږمۍ په جلا جلا مطلع كي راځيږي ثم

یعود ان في تلک المطالع شپږ میاشتي. او بعض مفسرین وایي چي ضمیر د جمع راجع دی کواکبو ته.

**سوال:** کواکب خو نه دي ذکر سوي؟

**ځواب:** شمس او قمر پر هغو دلالت کوي لکونها اشهر الکواکب والعمدة فیها؟

**سوال:** جمع بالواو والنون خو لپاره د ذوی العقول راځي کما تقرر في الصرف والنحو او لمر او سپوږمۍ یا نور کواکب خو له ذوی العقول څخه نه دي؟

**ځواب:** چونکه سباحت د ذوی العقول کار دی هغه چي دوی ثابت، نو ضمیر د جمع د ذوی العقول یې هم ورته راجع کړی، او بعض حکماء او ریاضي والا چي شمس او قمر او افلاکو ته ارادي حرکت ثابتوي او له ذوی العقول څخه یې بولي هغه په اسلام کي ثبوت نه لري.

**درویش وایي:** چي صاحب د روح المعاني دو مره لوی بیان په ورقو پر کار اچولی دی چي د دې تفسیر ایوبي سره هیڅ مناسبت نه لري فلهذا ترکنا نقله، او روح البیان په خپل وار څه دراز بحث کړی دی. له هغه څخه هم د تفسیر ایوبي ساحه تنګه ده، او مظهري مختصر بیان کړی دی ورو سته یې والله اعلم ویلی دی. د درویش په نېز دا ډېره ښایسته خبره ده زه هم وایم والله اعلم.

**بوه سه:** چي سورت (اذا جاء نصر الله والفتح) الی اخیرها چي نازل سو رسول الله ﷺ وپوهېدی چي زما د سفر و ملاء اعلی ته نژدې سو قال یارب من لامتي، او بغوي او روح البیان وایي چي دا آیت هلته نازل سو چي کافرانو به ویل تتربص بمحمد ﷺ ریب المنون. قال الحسیني في تفسیر ماقالوا انتظار میبریم که گردباد حوادث بر آید ویاران محمد ﷺ متفرق ساخته و اورا در روطهٔ هلاک اندازد آه. نو دا آیت نازل سو.

وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن قَبْلِكَ الْخُلْدَ ۖ أَفَإِن مِّتَّ فَهُمُ الْخَالِدُونَ ﴿٣٤﴾

مونږ نه ده ګرځولې د هیڅ بشر لپاره خلود یعني دوام. البقاء في الدنیا لحکمته تعالی في ذالک. آیا که ته وفات سې نو دوی یعني کفار به همېشه ژوندي وي حتی چي دوی ستا په مرګ خوشالي کوي؟ قال الامام محمد بن ادریس الشافعي رح:

تمنی رجال ان اموت وان امت ...... فتلک سبیل لست فیها باوحد

**بوه سه:** چي کلمه د ما لپاره د ترتب ده پر ماقبل او همزه د استفهام لپاره د انکار دی او محل د انکار يې خلود د اهل مکه وروسته تر موت د عليه الصلوة والسلام.

فقل للشامتين بنا افيقوا ...... سيلق الشامتين كما لقينا

وو ايه هغو کسانو ته چي خوشاله وي په مونږ يعني زمونږ پر مرگ سره بيدار ه سي ژر دی چي ملاقي به سي يعني مرگ د دوی سره يعني د شاتمين زمونږ په مرگ سره هغه شی چي زمونږ سره ملاقي سوی ؤ يعني مرگ.... قال شيخ سعدي رح:

مکن شادماني به مرگ کسی ...... که دوان پس از وی نماند بسی

**فائده:** جمله د (فان مت آه) عطف ده پر مضمون د (ما جعلنا لبشر آه) والمعنى سلمنا انک لست بخالد فان مت فهم الخالدون والامر ليس كذالك.

## كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ۗ

هر نفس خوند څکونکی دی د تريخ والي او د جلاوالي د روح له بدن څخه. د ا جمله تاكيد ده لما قبله وما جعلنا لبشر من قبلك الخلد.

**فائده:** له نفس څخه مراد نفس ناطقه دی چي روح انساني دی. او د موت له نفس څخه مراد مفارقت دی له بدن څخه او ذوق پر خپل ظاهر نه دی محمول چي په پېښتو يې خوند څکل بولي لان الموت ليس من جملة المطعوم حتى يتصور فيه الذوق بلكي ذوق ادارک خاص دی مجازاً.

## وَنَبْلُوكُم بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً ۖ وَإِلَيْنَا تُرْجَعُونَ ﴿٣٥﴾

مونږ معامله د امتحان کوو د تاسي سره (فقير معامله ذکر کړه له دې سببه چي حقيقت اختبار او امتحان پر خدای ﷻ محال دی لان السبب الاختبار والامتحان هو الجهل بحال من يمتحنه ويختبره والجهل محال على الله ﷻ) له شر څخه مراد سختي او ناجوړي و فقر وغيرها مما يكره المرء. او له خير څخه مراد رخاء او صحت او غناء وغيرها مما يحبه المرء. او په قيامت مونږ ته راجع کړل کېږئ، يعني پر شکر او صبر به ثواب درکړل سي او پر ناشکری او جزع به د دوږخ عذاب درکړل سي.

**بوه سه:** چي د فتنة معنی هم ابتلاء او امتحان دی فهو مفعول مطلق (لنبلوكم) من غير لفظه نحو قعدت جلوسا يعني چي ښکاره سي چي تاسي د ماتحبون شکر

وایاست او که نه، او پر ما تکرهون باندي صبر کوئ او که جزع او فزع کوئ.

**فائده:** له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي د دنیا ژوند لپاره د ابتلاء دی او انسانان د ثواب او عذاب د اعمالو سره مخامخ کول دي، کریمه: فمن یعمل مثقال ذرة خیرًا یره ومن یعمل مثقال ذرة شرًا یره..... حافظ شیرازي رح وایي:

خوش بود گر محک تجربه آید بمیان ... تا سیه روی شود هر که دروغش باشد

د غش معنی کوټ ده.

**شان نزول:** ابن ابی حاتم رح له سدي رح څخه روایت کړی دی چي یوه ورځ آنحضرت ﷺ پر ابو جهل او ابو سفیان تیرېدی دوی دوو خبري سره کولې او ابو جهل چي علیه الصلوة والسلام ولیدی استهزاءً یې ابو سفیان ته وویل او وه یې خندل دادی نبي د عبد مناف راغلی. ابو سفیان ته درد ورغلی وه ابو جهل ته یې وویل ما تنکرون انیکون من بني عبد مناف نبي؟ الی اخیر الحدیث فنزل هذه الآیة

وَإِذَا رَءَاكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِن يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا

کوي په بعث د رسولانو او په انزال د کتابو، رحمة علیهم یا مراد له ذکر الرحمٰن څخه قرآن دی (هم) ثاني تاکید دی کافران دي، روایت سوی دی چي یو وخت ابو جهل له رسول الله ﷺ څخه واورېدل یا الله یا رحمٰن. میدان یې کړه خلکو یعني مشرکانو ته یې وویل چي محمد موږ له شرک څخه منع کوي او دی په خپله خدای ته شریک وایي، موږ خو نه پوهېږو بېله رحمٰن الیمامة یعني مسیلمة الکذاب چي په نامه د رحمٰن الیمامة مشهور ؤ. کما قال الله تعالی في موضع آخر من القرآن ردًا علیهم قل ادعوا الله او ادعوا الرحمٰن ایا تدعوا فله الاسماء الحسنی.

## خُلِقَ الْإِنسَانُ مِنْ عَجَلٍ ۚ

پیدا کړل سوی دی انسان له تلوار څخه.

**یوه سه:** چي دا آیت مبالغه ده په تلوار کي د انسان په هر کار کي یعني چي هر کار ته یې سودا سوه په عاقبت کي یې فکر نه وهي بلکي عجولانه هغه کار کوي او په بعض کارو کي اخیر الامر پښېمانه وي، نو ګویا انسان له نفس تلوار څخه پیدا دی.

**یوه سه:** چي عرب دا محاوره لري چي هر کار چي سړی ډېر کوي له هغه څخه یې پیدا بولي مثلاً یقولون فیمن کان کرمه وسخائه خلق فلان من کرم او که د چا غضب ډېر وي یعني قوة غاضبه یې غالب وي، نو وایي خلق فلان من غضب، د دې معنا دا ده چي د غه کار یا صفت د ده سره لازم دی. سعید بن جبیر رض وایي چي په ابو البشر آدم علیه السلام چي روح داخل سو په سر او په سترګو کي یې د جنت مېوې ولیدلې چي نس ته یې روح ور ورسېدی د جنت مېوو ته یې اشتها، وسوه، نو دی وغورځېدی د مخه تر دې چي روح یې پښو ته راغلی وي ډېر په تلوار یې د ولاړېدو قصد وکړی، نو چونکه په پښو کي یې روح نه ؤ غځار سو فقیل خلق الانسان من عجل نو چونکه آثار الآبا، تظهر في الابنا، په عیال او نسل کي د ده هم عجلت ساري سو، په دې آیت کي رد دی پر کفارو چي د انبیا کرامو علیهم السلام په کارنامو او معجزاتو کي د غور له نظره کار نه اخلي بلکي عجولانه وایي انکارًا لنبوتهم انما انت بشر، او د قرآن کریم په معجز آمیز بلاغت او قصص او امثالو په بې فکرۍ عجولانه دا بې ویل هذا سحر یا کهانة یا شعر یا ما یعلمه الا بشر وامثال هذا في شان القرآن والنبي علیه السلام والمعجزات، او بعض مفسرین وایي خلق الانسان یعني آدم خلقه الله تعالی بعد کل شئ في آخر ساعة

من يوم الجمعة فاسرع الله في خلقه قبل مغيب الشمس ولا يخفى مافيه فتامل. او بعض مفسرين وايي چي عجل ختو ته وايي. نو معنى داده خلق آدم من طين. صاحب القاموس وايي العجل محركة الطين والحمائة (لوشي) ومن عجولة الانسان قول نضربن الحارث اللهم ان كان هذا (اى مايقوله محمد) حقا من عندك فامطر علينا بحجارة من السماء او ايتنا بعذاب اليم (يعني له سببه دده) چي د ما قاله محمد ﷺ څخه خو مونږ منکر يو.

**اعرابي وايي**: اياكم والعجلة فان العرب تكنيها ام الندامات (ځان ساتي له تلوار څخه، ولي چي عرب په اسم كنيه سره عجلت ام الندامات بولي يعني مورد پښېمانيو) يو شاعر وايي:

لا تعجلن لامر انت طالبه........ فقلما يدرك المطلوب ذو العجل
فذو التاني مصيب في مقاصده........ وذو التعجل لا يخلو عن الذلل

قال آدم في وصاياه لاولاده، وكل عمل تريدون ان تعملوه فقفوا له ساعة فاني لو وقفت ساعة (اى في الاكل من الشجرة) لم يكن اصابني ما اصابني (چي كالي راباندي توى سوه او بربنډ (لغ لغړ) سو آه) فلا بد من التاني في الامور الدنيوية والمقاصد الحسنة، بيت:

چو صبح وصل او خواهد دميدن عاقبت جامي
مخور غم گر شب هجران بپايا ديري آيد

**درويش وايي**: چي تعجيل او تكبر دواړه اول له ابليس څخه سرزد سوي دي چي د ى خداى پاک امر کړى په سجدې و آدم ؑ ته ده په عجولانه تكبر سره داسي وويل ااسجد لمن خلقت طينا.

سَأُورِيكُمْ ءَايَٰتِى فَلَا تَسْتَعْجِلُونِ ﴿٣٧﴾

ژر دى چي زه به ووينم په تاسي ايها المؤمنون نعمتونه خپل په دنيا كي لكه واقعه د بدر او په اخرت كي عذاب النار للكفار. تاسي يې په تلوار مه غواړئ قبل الوقت المقدر لها.

وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٣٨﴾

او وايي كفار د مكې كله به وي وخت د عذاب موعود في الدنيا او القيامة.

**پوه سه**: چي دا استفهام لپاره د استبعاد دئ چي مبني پر استعجال دی، وهذه الجملة عطف علی الشرطية السابقة اعني اذا راک للذين کفروا الآية.

**پوه سه**: چي د ان کنتم مخاطب عليه الصلوة والسلام او اصحاب دي، والمعنی ان کنتم صادقين باتيان العذاب او اتيان يوم القيامة فبينوا وقت اتيانها دا جزاء د شرط ده.

لَوْ يَعْلَمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

که چيرې خبر سي هغه کسان چي پر کفر دي.

**پوه سه**: چي (لو) شرطيه دی جزاء يې محذوفه ده، لکه چي موږ به يې بيان کړو.

حِيْنَ لَا يَكُفُّوْنَ عَنْ وُّجُوْهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ

هغه وخت چي دوی نسي دفع کولای له مخانو څخه خپل اور يعني د دوږخ او نه يې له شاوو څخه خپل يعني په خپل قدرت، او نه ددوی سره مرسته کول کېږي يعني چي بل څوک دي دا عذاب النار له دوی څخه دفع کړي، والجزاء لما اقاموا علی کفرهم. دوی به پر کفر ده نه وای پاته سوي بلکې ايمان بې راوړی وای (حين) مفعول به د يعلم دی.

**پوه سه**: چي مقصود احاطه د اور ده پر دوی د ټولو جوانبو څخه، تخصيص د مخانو او د شاوو چي يې وکړی چي دا دوه لوی اړخونه د انسان دي، نو پر نورو خو يې احاطه بطريق الاولی کړې ده.

بَلْ تَأْتِيْهِمْ بَغْتَةً

بلکې راځي دا عذاب موعود ناببره.

**پوه سه**: چي ضمير د تاتي يا راجع دی نار ته چي مونث سماعي دی يا راجع و حين ته دی تانيث د ضمير يې په اعتبار د تاويل د حين په ساعت سره دی يا راجع و وعد ته دی په تاويل د عدة.

**فائده**: کلمه د بل لپاره د اضراب د استبعاد ددوی ده چي قيامت او عذاب يې بعيد باله، کما يدل عليه قولهم متی هذا الوعد، والمعنی بلکې راځي به دوی ته اور يا ساعت يا عده ناببره.

فَتَبۡهَتُهُمۡ فَلَا يَسۡتَطِيعُونَ رَدَّهَا وَلَا هُمۡ يُنظَرُونَ ۝

نو به دغه اوریا ساعت یا عده دوی حیران وګرځوي، نو دوی طاقت د رد د ساعت یا د اور د دفع کولو نه لري، او نه دوی ته مهلت ورکول کېږي چي بیر ته دي دنیا ته ولاړ سي چي ایمان راوړي ولي چي د دوی هغه پخواني مهلت د دنیا کافي دی. سعدي شیرازي قدس سره وایي:

تو پیش از عقوبت در عفو کوب ...... که سودی ندارد فغان زیر چوب

**نکته**: پوه سه! چي په (لاهم ینصرون) کي یې مسند الیه دمخه کړی پر مسند فعلي لپاره د حصر یعني چي عدم نصرت حصر دی پر کافرانو، ولي چي د عصاة المؤمنین چي بې توبې مړه سوي وي نصرت یې کېږي په شفاعت د انبیاء والملائکة الکرام علیهم السلام وصلحاء الامةرح.

**فائده**: دا خبره متفق علیه شرعًا وعقلاً و کشفًا ده چي هر کمال چي انسان په دې ژوند کي او په دې دار الدنیا کي حاصل نه کړي پس له مرګه او په قیامت کي یې نسي حاصلولای فعلم ان الفرصة غنیمة والموت یاتي بغتة والمرء لایقدر ردها ولا تدارک مافاته، سعدي رح میگوید:

نګه دار فرصت که عالم دمیست ...... دمی پیش دانا به از عالمیست

نقل هذا المضمون روح البیان عن الفکوک لصدر الدین القنولي قدس سره.

**پوښتنه**: انبیاء علیهم السلام خو کمال د شفاعت د عصاتو خو په قیامت کي پیدا کېږي؟

**ځواب**: دا کمال خو دوی ته حاصل في الدنیا ؤ لکن ظهور یې په قیامت وسو.

**سوال**: په صحیح حدیث کي راغلي دي چي خدای پاک داخلوي رحمتونه د مړو په قبرو په مثال د غرو په دعا د ژوندو او کما قال علیه السلام، نو دا کمال د مړو نه دی وروسته تر مرګ که څرنګه؟

**ځواب**: کلا! دا د دوی کمال نه دی بلکي دا نصرت او شفاعت دی د ژوندو کما لایخفی.

وَلَقَدِ ٱسۡتُهۡزِئَ بِرُسُلٖ مِّن قَبۡلِكَ

**پوه سه**: چي لام موطئه د قسم محذوف دی، او تنوین د (رسل) لپاره د تعظیم

او تکثیر دی ای بالله چي پسخند وهل کړه سوی په دیرو رسولانو چي خاوندان د لویو مرتبو وه (من قبلک) تر تا د مخه، په دي آیت سره تسلي ورکول دي و علیه الصلوة والسلام ته چي قوم د ده قریشو به په ده پسخند واهه کما مر في قوله تعالی واذا راک الذین کفروا ان یتخذونک الا هزوًا. او دا جمله عطف پر هغې جملې ده وجه د تسلي د علیه الصلوة والسلام چي دا استهزاء په رسولانو عادت قدیمه ده فاصبر علیه ان کما صبر من قبلک من المرسلین. عرب وایي البلیه اذا عمت هانت او پښتانه وایي د عالم سره غم نه غم.

# فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ

نو احاطه به وکړه په دي آیت کي وعد خفي دی د علیه الصلوة والسلام سره په نصرت پر قوم د ده، پر هغو کسانو چي پسخند بي واهه د دوی څخه هغه شی دوی په هغه پسخند واهه یعني د رسول د خوا چي به دوی په عذاب الهي بېرول کېدل دوی به پسخند په واهه، نو جزاء د هغه پسخند پر دوی احاطه وکړه (نو د ماکانوا سره مضاف محذوف دی وهو لفظ الجزاء).

**بوه سه:** چي پر قریشو د بدر ورځ هم جزاء ده استهزاء احاطه وکړه، ولي چي د دوی لوی لوی سرداران یکښي اوویا (۷۰) کسه ووژل سول.

# قُلْ مَن يَكْلَؤُكُم بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمَٰنِ

(قل یا محمد للمستهزئین بک) څوک به ستاسي حفاظت وکړي د شپې او د ورځي من عذاب الرحمن کذا قال ابن عباس رضي الله عنه فالعبارة بحذف المضاف ان اراد بکم او نزل بکم یعني نسته حافظ او کافي له عذاب څخه د رحمٰن الا رحمته العامة یعني چي ستاسي څخه دي هغه راغلی عذاب دفع کړي یا دي مهلت درکړي. یعني په بتانو مه نازېږئ چي دا آلهه باطله جمادات دي عذاب الهي له تاسي څخه دفع کړي.

**فائده:** شپه چي یې تر ورځي مقدمه کړه یا له دې کبله چي دواهي او عذابونه د شپې راځي او یا له دې سببه چي عذاب د شپې سخت دی تر ورځي ولي چي مستغیث او نه ناصر نه شفاعت کونکی د شپې پیدا کېږي بخلاف النهار په لفظ کي د رحمٰن اشاره ده چي کهالي ستاسي اوس هم رحمت عده د خدای ج ده.

ع:...... ای کریمی که از خزانه غیب گبر و ترسا وظیفه خور داری
یا تنبیه پر دې ده چې عذاب د رحمٰن چې اراده یې وسي نو ډېر سخت دی.
ولهذا یقال اعوذ بالله ﷻ من غضب الحلیم.

## بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ مُّعْرِضُونَ ﴿۴۲﴾

دا جمله اضراب دی د امر بالسوال سره في قوله تعالی قل من یکلئکم آه، یعني د غه سوال ودوی ته فائده نه کوي.

**بوه سه:** چې له ذکر څخه مراد قرآن او نور مواعظ الله دي یعني دوی اهل د سماع القرآن والموعظة نه دي، ولي چې د منعم حقیقي نعمتو د منعم له ذکر څخه غافل کړی دي فلا یذکرونه حتی یخافوا عذابه فلا فائدة لهم في التخویف بالعذاب.

**درویش وایي:** چې هغه څوک جاهل او پر باطل وي او په خپل جهل نه پوهېږي بلکې د ده زعم باطل وي ځان پر حق بولي چې دې ته جهل مرکب وایي دې سړي ته وعظ او قرآن فائده نه کوي کما قیل:

آن کس که نداند وبداند که بداند ...... درجهل مرکب ابد الدهر بماند

البته هغه څوک چې په خپل جهل پوهېږي هغه ته پند او وعظ فائده کوي کما قیل:

آن کس که نداند وبداند که نداند ...... او اسپ خود از گنبد فیروژه جهاند

دې ته جهل بسیط وایي فلیکن منک علی ذکر ان لم تکن جاهلاً جهلاً مرکبًا.

د خدای روی د قرآن روی و هغه چاته وایه
چې خدای پېژني او قرآن ته هم تسلیم وي

## اَمْ لَهُمْ اٰلِهَةٌ تَمْنَعُهُمْ مِّنْ دُوْنِنَا ؕ

ام په معنی د بل آه دی، بل لپاره د انتقال من کلام الی کلام آخر، او همزه لپاره د

أَفَلَا يَرَوْنَ أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا

آيا دوى نه گوري په سترگو، او يا معنى چي دوى علم نه لري (نو رؤيت د بصري او علمي دواړو احتمال لري) چي موږ ورځو اى امرنا و محكوتـه د كفارو راكموو يي له اطرافو څخه. يعني مسلمانان يې پر اطرافو مسلط وو، او دوى يا قتل كېږي يا فرار كېږي يعني نن د يوه طرف نوبت د محكو ددوى دى د مسلمانانو په قبضه كي صبا د بل طرف وار دى د قبضې د مسلمانانو ددوى پر محكو وهلم جرا، حتى په صحيح تاريخ كي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام چي وفات كېدى يو كور د عربو نه ؤ چي په اسلام دي نه ؤ مشرف سوى.

**پوه سه**: چي په (افلايرون) كي همزه لپاره د انكار ده او فاء عطف ده پر مقدر حسب القانون النحوي كمامر غير مرة تقديره الاينظرون فلايرون بالابصار او لايتفكرون فلا يعلمون على التقدير كون الرؤية علمية.

أَفَهُمُ الْغٰلِبُونَ

آيا دوى به غلبه وكړي پر عليه الصلوة والسلام او پر مسلمانانو؟ يعني داسي نسي كېداى (اين خيال است و محال است و جنون) په تاريخ كي راغلي دي چي اسكندر ته چا وويل چي د دارا شكوه سره يو كروړ فوج موجود ؤ، نو تا څرنگه فتح كړى؟ اسكندر ورته وويل چي قصاب چي ماهر وي له ډېروالي څخه د پسو نه ېرېږي!

خداى ﷻ وايي كريمه: وان جندنا لهم الغالبون. كريمه: وانتم الاعلون ان كنتم مؤمنين. اى حقًا دا دې غلبې د مؤمنانو پر كافرانو ژوندى مثال دادى چي امريكا چي په اوسني زمانه كي د ټولي نړى ستر قوت گڼل كېږي او انگرېزان يې هم د ځان ملگري كړه او له جنيوا څخه يې فوجونه راوستل او د ډالرو د باران وريځ هم ورسره ده پر يو غريب ملك افغانستان باندي يې خېټه واچول په دې اميد چي افغانستان د آسيا د وسط مركز دى، نو ددې افغانستان په قبضه سره به موږ پر ټوله آسيا قابض سو، په مقابل كي يې يوه ضعيفه ډله چي نه كافي سلاح لري نه د سپار طيارې لري او نه مابنام ډوډى لري او نه د شپې د تېرولو ځاى لري او نه كوټ و برستن لري، دا ډله ورته ودرېدل چي امريكا د جنگ جهاني ټوله سلاح په

کار اچولې ده، اووه کاله کېږي چې د غه ضعيفه ډله امريکا له پښو نه واچول سره ددې چې په دغه ضعيفه ډله کې څه ناڅه نواقص سته که هغه هم نه وای د وخته به امريکا افغانستان ته خيرباد ويلی وای، زما د خبرې شاهد دادی چې په هغه زمانه کې چې د حقيقي مسلمانانو سلطنت وُ د کسرٰی او د قيصر روم چې دوه ستر قوتونه وه د ټرې او جګ خولي فوجونه يې هم درلودل، څرنګه د مسلمانانو له خوا رنګ سول او خزانې يې عربي مسلمانانو په دست جمی راوړې.

**درويش وايي:** اين قصه پايان ندارد پس بگيرد دامن تفسير قرآن پيش برد.

قُلْ اِنَّمَآ اُنْذِرُكُمْ بِالْوَحْيِ

ته ورته ووايه يا محمد (ﷺ) يعني کفارو ته د مکې چې زه نه بېروم تاسي مګر نه په وحي يعني القرآن من جانب الرحمن لا من نفسي، نو چونکه بېرول ستاسي د خدای ﷻ له جانبه څخه دی او خدای ﷻ پر هر شي قادر دی بايد تاسي استبطاء د ده د عذاب ونه کړئ يعني بعيد يې نه وبولي او بايد استعجال يې هم ونه کړئ کما استعجل النضر بن الحارث بقوله ان کان هذا هو الحق من عند ربنا فامطر علينا حجارة الآية.

وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَآءَ اِذَا مَا يُنْذَرُوْنَ ۝

او نه اوري کوڼ بلنه د چا.

**پوه سه:** چې مشرکان د مکې که څه هم صحيح الحواس وه لکن چونکه قرآن او تبليغ د عليه الصلوة والسلام يې په سمع د قبول نه اورېدی نو دوی ګويا فاقد السمع دي دا جمله حال ده له فاعل څخه د قل (انما انذرکم) هغه وخت چې دوی بېرول کېږي، کلمه د اذا ظرف ده د يسمع يا د دعاء، فائده د تقييد بالظرف داده چې د انذار خبري نه اوري او نوري خبري دنيوي ښه اوري چې اصلاً نو کاڼه نه دي صرف د انذار په وخت کې ځان کوڼ واچوي.

وَلَئِنْ مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ

(ولئن) کلمه د لام موطئه د قسم محذوف ده ای والله (مستهم) جواب د قسم محذوف دی که صرف مس کړي يو قليل له عذاب څخه د رب ستا.

**بوه سه:** چي اصل د نفحة د بوی و لاړيدل دي. په دې آيت کې مبالغې دي په قلت کي (۱) لفظ د مس دی يعني چي صرف ختدي و مبتلي (۲) لفظ د نحة دی چي معنی يې قلت دی (۳) وزن د نفحة چي فعلة دی چي لپاره د مرت دی کما تقرر في علم الصرف والنحو من ان فعلة بفتح الفاء للمرة وبكسرها للهيئة كما في جلست جلسة القاري القاري بكسر الجيم ای على هيئة القاري وضربت ضربة بفتح الضاد ای مرة.

**لَيَقُولُنَّ يٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا ظٰلِمِينَ ﴿۴۶﴾**

هر آئينه دوی وايي ای هلاکت زموږ (يعني مرګ ته ناري وهي چي راځه دغه دی وخت چي مرګه ستا په سبب به موږ د عذاب څخه خلاص سو) موږ ؤ ظالمان يعني پر ځانو مو ظلم وکړی په سبب د کفر او ګنهو و حاصله الهم ندموا حين لاينفعهم الندم.

**درويش وايي:** چي مراد له مس څخه د نفحة العذاب، عذاب د آخرت دی په سبب ددې چي مفسرين تول په اتفاق په تفسير د انا كنا ظالمين داسي وايي ندموا حين لاينفعهم الندم (دوی پښېمانه نسي په داسي وخت چي پښېماني فائده نه ورته کوي) وما هو الا الندم في يوم القيامة كما قال السعدي الشيرازي رح:

تو پيش از عقوبت درعفو کوب ...... که سودی ندارد فغان زير چوب

ولي که دوی پر رسېدلو د لږ عذاب د دنيا اقرار په ظلم خپل وکړي او پښېمانه سي، نو دا توبه ده په دار التكليف کي او دا توبه خو عين قبول د اسلام، نو ولي به مفسرينو ويلای ندموا حين لاينفعهم الندم فافهم.

**وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ**

او موږ ايږدو ترازوګان د عدالت.

**بوه سه:** چي قسط مصدر دی په معنی د عدالت دی او د موازين صفت دی چونکه په مصدر کي مفرد او جمع برابر دي نو دا سوال نه پيدا کېږي چي مفرد لفظ څرنګه د جمع صفت واقع سو، او حمل د مصدر مبالغةً دی يا په حذف د مضاف دی ای ذوات القسط فافهم.

**پوښتنه:** په ترازو کي خو اجسام تلل کېږي اعمال حسنه او سيئه خو اجسام نه

دي. نو څرنګه تلل کېږي؟

**ځواب:** بعض علماء وايي چي صحيفې د اعمال حسنه او سيئه وو سره تلل کېږي چي کرام کاتبين نوشته کړي. او بعض وايي چي هر عمل ته صورت جوهري جسمي خدای ﷻ ورکوي هغه ورسره تلل کېږي.

**سوال:** لفظ د جمع يعني موازين يې ولې راوړی؟

**ځواب:** امام نسفي رح په بحر الکلام کي وايي چي سبب يې دا دی چي هر انسان لره جلا جلا ترازو سته.

**درويش وايي:** چي دا جواب ضعيف دی ولې چي ميزان په قرآن کريم کي بعض ځايونه مفرد راوړی دی الا ان يراد بالمفرد الجنس. او يا لفظ جمع ذکر سي مراد ځني يو وي تعظيمًا وتفخيمًا کما في قوله تعالى ونادته الملائکة مع ان المبادي کان واحدًا وهو جبرئيل ؑ وکما في قوله تعالى يا ايها الرسل کلوا من الطيبات. والمراد به محمد ﷺ وقيل غيرذالک مما لايعباء به.

**فائده:** ليوم القيامة بالام په معنی د في دی ای في يوم القيامة يا عبارت په حذف د مضاف دی ای لجزاء يوم القيامة او لاجل يوم القيامة.

**فائده:** بعض اهل الاهواء من المعتزلة وغيرهم وايي چي وضع الميزان يو مثال دی لپاره د جزاء عادلانه علی حسب الاعمال يعني برابر حساب کېږي واستدلوا على مذهبهم بدلائل عقلية، والصحيح عند اهل السنة والجماعة ان الميزان على حقيقته (معنی ترازو) والدليل على ذالک ماروی بروايات صحيحة عن ابن عباس رض قال الميزان له کفتان ولسان يعني دوې پلې لري او يو شيون. او بيهقي د عبدالله بن عمر رض او هغه د عمر رض څخه روايت کوي في حديث طويل حيث سئال جبرئيل عن النبي ﷺ ما الايمان يا محمد؟ قال الايمان ان تؤمن بالله (يعني بالوحدانية) وملائکته (يعني بانهم عباد مکرمون) ورسله وتؤمن بالجنة والنار والميزان وتؤمن بالبعث بعد الموت الى اخير الحديث. او ترمذي و بيهقي د انس خادم الرسول الله ﷺ څخه روايت کړی دی، دی وايي سئلت رسول الله ﷺ ان يشفع لي يوم القيامة قال عليه السلام انا فاعل، ما ورته وويل يا رسول الله فاين اطلبک زه به چيري ستا طلب کوم؟ دده راته وويل چي اول زما طلب پر پل صراف کوه، ما

ورته وويل كه مي هورې نه كړې پيدا؟ قال عليه‌السلام فاطلبني عند الميزان. ما ورته وويل كه مو هورې هم نه كړې پيدا؟ قال فاطلبني عند الحوض فاني لا اخطا، هذه المواطن الثلثة. حاكم او بيهقي رح په خپلو صحيح سند وله سيدتي عائشه رض داسي روايت كړى دى چي ما عليه الصلوة والسلام ته وويل چي ستاسي پياد بړي اهل البيت يوم القيامة، قال لي ثلاث مواطن فلا يذكر احد احدًا (۱) حيث يوضع الميزان حتى يعلم يثقل ميزانه (اى بالحسنات) او يخف (۲) حيث تطار الكتب (يعني عمل نامې) حتى يعلم اين يقع كتابه في يمينه او في شماله او من وراء ظهره (۳) وحيث يوضع الصراط (اى على متن جهنم) حتى يعلم انه ينجوا اولا.

بجاى كه دهشت خورد انبيا ......... تو عذرى گناه را چه دارى بيا

والحاصل انه ورد في الميزان على المعنى المتعارف احاديث كثيرة صحيحة ونقل كلها يثقل على المتعلمين لهذا التفسير.

**درويش وايي:** والعجب كل العجب چي الضحاك او مجاهد او قتاده والاعمش رح مع كونهم اعلم بآحاديث رسول الله ﷺ اختاروا في الميزان مثل ما قال المعتزلة بقول روح المعاني وعندي ان في النقل عن هؤلاء السادات في الروات ضعف والله اعلم.

## فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا ط

نو په دې ورځ ظلم نه كول كېږي د هيڅ نفس سره (ولهذا اورده نكرة) شيئًا د هيڅ شي كه څه هم ېخي لږ وي. وصورة الظلم ان ينقص من حسناته شيئًا او يزاد في سيئاته شيئًا.

## وَإِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ط

**پوه سه:** چي مراد له مثقال څخه مثقال متعارف نه دى مراد بلكې مصدر ميمي دى يعني په قدر د ثقل (حبة) د يوې دانې د خردل چي په پښتو يې سپلنى بولي او په فارسي يې اسفند بولي. چي دا دانه د خردل ضرب مثل ده په كوچنيوالي كي يعني دا حبه مونږ حاضره كړو په ترازو كي، نو اكبر تر حبه خردل خو په طريق اولى په ميزان كي د عدل حاضر كړه كېږي.

**بوه سه**: چې امام نافع رح د قراء سبعه وو څخه مثقال په رفع سره وايي کان تامة بولي اى ان وجد او مثقال يې فاعل دى او نور قراء يې تو له په نصب سره وايي او کان ناقصه بولي اسم يې ضمير راجع دى و عمل ته چې د موازين څخه وفهمېدى او خبر يې مثقال بولي يعني ان کان العمل مثقال حبة من خردل.

## وَكَفَىٰ بِنَا حَاسِبِينَ ۝

**بوه سه**: چې باء زائد ده په فاعل کې، نو ضمير د (نا) فاعل د کفى دى او حاسبين حال دى له فاعل څخه د کفى، ابن عباس رض د حاسبين داسې ترجمه کړې ده عالمين حافظين (ان من حسب شيئاً علمه وحفظه وكفى بالله حسيباً اذ لا مزيد على علمه وعدله او سدي رح وايي چې حاسبين په معنى د محسبين دي والحسب معناه القدر يعني اندازه، ابن ابى حاتم رح له ابن عباس رض څخه روايت کړى دى چې حساب کړل کېږي د خلکو سره نو هغه څوک چې حسنات يې زيات وي تر سيئاتو يوه حبه خردل دخل الجنة ومن کان سيئاته من حسناته بواحدة دخل النار انتهى، والمراد والله اعلم ان شاء الله ولم يشفع.

**بوه سه**: چې ټوله عملونه که قولي وي او که فعلي تلل کېږي الا کلمة التوحيد لا اله الا الله ولي اهل تفسير وايي چې که اووه اسمانونه په يوه پله کې د ميزان کېښنول سي او کلمه طيبه په بله پله کې لرجحت الكلمة الطيبة منها، د بخاري دا اخيري حديث د خپل کتاب په ياد لرئ او عمل په کوئ. بخاري په خپل سند سره نقل کړى دى چې رسول الله ﷺ ووېل كلمتان خفيفتان على اللسان ثقيلتان في الميزان حبيبتان الى الرحمن سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم.

**مسئله**: واما المشركون فقد قال الله في شانهم فلا نقيم لهم يوم القيامة وزناً اى لا يوزن لهم عمل وان کان بحسب الظاهر من قسم الحسنات کاطعام الطعام للفقراء والمساكين وصلة الرحم واعتاق الرقاب وغير ذالک لفقد شرط الوزن وهو الايمان البتة په دنيا کې يې عوض ورکوي واما في الآخرة فكانت اعمالهم هباءً منثوراً.

**درويش وايي**: چې امام حجة الاسلام محمد الغزالي رح په احياء العلوم کې وايي الميزان حق او سبب د وضع د ميزان دادى چې خداى ﷻ په صحائفو کې د اعمالو د بندګانو وزن ايښى دى پر اندازه د درجاتو د اعمالو ددوى په نېزد خداى نو په وزن

سره مقادير د اعمالو د بندګانو دوی ته معلوم سي تاچي دوی ته اندازه د عدل د خدای ﷻ في العقاب کي ورکاوه او د فضل د خدای ﷻ کي عفوه ورته کول او د اعمالو ثواب يې مضاعف کاوه انتهی، په دې بيان سره دفع سو هغه سوال د امام رازي رحمه الله چي په خپل تفسير کي يې راوړي دي حيث قال چي اهل القيامة به يا يقين لري پر دې چي خدای ﷻ عادل دی فلا حاجة الى وضع الميزان بل مجرد حکمه بترجيح جانب الجنة او النار کاف او که ددوی دا يقين نه وي نو وزن هم فائده نه لري لاحتمال انه تعالى يجعل احدى الكفتين اثقل ظلمًا انتهی، وجه د دفع ددې سوال داده چي اهل محشر ته عدالت د خدای ﷻ په علم ضروري معلوم دی لان الناس نيام فاذا ماتوا انتبهوا لكن حكمة الوزن انه تعالى اراد ان يحصل لهم العلم بمقادير ليظهر العدل كالمحسوس والعقلي كالبدهي الاولى وفيه الزام الحجة عليهم فافهم. راوي وايي چي شبلي نعماني رحمه الله وروسته تر وفات چا په خوب وليدی، نو يې پوښتنه ځني وکړه ما فعل الله بک؟ فقال حاسبونا فدققوا ثم منوا فاعتقوا.

**درويش وايي:** چي بعض مفسرين وايي چي مېزان دوې پلې لري چي په عربي يې کفتان بولي او يو لسان لري چي په پښتو يې شيون بولي او دا ميزان په لاس کي د جبرئيل عليه السلام دی حسنات په يوه پله کي پراته وي په ښه صورت سره او سيئات په بله پله کي وي په بد صورت والحكم للغالب منهما وفي صورة التساوي الحكم لفضل الله تعالى. او بعض علماء وايي چي تساوي والا به پر اعراف باندي وي چي يو د يوال په منځ کي د جنت او د دوزخ دی چي د اعراف والا دواړه جانبه وي ويني لکن مآلهم الى الجنة، کريمه: وعلى الاعراف رجال يعرفون كلا بسيماهم الآية.

**وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ وَهَارُونَ الْفُرْقَانَ وَضِيَاءً وَذِكْرًا لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٤٨﴾**

کلمه د لام موطئه د قسم محذوف ده يعني والله په تحقيق ورکړی ؤ موږ موسی او هارون عليهما السلام ته کتاب فارق بين الحق والباطل چي مراد ځني تورات دی، چي نور معنوي ؤ حق او باطل روښانه کېدل.

**يوه سه:** چي تنكير د ضياءً لپاره د تعظيم دی او د هغو کسانو لپاره چي د خدای ﷻ بيريدل نصيحت ؤ، او يا معنی داده چي په دې کتاب کي ذکر او بيان ؤ د مايحتاجون اليه من الشرائع والاحكام والحلال والحرام، والحاصل انه كتاب

جامع لکل خیر او ابن زید وایي الفرقان النصر علی الاعداء لکه په قرآن کریم کي ورځ د بدر یوم الفرقان بلل سوې وه، او بعض مفسرین وایي چي له فرقان ځخه مراد فلق البحر دی چي بني اسرائیل او قبطیان قوم فرعون یې سره جلا کړه یعني چي بني اسرائیلو ته یې نجات ورکړی او فرعون او دده قوم یې د غرق و کندي ته وسپارل. کریمه :اغرقوا فادخلوا نارًا.

الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَهُمْ مِّنَ السَّاعَةِ مُشْفِقُوْنَ ﴿۴۹﴾

هغه کسان دي متقین چي بېرېږي له رب ځخه ددوی، او دوی له عذاب او حساب ځخه د ورځي د قیامت بېرېږي.

**پوهسه:** چي الذین یا مجرور محلاً صفت د متقین دی، او یا منصوب محلاً

کاوه فقال ماهذه التماثيل.

**درويش وايي:** چي امير المؤمنين علي رضي الله عنه غايت تقبيح د عمل د شطرنج وکړه ولي مشابه يې کړه د اصنام سره د قوم د ابراهيم ع، يعني العکوف على هذا اللعب کالعکوف على عبادت الاصنام کذا في تفسير ابي الليث السمرقندي.

**درويش وايي:** چي وان لم يکن اللعب بالشطرنج کفرا فلا اقل من انه مکروه جدا، قال صاحب الهداية يکره اللعب بالشطرنج والاربعة عشر لانه قاصر بها فالميسر حرام بالقرآن وان لم يقاصر بها فهو عبث ولهو.

**درويش وايي:** چي له امام شافعي رح څخه منقول دي چي لعب الشطرنج مباح دی، ولي چي لعب کي د اذهانو ذکاوت او تصفيه پيدا کيږي، زين العرب په شرح کي د مشکوة وايي چي شافعي قدس سره له دې قول څخه رجوع وکړه څلوېښت ورځي تر مرګ دمخه، او امام ابو حامد محمد الغزالي الشافعي رح په خلاصه کي وايي چي د شطرنج لوبه مکروه ده عند الشافعي اى في قوله الآخير، او څرنګه به مکروه نه وي چي په لعب شطرنج کي احياء د سنة المجوس ده.

## قَالُوا وَجَدْنَا آبَاءَنَا لَهَا عَابِدِينَ ۝

دوی په جواب کي د ابراهيم ع وويل چي موږ پيدا کړي دي يعني ليدلي مو دي چي پلرو او نيکه ګانو د دغو تماثيل عبادت کاوه يعني موږ يې عبادت تقليدا کوو يعني بل کوم دليل نه پر لرو لا عقلا ولا نقلا من کتاب.

## قَالَ لَقَدْ كُنتُمْ أَنتُمْ وَآبَاؤُكُمْ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ۝

ابراهيم ع ورته وويل په تحقيق يا ست تاسي او ستاسي پلرونه نيکه ګان په خطاء او ګمراهي ښکاره کي حيث تعبدون الجمادات لاتضر ولاتنفع والتقليد للضال المخطي ضلال وخطاء.

**فائده:** انتم تاکيد دی د ضمير متصل د کنتم لاجل عطف وآبائکم کما هو القانون النحوي من ان العطف على الضمير المتصل لايجوز الا بالتاکيد بالمنفصل او الفصل فافهم.

**درويش وايي:** چي د ابراهيم ع قوم ته دا تضليل د آباؤ د دوی ډېر بعيد ورته

ښکاره سو. نو یې په خیال دا ورغله چې دی زموږ سره مسخرې کوي، نو یې دا سې ورته وویل.

قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا بِٱلْحَقِّ أَمْ أَنتَ مِنَ ٱللَّٰعِبِينَ ۝

دوی ورته وویل چې تا موږ ته یو حق دین چې ثابت په دلیل قطعي دی راوړی دی او که ته په دې قول کې زموږ سره مسخرې کوې.

**مسئله**: علماء وايي چې تقلید قبول دی د بل د قول یې دلیله د حقیة او دوی وايي چې تقلید په فروع کې د دین لکه اودس، لمونځ، روژه وغیرها روا دی لکه په مذاهبو اربعه وو کې دا اختلاف موجود دی او هر قوم د خپل امام المذهب تقلید کوي. او په اصولو او اعتقادیاتو کې د دین تقلید نه دی روا بلکې استدلال ضروري دی.

**پوښتنه**: عوام الناس خو ټول له معتقدات تقلیداً مني قابل د نظر او استدلال نه دی؟

**ځواب**: ایمان د مقلد صحیح دی په نیز د امام الائمة سراج الامة ابو حنیفة رح او په نیز د اهل ظاهر الحدیث هم صحیح دی.

**پوښتنه**: مقلد په ایمان کوم څوک دي؟

**ځواب**: چې وجود د واجب تعالی او وحدانیت د خدای په عبادت سره او عالم لره صانع او خالق الله بولي او په اوصافو د جلال او جمال یې منصف بولي او ارسال الرسل مني او عالم حادث بولي او بعث بعد الموت حق بولي الی غیر ذالک لکن دلیل نه پر لري، والدلیل علی قبول الایمان من غیر الدلیل دا دی چې رسول الله ﷺ ایمان د اعرابو د کوچنیانو او د ښځو او د مریانو قبلاوه من غیر تعلیم الدلیل.

**درویش وايي**: چې عامي که لږ عقل ولري دلائل هم ډېر پیدا کولای سي.. سعدي:

برگ درختان سبز درنظر هوشیار ...... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

**حکایت**: یو اعرابي ته چا وویل چې څه دلیل لرې پر وجود د خالق د عالم؟ اعرابي ورته وویل البعرة في الطریق تدل مرور البعیر. وآثار الاقدام علی الطریق تدل علی سیر السائرین في الطریق فکیف لایدل هذا العالم الکبیر علی العالم الصانع الخبیر.

**درویش وايي**: چې وهذا عین الاستدلال علی وجود الصانع الخبیر.

# قَالَ بَلْ رَّبُّكُمْ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الَّذِيْ فَطَرَهُنَّ ۖ

ابراهیم علیه السلام ورته وویل (کلمه د بل اضراب دی له قول څخه د قوم ام انت من اللعبین) یعني زه مسخرې نه کوم ستاسي سره بلکې رب او خالق ستاسي هغه ذات مقتدر دی چي هغه رب او خالق د سموات ای السبع او د مځکي دی، هغه دی چي دغه مځکه او اسمانونه یې له کتم څخه د عدم و عرصه ته د وجود راشستلي دي بېله مثال سابق څخه.

**پوښتنه:** د (الذي فطرهن) څه فائده ده وروسته تر (رب السموات والارض)؟

**ځواب:** فائده یې داده چي رب و سلطان ته هم وایي نو په دې قید سره دفع د توهم د جاهلانو د قوم چي سلطان دي وي او هغه قول د نمرود چي وروسته به راسي (انا احي وامیت) نو ابراهیم علیه السلام یو برهان قوي ورته پېش کړی پر دې ډول چي اسمانونه او مځکي شاهدي اداء کوي په لسان حال چي موږ خو ممکنات او موږ نسو کولای چي په خپله دي پرده د عدم څیري کړو او میدان ته د وجود دي راووځو. ولي امکان او حدث زموږ برخه ده، نو زموږ د عدم رایستونکی لازمًا باید واجب الوجود قدیم بذاته ځښتن د قدرت کامله بېله منازع وي، فاذا کان کک فهو مستحق للعبادة وحده لا الجمادات ستاسي خدایان.

# وَاَنَا عَلٰى ذٰلِكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ۝

او زه پر دغه مذکوره شیانو د شاهدانو له ډلې څخه یم بالحال کالسموات والارض والقول لا اله الا الله والجنان یعني بتصدیق القلب.

**فائده:** چونکه (ذا) اسم اشاره و مفرد ته ده او مشار الیه سموات او ارض دي او هغه ډېر دي، نو باید تلک یې ویلی وای له دې سببه ما ترجمه په مذکور سره وکړه چي مفرد دی.

قانون: که مشار الیه مفرد ؤ او مخاطب هم مفرد ؤ اشاره په ذالک ورته کوي چي د ذا د مفرد راوړو سبب یې افراد د مشار الیه وي او د کاف راوړلو سبب به افراد د مخاطب وي، او که مشار الیه مفرد او مخاطبین ډېر وه ذالکم به وایي او که مشار الیه او مخاطب دواړه تثنیه وه ذان کما به وایي، وعلی فقس التذکیر

والتانيث في المشار والمخاطب كذا في علم النحو، نو هغه قاريان چي خاتمه د قرآن په يوه مجمع کي وايي او داسي ووايي انا على ذالک من الشاهدين پر خطا دي بلکې ذالکم بې ويلی وای فتدبر.

# وَتَاللهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَامَكُمْ

او قسم په خدای چي زه به يوه حيله وکړم ستاسي و بتانو ته. يعني په پټه دوی مات کړم چي تاسي ته د دوی عجز ښکاره سي چي دوی په خپله دفع د ضرر له ځانه څخه نسي کولای. نو ستاسي څخه به دفع د ضرر څرنګه وکړي. والمعبود لابد انيکون دافعًا لضرر عن عابده وجالبًا للنفع الى عابده فکيف تکون آلهة. قاضي بيضاوي رح وايي چي کلمه د تاء په قسم کي بدل د واو ده چي هغه بدل د باء دی.

**پوهسه:** چي په لفظ کي د کيد او تاء التعجب في القسم چي ابراهيم راوړه له دې سببه چي دا کار يعني ماتول د دوی د بتانو ډېر مشکل کار دی او لوی حيله ته ضرورت لري مع قوة سلطنة نمرود وکثرة اتباعه ومحافظين معابدهم واصنامهم. نو بيا هم ابراهيم ؑ على زعم انف نمرود ودې کار ته چمتو سو او کامياب هم سو کما سيأتي.

**پوښتنه:** جمله د (وتاالله آه) جمله قسميه انشائيه ده، نو عطف يې څرنګه صحيح دی؟

**ځواب:** د (تاالله) سره قال محذوف دی. والتقدير قال ذالک القول بل ربكم آه وقال هذا القول ای تاالله. نو قال ههنا عطف دی پر قال هناک، نو عطف د جمله خبريې پر خبريې دی.

# بَعْدَ أَنْ تُوَلُّوا مُدْبِرِينَ ﴿٥٧﴾

وروسته تردې چي تاسي مخ واړوئ له بتانو څخه او دوی ته شا کړئ د اختر د ورځي د ساتېري لپاره.

**سوال:** دا خبره که يې برملا علانيه ودوی ته کړې وي يعني تاالله لاکيدن آه نو دوی يې مخ نيوی کولای سوای چي پر بت خانه به يې محافظان درولي وای چي د ابراهيم ؑ د ورتګ لاره يې بنده کړې وای؟

**ځواب:** بغوي رح وايي چي مجاهد او قتاده رح وايي چي ابراهيم عليه السلام دا خبره ډېره کراره وکړه چي صرف يوه سړي واورېده چي وروسته بيا تر ماتېدو د بتانو

هغه سرې دا خبر افشاء کړه چې وروسته به راسي چې هغه سړي وويل سمعنا فتی يذکرهم يقال له ابراهيم.

**درويش وايي**: چې راويان د تاريخ قديم وايي او ټولو مفسرينو يې تائيد کړی دی چې د نمرود طاغي قوم په کال کې يوه ورځ د اختر او خوشالی درلوده چې دوی به تر ټولو لويي بت خانې ته بې بنه طعامونه راوړه مثلاً ورجې غوښې وغيره او بتان به يې بنه پالش کړه او د پر زيبا رنګونه به يې پوري مښلهاو خوارکي مواد به يې د بتانو مخ ته کېښښول د تبرک لپاره چې دوی به په صحراء کې بنه ځانونه ستړي کړه بت خانې ته به راغله او هغه د دوی په زعم مبارکه وه دی به يې وخوړله او بتانو ته به يې سجدې وکړې نو به خپلو خپلو کورو ته ولاړه، نو دغه ورځ چې راغله د ابراهيم ؑ پلار آذر وه ده ته وويل رازه زموږ اختر ته زموږ د خدايانو تنداره او سيل به وکړې او زموږ دين به د پر بنه خوند درکړي، نو ابراهيم ؑ هم په مجمع کې ورسره ووتی لوی بت خانې ته نژدې سو ځان يې غوځار کړی او دا يې وويل چې پر پښو مې درد سو او وه يې ويل اني سقيم.

**سوال**: ابراهيم ؑ خو نه ؤ ناجوړی. نو دا دروغ نه وه او که څرنګه؟

**ځواب**: دا تعريض دی د ابراهيم ؑ خو زړه په رشتيا ناجوړی ؤ د قوم د بت پرستی په سبب ظاهراً يې پښه بهانه وګرځول او بل دا چې دروغ لنصرة دين الله خو روا دی کما في وقعة قتل کعب بن الاشرف په مدينه منوره کې چې تفصيل يې مخته تېر سوی دی.

راوي وايي چې خلک چې ټوله ولاړه ابراهيم ؑ بت خانې ته ورغلی د بت خانې د دروازې مخامخ يو لوی بت ؤ و څنګ ته يې کوچنی بت ؤ او د هر لوی بت و څنګ ته به کوچنی بت موجود ؤ، ابراهيم ؑ چې وکتل ورجي، غوښې او اعلی مطعومات د بتانو و مخ ته پراته وليدل، نو د پسخنده يې ورته وويل الا تا کلون؟ ولي يې نه خوری؟ فراغ عليهم باليمين، نو حمله يې وکړه پر هغو بتانو په راسته لاس چې تر چپه لاس قوي دی. راوي وايي چې د ابراهيم ؑ سره پټ په بغل کې يو سندان ورسره ؤ په هغه به يې دا بتان وهله.

# فَجَعَلَهُمْ جُذٰذًا

وکړځول ابراهیم (ع) دا بتان ټوټې ټوټې.

**پوهه:** چې جذاذ فعال دی بضم الجیم مصدر په معنی د مفعول دی ای مجذوذ. او بعض مفسرین وایي چې جمع دی واحد د لفظ نه لري، والمعنی توټ توټ کړه ابراهیم (ع) ټوله بتان.

# إِلَّا كَبِيرًا لَّهُمْ لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ

مګر نه هغه صنم اکبر ددوی (او سندان یې وصنم اکبر ته کښېښوو، او بعض وایي د صنم اکبر په غاړه یې ورو ځړاوه او دی خندي ووتی) بعض مفسرین وایي چې دا کبیر صنم ته به خلک رجوع وکړي چې دا بتان چا مات کړه، ولې چې معبود باید علم ولري او سائل جواب ورکړي، نو اخیراً به ابراهیم (ع) په دغه سره دوی مغلوب کړي په دلیل کې، او بعض مفسران وایي چې ضمیر د الیه و خدای ﷻ ته راجع دی یعنې چې دوی چې دا عجز د خپلو خدایانو ووینې، نو خدای ته به رجوع وکړي او ایمان به راوړي او د سیاق سره برابر دا دی چې ضمیر د الیه ابراهیم ته راجع دی په دې معنی چې چونکه زه شهرت په مخالفت د اصنام لرم، نو به اخیر دا ماتوالی پر ما تپ کړي او ما به ورو غواړي زه به ورسره دلیل ووایم چې دا څرنګه خدایان دي چې یوازې زما سره یې مقابله له وسه نه وه پوره که ما مات کړي وي خیر خلک چې د صحراء له بازیو څخه راغله هم ستړي سوي وه او هم وږي سوي وه بت خانې ته ورغله بتان ټوله ریز مریز پراته وه او ډوډۍ، موږۍ یې ټوله سره تیت و پرک پراته وه.

# قَالُوا مَن فَعَلَ هٰذَا بِآلِهَتِنَا إِنَّهُ لَمِنَ الظّٰلِمِينَ

دوی وویل چې دا چا دا کار کړی دی زموږ له خدیانو سره یعنې ټوک ټوک کړي یې دي، په تحقیق دا سړی خو د ظالمانو له ډلې څخه دی چې د خدایانو سپکاوی وکړي یا ظلم پر خان دی چې خان یې و هلاک ته وسپاره یعنې موږ خو یې حتماً وژنو.

# قَالُوا سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهُ إِبْرٰهِيمُ

دوی وویل چې موږ اوریدلي دي چې یو ځوان دی چې زموږ خدایان ذکر کوي

یعني غیب پروایي چي دا آلهه هیڅ شی نه دي یعني نه یې چا ته نفع رسېږي او نه چا ته تاوان رسولای سي (یقال له ابراهیم) صفت ثاني لفتًی او یذکرهم یې صفت اول ؤ.

**پوه سه**: چي ابراهیم مرفوع دی په یقال سره یعني مفعول مالم یسم فاعله یې دی او یا خبر د مبتدا، محذوفي دی ای هو ابراهیم، نو پر دې تقدیر مفعول مالم یسم فاعله یې جاري او مجرور دی.

اخیر دې خبري افشاء پیدا کړه تر نمرود جبار او تر اشرافو د قوم دده ورسېده له.

## قَالُوْا فَاْتُوْا بِهٖ عَلٰٓى اَعْیُنِ النَّاسِ لَعَلَّهُمْ یَشْهَدُوْنَ

نمرود او اشرافو د قوم وویل یعني که دی متهم دی په دې فعل سره د آلهه د ماتولو، نو تاسي دی راولئ یعني چي تحقیق څندي وکړو په حضور کي د خلکو (والتقدیر کائنًا علی اعین الناس ای علی مرئي منهم یعني چي دوی یې وویني) یعني څوک به د چشم دید شاهدي پر اداء کړي. نو بیې مورد د عذاب شکنجې ته وسپارو. وغرض اللعین چي بېله شاهدانو مورد دا عذاب نه ورکوو.

## قَالُوْٓا ءَاَنْتَ فَعَلْتَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَا یٰٓاِبْرٰهِیْمُ

آیا تا دا کار یعني کسر او ماتول کړي زموږ په خدایانو سره ای ابراهیم؟-

## قَالَ بَلْ فَعَلَهٗ ۖ كَبِیْرُهُمْ هٰذَا فَسْـَٔلُوْهُمْ اِنْ كَانُوْا یَنْطِقُوْنَ

ابراهیم وویل چي دا کار دا لوی خدای کړی دی، نو تاسي له دې مات سوو خدایانو څخه پوښتنه وکړئ که چېري دوی خبري کولای سي.

**پوښتنه**: کار خو ابراهیم کړی ؤ، نو اسناد یې و کبیرهم ته څرنګه وکړی؟

**ځواب**: په دې کي مجاز دی و سبب ته د کسر ابراهیم چي چونکه د دغه لوی بت ډېر احترام دوی کاوه، نو ابراهیم ته غصه ورغله او دا بتان یې مات کړه تا چي دوی و دې لوی خدای ته رجوع وکړي، نو هغه په د لا یا نعم له جواب څخه عاجزه پاته سي او د ابراهیم‌ؑ حجت به قائم سي.

**سوال**: ابراهیم‌ؑ خو په دې پوهېدی چي بتان خو خبري نسي کولای او د چا د سوال ځواب هم نسي ورکولای، نو یې ولي دوی امر کړه په سوال سره د دې او خبري د دوی یې شرط وګرځولې؟

**خواب**: هو ! لکن د ابراهیم ؑ غرض دا ؤ چي ددوی د خدایانو عجز ودوی ته وښيي. نو ضمناً ګویا دا اقرار دی دده له خوا چي ما کړی دی. (وروی ابوهریرة ؓ عن النبي ﷺ لم یکذب ابراهیم الا ثلث کذبات)

**درویش وایي**: چي کذبات ویلل چي ظاهر صورت یې د کذب ؤ والا فالکذب الصریح کبیرة والانبیاء معصومون من الکبائر کلها بلکې دې ته معاریض وایي چي د قائل په زړه مراد یې صحیح وي لکن ظاهر صورت یې د کذب وي چي دې ته توریه هم وایي وهو ان تشیر بالکلام الی شئ والغرض منه شئ آخر.

(ثنتین في ذات الله) یعني په طلب کي د رضا د خدای ﷻ (۱) قوله اني سقیم) چي زه ناجوړی یم. دده مراد خو دا ؤ چي سقیم القلب یم په سبب د کفر د قوم او ظاهر یې دا ؤ چي سقیم الجسد یم ولم یکن کذالک (۲) او بل دا چي (بل فعله کبیرهم) دده غرض خو دا ؤ چي د کبیر صنم غایت تعظیم کول پر ما باعث د ماتولو د بتانو وګرځېدی او ظاهره صورت یې دا ؤ چي راسا دا کسب او کار یعني ماتول د بتانو کار د کبیر صنم دی ولم یکن کذالک (۳) لپاره د دفع د فساد له ساره څخه چي دده ماینه وه هغه داسي وه چي ابراهیم ؑ چي اردن ته ورغلی هوري یو ملک جبار ؤ چي صادق یې نوم ؤ او د هغه قانون دا ؤ چي ښځي چي به مېړه درلودی که به دده خوښه وای له مېړه څخه به یې راګرځوله او که به هغې مېړه نه ؤ کړی په هغې ښځي یې کار نه درلودی چونکه ساره ډېره ښائسته وه، نو یو چا یې و سلطان جابر ته راپور ورووړی چي دلته تر یوې درختي لاندي یو درویش صفت سړی دی او ډېره ښائسته ماینه یې ده. جبار امر وکړی چي ورسئ دا ښځه څني راولئ چي زه یې معلومات وکړم. نو ابراهیم ؑ وساره ته وویل چي که دې جبار تا ته وویل چي ته د دې سړي څه یې داسي مه ورته وایه چي ماینه یې یم ولي چي بیا دې زما څخه ونه ګرځوي داسي ورته ووایه چي زه یې خور یم ابراهیم ؑ ورته وویل چي په زړه کي دا ونسه چي دیني خور یې یم ولي چي په مځکه کي بل مسلمان نه وینم بېله ما وتا.

**درویش وایي**: چي دا هم تعریض او توریه وه ولي ظاهر خو یې دا وو چي نسبي خور یې یم او په زړه د ابراهیم ؑ کي دا ؤ چي دیني خور ده خیر ساره چي جبار ته ورووستل او ابراهیم ؑ پر خپل ځای پر لمانځه ودرېدی او عجز و نیاز یې شروع کړی په باره کي د خلاصون د ساری د دې جبار څخه جبار پر مین سو بلا تحقیق یې لاس

ورو غځاوه يعني د زني د پاره لاس يې وچ سو چي نه يې راټولولای سوای او نه يې پر مخه حرکت ورکولای سو، وفي رواية فغط ترستوني ونيول سو پښې يې غورځولې، نو يې ساره ته وويل چي دعاء وکړه چي زه له دې آفت څخه خلاص سم بيا ضرر نه دررسوم بېرته دې خپل ملګري ته استوم هر څه چي دې دي، هغې خواست وکړی جبار جوړ سو بيا يې لاس ور وغځاوه بيا په مثل د اول وار ونيول سو بيا يې ساره ته وويل چي خدای ته خواست وکړه که جوړ سوم ضرر نه دررسوم هغې بيا خواست وکړی جبار جوړ سو ثم تناولت الثالثة فصار الجبار مثل ما کان بلکې اشد تر هغه بيا يې زاری ورته وکړې او وعده يې د عدم ضرر ورسره وکړه بيا جوړ سو، نو جبار د يو حاجب په لاس ورکړه او ورته وه يې ويل چي تا ماته انسان نه دی راوستلی انما اتيتني بشيطان، جبار يوه ښځه د هاجره په نامه ودې ته وبخښل. نو ساره چي راغله هاجره هم ورسره وه ابراهيم؏ پر لمانځه ولاړ و سر يې ورته وښوراوه چي مهيم چي دا يميني کلمه ده معنا يې داده چي څه حال دی او څه پيښه سوه؟ هغې ورته وويل قد کبت الله کيد الکافر وفي رواية قد رد الله کيد الکافر في نحره واخدم هاجرة قال ابو هريرة يعني عن النبي ﷺ تلک (يعني هاجرة) امکم يا بني السماء (ای د اسمان زامنو) يعني چي په مکه کي خو کښت نسته تاسي په صحراؤ کي ژوند کوئ په اوبو د اسمان د هغه قصه داسي وه چي ساره خپل مينځه هاجره و ابراهيم؏ ته وبخښل ابراهيم؏ په نکاح کړه ساره چونکه په اول کي وچه وه کما سيأتي ان شاء الله تعالی. نو خدای پاک ابراهيم؏ ته زوی ورکړی چي نوم يې اسماعيل پر کښېښو چي د مکې د قريشو نيکه دی. او عليه الصلوة والسلام هم دده له نسل څخه دی وباقي قصة طويلة جدًا. دا اخير قول د ابراهيم چي ساري ته يې وکړی انک اختي في الاسلام صريح في ان مراده کان من المعاريض والتورية دون الکذب حاشاه الله عن ذالک کما مر آنفًا.

**فائده:** دا دريم قول د ابراهيم؏ که څه هم په هغه کي هم رضی د خدای ﷻ وه چي زوجه د خليل الله له فساد څخه د جبار په وساتل سول. لکن چونکه په دې د ابراهيم؏ طبعي نفع موجوده وه، نو ځکه په حديث مذکور کي ددې اولي توريه او معاريض في ذات الله وبللې دون الثالثة.

**پوښتنه:** صريح دروا‌غ روا دي او که حرام يعني چي هيڅ توريه يا تعريض نه وي پکښې؟

قَالَ اَفَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا یَنْفَعُكُمْ شَیْئًا وَّ لَا یَضُرُّكُمْ ؕ﴿۶۶﴾

ابراهیم وویل چي حجت یې پر دوی تمام ته ورسېدی تاسي عبادت کوئ ماسوی له خدایه چي نسي رسولای یو شی له نفع څخه که تاسي عبادت د دوی وکړئ، او نه ضرر دررسولای سي یعني دیو شي که یې تاسي عبادت پرېږدئ.

**فائده:** کلمه د فاء عطف ده پر محذوف تقدیره اتعترفون بان هؤلاء لاینطقون ولا ینفعکم شیئا ولا یضرون فتعدون بعد ذالک.

**درویش وایي:** چي دا قانون نحوي دی چي همزه د استفهام چي پر حروف عاطفه و داخل سي عطف پر مقدر به وي لئلا یفوت صدارة همزة الاستفهام، مونږ دا قانون په دې تفسیر کي مکرر راوړی دی شفقة علی المتعلمین لئلا یحتاجون الی تفصح الاوراق.

**حکایت:** یناسب هؤلاء العابدون لغیر الله، راوي وایي چي د حبیب العجمي قدس سره ماینې ده ته وویل په کلکه سره چي بازار ته ولاړ سه د یو چا مزدوري وکړه لپاره د فراخی د رزق. نو دی هم له کوره ووتی په یوه مسجد کي یې د خدای پاک عبادت کاوه تر ماښامه پوري، ماښام چي کورته راغلی ماینې ورته وویل چي مزدوري دي وکړه څه دي راوړه؟ حبیب رح ورته وویل چي د لوی چا مزدوري مي وکړه لکن شرمېدم د مزدوری مي نه ورته وویل، دا بله ورځ بیا حبیب رح له کوره ووتی. ماښام کورته خالي لاس راغلی ماینې چي یې ورته وویل ده بیا هغه عذر ورته وو ایه، درې ورځي چي تېرې سوې ماینې یې ورته وویل چي یا له هغه سړي څخه چي تا یې دا درې ورځي مزدوري کړې ده د خپل اجرت جدي طلب څني وکړه او یا د بل چا سره مزدور سه او یا به ماته طلاق راکوې، حبیب رح ته یې ډېر زور ورکړی چي ماینې یې مطالبه د طلاق څنې وکړه، خیر حبیب رح بیا ولاړی خپل د خدای جل جلاله عبادت یې تر ماښامه پوري وکړی، ماښام چي کورته راغلی د طعام بوی یې تر پزه سو او ماینه یې هم ډېره خوشاله ولیدل، ماینې یې ورته وویل چي هغه درې ورځي چي تا یې مزدوري کړې وه او تا له شرمه د مزدوری نه وه ورته ویلي هغه چا ستا د پر نعمتونه را استولي دي او یوه همیانۍ د سرو زرو د که یې هم را استولې ده، حبیب رح وژړل چي ما د خدای جل جلاله دا درې ورځي عبادت

کاوه دا خدای ﷻ را استولي دي. ماینې چي یې واوریدل پر ما مضٰی خو یې توبه وکښل او قسم یې واخستی چي زه به ابدًا ورته کار نه کوم.

**درویش وایي**: چي دا د هغه حدیث قدسي مصداق دی (من شغله ذکري عن مسئلتي اعطیته افضل ما اعطي السائلین) وقد جربه اهل الله فوجدوه کذالک.

## اُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۚ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٦٧﴾

روح المعاني وایي چي دل تنګه سو ابراهیم ؑ له اصرار څخه د قوم پر کفر باندي مع وضوح الحق وقطع العذر. واصل اف صوت المتفجر من استقذار شئ (اف اواز دی د هغه چا چي زړه یې تنګ سي چي له یو کار څخه یې بد راسي) راغب نحوي وایي چي وروسته اف اسم فعل وګرځېدی په معنی د اتفجر (زما زړه تنګ سو) ومعنی الآیة زما زړه تنګ سو یعني ستاسي له اصرار څخه پر کفر او له سببه ددې چي تاسي عبادت کوئ د من دون الله چي بتان دي (افلا تعقلون) استفهام لپاره د توبیخ دی. آیا تاسي عقل نه لرئ چي حق او باطل سره جلا کړئ او د حق متابعت وکړئ او باطل پرېږدئ.

**درویش وایي**: چي په (اف) کي ډېر لغات دي چي مظهري بیان کړي دي.

**پوه سه**: چي مظهري ؒ وایي چي اف مبتداء ده نکره او ابتدائیه یې سره د تنکیره داسي دی لکه علماء چي په ویل کي وایي ای ویل عظیم. او لکم یې خبر دی ولما تعبدون پر عطف دی او بیضاوي وایي معناه قبحًا ونتنًا واللام لبیان المتافف له.

**درویش وایي**: چي نمرودیان چي په احتجاج کي پاته راغله نو یې د زور او ضرر لار اختیاره کړه لکه چي دا عمومي عادت دی د جهالو معاندینو چي په دلیل ملامت سي د سرې ګریبان پر څیري.

## قَالُوْا حَرِّقُوْهُ وَانْصُرُوْٓا اٰلِهَتَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ ﴿٦٨﴾

نمرود او نمرودیانو سره وویل وسوځئ ابراهیم په اور سره او مرسته وکړئ د خپلو خدایانو چي ابراهیم ؑ یې استخفاف وکړی که تاسي دا کار کوئ.

**پوه سه**: چي شرطي مستغني دی له جزاء څخه په ماقبل سره یعني حرقوه آه. له ابن عمر ؓ څخه روایت دی چي مشوره د احراق چي یې نمرودیانو ته ورکړه یو

سړي ؤ له عجمو څخه يعني د کردانو څخه چې نوم يې هنون ؤ او هغه کردي خو
خداى ﷻ په مځکه کې خسف کړى. نو دى په مځکه کې روان دى الى يوم القيامة
لکه قارون د موسى عليه السلام.

**تبصره:** کردان يو ظالم قوم دى چې بعض يې په ايران کې اوسيږي او بعض يې
په عراق کې مېشت دي. تاريخ وايي چې دا قوم که څه هم په نامه د مسلمانانو
ياديږي لکن کاره د دوى قطع الطريق او ظلم پر مسافرو چې د دوى په وطنو کې
سفر کوي. ته يا مخاطب نه وينې له دين څخه د اسلام چې دين ابراهيم خليل
الرحمن دى پر کردانو يو خوى يا يو عمل د اسلام. خوى د دوى دا دى چې غارت
اچوي په دلييزه تو که پر اموالو د خلکو. و عملهم قتل و ظلم و سرقة و قطع الطريق.
و عدم رحمة في قلوبهم على المارين عليهم من شيخ و شاب و مرئة و صبي؛ روح
البيان وايي والله ما هؤلاء باهل الملة الغراء لاكثر الله في الناس امثالهم اياك
والمصاحبة باصلحهم ولا المرور ببلادهم انتهى.

**درويش وايي:** چې دا کار تر اوسه (۱۴۳۰هـ ق) په کردانو کې جريان لري
مسافر چې د دوى په وطنو کې تيريږي دوى يې بندي کړي او د هغه د کور د ټيليفون
نمبر څنډي واخلي او هغه بندي ته ووايي چې کور ته دي ټيليفون وکړه چې مثلاً
لس لکه روپۍ را واستوئ ورنه کردان ما وژني او د هغه بندي د ضرب و کوب او
ژړا د هغه په قريبانو واوري.

**درويش وايي:** چې قصه د اور اچولو د خليل الرحمن په اور کې په روح البيان
روح المعاني والمظهري بل سائر المفسرين و منهم الكاشفي په دې ډول بيان کړې
ده مع قليل التفاوت في عبارات هؤلاء السادات الكرام رحمهم الله. چې نمرود الطاغي او
قوم د ده اتفاق وکړى پر احراق د ابراهيم عليه السلام په اور سره نو دى يې په يوه خونه کې بندي
کړى. نو دوى د جبل کوثي چې د يوې قريې نوم دى په عراق کې د هغه غره په لمن
کې يې يو ديوال چې ارتفاع يې شپيته گزه وه تعمير کړى. يوه لويه دروازه يې ور کړه
او نمرود امر وکړى چې ګلک لرګي په دې خطيره کې اچوئ. دا سې يې خلکو پر
وابو او په شاوو راچلول حتى يو سړى چې به مريض ؤ دا وصيت به يې کاوه چې
زما په روپو لرګي رانسي د ابراهيم د سوځنګ لپاره. او حتى که د يوې ښځې قريب

ورکړی چي ایله به یې کړی ډېر په خندي په هوا سوه چي په دغه ذریعه خلګو لوی لوی قلاوي په نړولې، نو دوی هم منجنیق جوړ کړی ابراهیم ؑ یې ورپورته کړی لاسونه او پښې یې ور تړلي وه او قمیص یې خندي وکښې په منجنیق کې یې کښېښو د آسمانو او د ځمکې د ټولو ملکو ناري سوې بلکه جمیع الخلق الا الثقلین مګر نه جن او انس صیحةً واحدةً او دا یې وویل ای ربنا ابراهیم خلیلک او رته غورځول کېږي لیس في الارض واحد یعبدک غیره فاذن لنا في نصره، فقال الله ﷻ ابراهیم خلیلي لیس لي خلیل غیره وانا الله لیس له اله غیري، نو که دده مدد (غوستنه) وغوښتل له یوه څخه ستاسي یا یې خواست درته وکړی زما اجازه ده ورسره وه یې کړئ وان لم یدع غیري نو زه دده دوست یم ما ودوی سره پرېږدئ فانا اعلم بحاله. نو ابراهیم ؑ ته هغه ملکه راغله چي باد ونه یې په تصرف کې خدای ﷻ ور کړي دي، ابراهیم ﷺ ته یې وویل که ستا خوښه وي زه به تند باد پر دې اور مسلط کړم چي سره وه یې پاشي، ابراهیم ؑ ورته وویل لاحاجة لکم، بیا خازن المیاه ملکه ورته راغله ورته وه یې ویل که ستا خوښه وي زه به پر دې اور اوبه وپاشم مړ به یې کړم. ده ورته وویل لاحاجة الیک حسبي الله ونعم الوکیل، او له کعب الاحبار څخه روایت دی چي اخیري دعاء د ابراهیم ﷺ دا وه (لا اله الا انت سبحانک لک الحمد ولک الملک لاشریک لک) وروسته نمرودیانو له منجنیق څخه اور ته وغورځاوه، اور ته نارسیده جبرئیل ؑ ورته راغلی او داسي یې ورته وویل هل لک یا ابراهیم من حاجة؟ ابراهیم ﷺ ورته وویل اما الیک فلا. جبرئیل ؑ ورته وویل چي خدای ﷻ ته خواست وکړه! ابراهیم ﷺ ورته وویل حسبي من سوالي علمه بحالي.

**درویش وایي:** چي د خلیل الرحمن نوم ګټل په مسخره نه دی، دومره لوی لوی امتحانانو ته ضرورت لري، فعلیه الصلوٰة والسلام من امة محمد ﷺ.

دقیقه پوشیده عن افکار العامة: درویش وایي چي څونکه د خلت د ابراهیم ؑ په امتحاناتو کې درې امتحانه پاته وه لکه امتحان د خازن الریاح او امتحان د خازن الماء او امتحان د جبرئیل ؑ کمامر عنقریب تفصیلها، نو خدای ﷻ د نمرودیانو ظالمانو افکار له دې څخه مصروف کړه چي اول به یې د ابراهیم ﷺ لاس او پښې ور تړلي وای او قمیص به یې خندي کښلی وای او د لرګو پر غونډی.

به یې اېښی و ای. وروسته به یې لرګو ته چار طرفه سره د روغنیاتو په شالو سره اور اچولی و ای. منجنیق ته به ضرورت نه و ای، لکن چونکه ابراهیم علی نبینا و علیه الصلوة والسلام په مذکوره درې امتحانه کې د خلت خالصه کامیاب سو. دریاب د رحمت الهي جوش وکړی او خدای ﷻ داسې خطاب و اور ته وکړی.

قُلْنَا يٰنَارُ كُونِىْ بَرْدًا وَّسَلٰمًا عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ ﴿۶۹﴾

موږ وویل (یعني اور ته د نمرود) اوسه خنک (سوړ) (د دې معنی دانه ده چې مړ سه بلکې سره د لمبو خنک سه) او د سلام معنی داده چې برد ضار و ابراهیم ؑ ته دې نه وي.

**پوه سه**: چې سلام مصدر دی حمل یې مبالغةً دی کما هو المشهور في زید عدل یا په حذف د مضاف یعني ذو سلامة پر ابراهیم ؑ، ابن عباس رض وایي که خدای پاک سلامًا نه وای ویلی، نو ابراهیم ؑ به له ډېره یخه مړ وای، قاضي ناصر الدین البیضاوي رح وایي چې په دې آیت کې مبالغات دي (۱) جعل النار المسخرة بقدرته تعالی مامورة مطیعة (۲) اقامة کوني ذات برد مقام ابردي بحذف المضاف واقامة المضاف الیه مقامه، بغوي رح وایي مشهوره په آثارو او اخبارو کې داده چې نسو پاته په تټوله نړۍ کې اور مګر مړ سو. نو په دغه ورځ چا له اور نفع نه ده اخستې او که دا قول د خدای ﷻ نه وای علی ابراهیم بقیت ذات برد ابدًا.

**درویش وایي**: چې که څه هم اکثره تفسیر د مظهري بناء دی پر تفسیر د بغوي لکن په دې خبره کې یې پر بغوي اعتراض کړی دی بقوله قلت والظاهر ان النار کانت بحالها یعني محرقة (کما هو طبعها) لکنها جعلها غیر موذیة لابراهیم خاصة غرض یې دادی چې د دنیا نور اور پر طبع د احراق باقي و ولې خدای ﷻ بردًا وایي په ابراهیم سره مقید وګرځاوه، سدي رح وایي چې ملائکه ابراهیم ؑ پر فرش مخکه کښېناوه چې هورې د شېرینو اوبو چینه هم او ښایسته ګلان د جنت هم وه، راویان وایي چې اووه ورځې ابراهیم په دغه اور کې تېرې کړې چې طعام د جنت به ملکو ورته راوړی، په صحیح روایت کې راغلي دي چې ابراهیم ویل چې زه په ټوله ژوند کې دونه نه یم خوشاله سوی لکه دغه اووه ورځې په اور کې د نمرود، ابن بشار وایي چې خدای ﷻ جبرئیل را واستاوه له جنت څخه یې وربښمین قمیص راوړی په ده یې واغوستی.

**درویش وائي:** چي دا هغه قميص وُ چي په ميراث يعقوب ؑ ته ورسېدلی يعني د پلار اسحق ؑ له خوا څخه او يعقوب ؑ هغه قميص سره کټ کړی د يوسف ؑ په غاړه يې وځړاوه. نو يوسف ؑ چي ورونو څاه ته واچاوه قميص يې څندي وکښی تا چي ما شام پلار يعقوب ؑ ته په وينو رنګ وروړي چي يوسف اکله الذئب نو جبرئيل ؑ جب ته ورغلی د يوسف ؑ تعويذ يې خلاص کړی او هغه جنتي قميص يې په يوسف ؑ واغوستی.

نو جبرئيل ؑ د ابراهيم ؑ لپاره يو جنتي قالين هم راوړي وه دی يې پر کښېناوه او ملک الظل راغله سايه يې پر وکړه او جبرئيل ورته وويل چي خدای ﷻ وايي اما علمت ان النار لايحرق احبابي. نمرود د خپل قصر تر دريچه وکتل که ګوري ابراهيم پر فرش ناست دی دوه کسه نور ورسره دي او اور شاوخوا لمبې وهي. نو نمرود ور نارې کړې چي ابراهيم ته تر دې بل اوره راوتلای سې؟ ابراهيم علیہ السلام ورته وويل نعم. نمرود ورته وويل ته که په دې اور کي پاته يې له ضرر څخه بېرېږې؟ ابراهيم ؑ ورته وويل لا. قال نمرود فقم فاخرج منها زه هيڅ ضرر نه دررسوم. ابراهيم ملکي رخصت کړې په بل اور کي را روان وُ را ووتی دی چي را ووتی نمرود ورته وويل من الرجل الذي معک في صورتک وقاعد الی جنبک ذالک ملک الظل ارسله ربي الي تاچي زما موانست ورسره وي. نمرود وويل اني مقرب الی ربک قربانًا لما رئيت من قدرته وعزته فيما صنع بک حين ابيت عن عبادته وتوحيده. زه څلور زره غوايي ستا د الهه لپاره ذبح کوم. ابراهيم علیہ السلام ورته وويل چي خدای ﷻ يې نه قبلوي چي ته پر دغه دين قائم يې، راسه ته زما دين ته رجوع وکړه نمرود ورته وويل چي سلطنت نسم پرېښولای لکن څلور زره غوايي حتمًا ذبح کوم. نو هغه غوايي نمرود ذبح کړه او په ابراهيم علیہ السلام يې کار نه درلودی د بېرې د لاسه.

## وَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَخْسَرِينَ ﴿٧٠﴾

او نمرودیانو و ابراهيم علیہ السلام ته چم د هلاک کړی وُ، ما دوی وګرځول ناکام چي د دوی اور په ابراهيم هيڅ ونه کړه. او پر نمرود خدای ﷻ غوماشي مسلطي کړې غوښې يې څندي وخوړلې وينې يې څندي وڅېښلې يوه غوماشه د پزې له لارې د ده مغزو ته ورسېده او دی يې هلاک کړی. وآمن له لوط ؑ چي د ابراهيم علیہ السلام

وراره ؤ. وآمنت به ساره ایضًا وهي بنت هاران الاکبر عم ابراهيم ؑ. نو ابراهيم له کوثي څخه د عراق ووتی مهاجرًا الی حیث امره ربه ومعه لوط وساره حتی حران ته ورسېدی. بیو څو وخت دلته پاته سو بیا یې هجرت وکړی مصر ته ولاړی بیا له مصره شام ته راغلی او د السبع په نامه ښار کي یې استوګنه کول چي د فلسطين مربوط ؤ. قال في البحر قد اکثر الناس في حکایة ما جری لابراهيم علیه السلام مع نمرود والصحيح ماجاء في القرآن الكريم انتهى.

## وَنَجَّيْنَٰهُ وَلُوطًا إِلَى ٱلْأَرْضِ ٱلَّتِى بَٰرَكْنَا فِيهَا لِلْعَٰلَمِينَ ﴿٧١﴾

موږ نجات ورکړی ابراهيم او لوط علیهما السلام ته د نمرود او د ده له قوم څخه په عراق کي لکه تاسي چي یې ټوله قصه واورېدل، وهغې ځمکي ته چي موږ برکت اېښی دی په هغې کي د عالميانو لپاره چي ځمکه د شام ده چي هم دنياوي برکت على برکت پکښې دی چي همېشه پکښې بشه کلي ده یعني هر وخت د حاجت باراتونه پر اوري او ډېري درختي پکښې سته او ډېري مېوې رودونه او يالې لري.
ابی بن کعب رضی الله عنه وايي چي مبارکه یې په دې ویلل چي هوري ټولي شېريني اوبه د صخرة بيت دلاندي څخه راوځي. بغوي له قتاده څخه روايت کړی دی چي عمر بن الخطاب و کعب بن مالک رضی الله عنهما ته وویل چي مدینې ته نه راځې چي ځای د هجرت د رسول الله صلی الله علیه وسلم دی وقبره الشريف؟ فقال کعب رضی الله عنه چي ما په کتاب الله یعني تورات کي لیدلي دي یا امیر المؤمنين ان الشام کنز الله وبها کنز عباده.

**درويش وايي:** چي دا د شام هم برکت دنياوي دی او هم برکت معنوي ديني دی وعن زيد بن ثابت قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم طوبی للشام قلنا لاي جهة ذالک (د څه جهته څخه د طوبی د شام) قال لان ملائکة الرحمة باسط اجنحتها عليها (عليه الصلوة والسلام وويل له دې جهته څخه چي ملکو د رحمت خلاص کړي دي وزرونه خپل پر ځمکو د شام. رواه احمد والترمذي) وروی عن علي رضی الله عنه قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم الابدال (یعني چي تصرف د ټولي ځمکي هم د دوی په لاس کي دی) یکونون بالشام وهم اربعون رجلاً فلما مات رجل منهم ابدل الله مکانه رجلاً، یسقی بهم الغيث وينتصر بهم على الاعداء. ويصرف بهم البلاء والعذاب من اهل الشام رواه احمد (درويش وايي: چي له هم دې سببه دوی ابدال بولي)

**درویش وايي**: چي امریکایانو ډېر کوشش کاوه چي نژدې وشام ته اده د اسرائیلي حکومت جوړه کړي تا چي ددې اډې په ذریعه شام له منځه یوسي لکن تر الى اليوم (۱۴۳۰ هـ ق) نه دي کامیابه سوي پر شام، البته فلسطین یې زېر وزبر کړی د دغه اسرائیلي اډې د لاري.

## وَوَهَبْنَا لَهُ إِسْحٰقَ ۖ وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً ۖ

او مونږ هیبه کړه وابراهیم ته یعني ورمو کړه اسحٰق چي د ابراهیم ؑ زوی دی، او یعقوب چي د اسحٰق زوی دی او د ابراهیم لمسی دی عليهم السلام، بعض مفسرین وايي چي نافلة مصدر دی من غیر لفظ الفعل السابق ای وهبنا له هبة، او مجاهد او عطاء رح وايي چي معنی د نافلة عطیة ده، نو نافلة حال دی د اسحٰق او یعقوب دواړو څخه، ولي چي دواړه له عطایا وو څخه د خدای ﷻ دي، او حسن او ضحاک وايي چي معنی د نافلة فضلاً ده او حال ده له دواړو څخه، ولي دوی دواړه تفضل او احسان د خدای ﷻ دي، نو نصب یې پر دې تقدیر حالیت او علیة دواړه کېدای سي.

**درویش وايي**: چي ددې تفاسیرو مآل یو دی ولي چي هبة او عطیة او فضل و یوه شي ته راجع کېږي. د درویش په عقیده هغه تفسیر د نافلة چي د ابن عباس، ابی بن کعب، ابن زید او او قتاده رح څخه مروي دی ډېر ښا او په زړه پوري او د لغت سره برابر دی. ولي چي په لغت کي نفل زیادت ته وايي لکه نفلي لمونځ روژه وغیره، دوی وايي چي نافلة یوازي یعقوب ؑ دی ولي چي ابراهیم ؑ داسي دعاء کړې وه وهب لي من الصالحین هغه خواست د ابراهیم ؑ خو په اسحٰق ؑ پوره سو، او یعقوب چي ولد ولد ابراهیم دی دا خدای ﷻ زائد تر مسؤل دده ورکړی، والنافلة الزائدة. نو نافلة حال دی له یعقوب څخه فقط.

## وَكُلًّا جَعَلْنَا صٰلِحِينَ ۝٧٢

(په کلاً کي تنوین عوض د مضاف دی ای کل واحد من هؤلاء الاربعة یعني ابراهیم، لوط، اسحٰق، یعقوب مع تفاوت) تو له مونږ گرځولي وه له صالح بندګانو څخه چي زړونه یې صاف وه له اشتغال څخه بغیر الله تعالی، او انفس یې پاک وه له رزائل نفسیه وو څخه کالبخل والحسد والکبر وغیر ذالک، او متصف په اوصافو

د کمال وه من الجود والکرم والشفقة وغیرها، او بدنونه یې ککړ په ګناه نه وه د خدای ﷻ په طاعات بوخت وه بدون الریاء والسمعة.

**پوه سه**: چي صلاح ضد د فساد ده وکل من الضدین یتعلق بالقلب والقالب والنفس.

## وَجَعَلْنٰهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا

ګرځولي وه موږ دوی پیشوایان د خلګو چي په دوی پسې به نورو اقتدا کول د خیر په کارو کي (یهدون) المفعول محذوف والتقدیر یهدون الناس دوی لارښونه کول خلګو ته زموږ په امر سره چي موږ انبیاء ګرځولي وه تاچي خلګو ته ماموراتو او منهیات د خدای ﷻ وروښیي تاچي هغه خلک هم و درجاتو ته د کمال ورسیږي.

## وَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرٰتِ وَاِقَامَ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَآءَ الزَّكٰوةِ ۚ وَكَانُوْا لَنَا عٰبِدِيْنَ ۙ﴿۷۳﴾

او موږ دوی ته وحي کړي وې د خیر د اعمالو یعني چي حسن وي من حیث العقل والنقل. لمونځونه بې کول او زکوة د مالو بې ورکاوه، او وه دوی زموږ عبادت کونکي یعني عبادت په توحید وُ بدون الاشراک کما یدل علیه تقدیم الجار والمجرور علی عامله .. بیت:.

عبادت باخلاص نیت نکوست .... وګرنه چه اید زبی مغز پوست

**پوه سه**: چي د لفظ د اقامت تا یې حذف کړه لقیام المضاف الیه مقامها.

**فائده**: اقامة الصلوة هر ځای که په لفظ د مصدر او که د فعل وي او که د مشتق وي چي راسي معنی یې اداء الصلوة مع الفرائض والواجبات والسنن والمستحبات مع تعدیل الارکان وحضور الباطن. او قیام الصلوة نفس لمونځ کول دي ولو بدون تعدیل الارکان وبدون الخشوع والخضوع. ځکه فقهاء وایي چي قائمین الصلوة ډیر دي او مقیمین الصلوة لږ دي او په قرآن کریم کي قیام الصلوة په منافقانو کي راغلي دی کریمه : واذا قاموا الی الصلوة قاموا کسالی الآیة.

**پوه سه**: چي عطف د اقام الصلوة وایتاء الزکوة پر فعل الخیرات باندي عطف د خاص دی پر عام باندي لمزید الاهتمام بشان الصلوة والزکوة لانه ورد في الحدیث الصحیح النبوي الصلوة عماد الدین والزکوة قنطرة الاسلام.

## وَلُوطًا اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا

**پوه سه:** چي لفظ د لوط منصوب دی په فعل سره چي (آتيناه) يې تفسير دی چي دې ته په نحو کي منصوب على شريطة التفسير وايي وهو الاظهر. او بعض مفسرين وايي چي منصوب دی په اذکر مقدر سره ای اذکر لوطا او جمله د آتيناه بدل اشتمال ده، (حکما وعلما) يعني حکمة ونبوة يا فيصله کول په منځ کي د مدعي او مدعى عليه او علما بالله وصفاته الکمالية کما هو شان الانبياء عليهم السلام.

## وَنَجَّيْنٰهُ مِنَ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ تَّعْمَلُ الْخَبٰٓئِثَ

او ده ته مو نجات ورکړی له عذاب څخه (بحذف المضاف) د اهل د قريه چي سدوم يې نوم وُ چي لويه قريه وه له قرى څخه د قوم لوط (التي تعمل الخبائث) صفت دی د قرية. والمراد تعمل اهلها الخبائث.

**درويش وايي:** چي خبائث يې په صيغه د جمع راوړه ولي چي دوی ډېر خبيث کارونه کول. چي اعظم د خبائثو اتيان الرجال في الادبار او په مسافرو پسي بې ډيري غوزخولي او په کوترو به يې بازۍ کولې وغير ذالک.

## اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمَ سَوْءٍ فٰسِقِيْنَ ۝٧٤

په تحقيق دوی وه قوم د بدو يعني بد کارونه يې کوله.

**پوه سه:** چي اضافت د قوم سوء اضافت دی د موصوف و صفته ته ولا يخفى ما فيه المبالغة بجعل السوء صفة لهم او په عين حال فاسقين ای خارجين عن حکم الله منهمکين في الکفر والضلال هم وه.

## وَاَدْخَلْنٰهُ فِيْ رَحْمَتِنَا ۭ اِنَّهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝٧٥

او موږ لوط داخل کړی په اهل رحمت کي زموږ (بحذف المضاف) په تحقيق وُ لوط له صالح بندګانو څخه د خدای ﷻ ای الکاملين في الصلاح والکامل في الصلاح من لا يکون فيه شئ من الفساد الذي هو ضد الصلاح فافهم.

## وَنُوحًا اِذْ نَادٰى

او نوح ؑ هغه وخت چي ده ندا وكړه يعني خواست يې وكړى د نزول د بلا پر قوم دده او د هلاك د هغو بالاستيصال (نوحًا) عطف دى پر لوطًا. والتقدير آتينا لوطًا ونوحًا حكمًا وعلمًا. نو دا خواست هلته ده وكړى چي خداى ﷻ ده ته وويل لن يؤمن من قومك الا من قد آمن. نو ده داسي خواست وكړى (رب لاتذر على الارض من الكافرين ديارًا.

**بوه سه**: چي نوحًا كه عطف سي پر لوطًا باندي نو اذ نادى ظرف منصوب محلاً دى په اذكر مقدر سره. نو اذ نادى بدل اشتمال دى له اذكر نوحًا څخه.

## مِنْ قَبْلُ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ۝٧٦

موږ يې خواست قبول كړى يعني چي قوم مو په طوفان ورهلاك كړى، نو نجات وركړى موږ ده ته او اهل ته دده (چي سام، حام او يافث وه او د هغو زوجات چي دده سره په كښتى كي سپاره وه) له لويه غمه څخه، ابن عباس ؓ وايي مراد غرق دى چي دى او اهل نه سوه غرق، او بل تكذيب د قوم چي دا دواړه لوى غمونه وه.

**بوه سه**: چي تاريخ قديم وايي چي نوح ؑ اطول د انبيا ؤ عمرًا واشدهم بلاءً چي نهه نيم سوه (٩٥٠) كاله يې قوم ته تبليغ كړى دى او قوم يې دومره ازارونه ور ورسول چي كاهي به يې دى دومره وواهه چي بېهوشه سو په كراسته كي به يې ونيچى په خونه كه به يې واچاوه دد وى خيال به دا ؤ چي مړ سو دى چي به پر هوش راغلى بيا به يې قوم ته تبليغ شروع كړى، شروع كړى، او ابن اسحاق صاحب المغازي وايي چي كاهي به قوم دى تينګ كړى په غاړه كي به يې تناؤ ور واچاوه خپه به يې كړى بېهوشه به سو داسي به يې ويل رب اغفر لقومي فانهم لايعلمون.

## وَنَصَرْنٰهُ مِنَ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا

موږ دده سره كومك وكړى (ونجيناه) دا متعلق د من دى، د هغه قوم څخه يعني د نوح علیہ السلام چي دوى تكذيب كاوه د اياتو زموږ.

إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمَ سَوْءٍ فَأَغْرَقْنَٰهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٧٧﴾

دوی قوم د بد و وه. و قد مر تفسیر قوم سوّ فتذکر. نو دوی غرق کړه موږ تول په استیصال او ذلیزه تو ګه اجمعین د پاره د تاکید دی یعني په طوفان سره.

**فائده:** پوه سه چې دعا په خلوص قلب وي لکه انبياء عليهم السلام و کمل الاولياء رحمهم الله هغه دعا د خدای په دربار کې مقرون بالاجابة ګرځي او دغه رنګه دعا د مجبور مؤمن چې په حالت کې د اضطرار خدای ته خواست وکړي کريمه. امن يجيب المضطر اذا دعاه ويكشف السوء. په صحيح روايت سره ثابته ده چې زيد بن ثابت رضي الله عنه د مکې څخه د طائف و خواته راهي وو چې يو بل سړی ورسره ملګری سو. چې منافق وو زيد رضي الله عنه نه ؤ په خبر ظاهر حال يې د مسلمان ؤ. نو د ورځې په تند خوي کې په يوه خرابه سره ننوتل دواړه بېده سوه منافق ناببره پر بېده زيد حمله وکړه او دواړه لاسونه يې ورو تړل او چاره يې را وکښل چې مړيې کړي زيد دا قدر وويل .يا رحمن. اعنى زما سره کومک وکړه. چې د باندي نعره وسوه چې .ويحک لاقتله د منافق خيال دا سو چې د باندي سړي دا نعره وکړه. نو دی دباندي ور ووتی څوک نه ؤ بېرته راغلی بيا چې د زما د قتل قصد وکړی بيا ورته نعره وسوه بيا منافق د باندي ور ووتی څوک نه ؤ، دريمه پلا چې دی خرابې ته داخل يو سړی پر آس سپور پسې را ورسېدی سر يې په توره څنډي پرې کړی او د زيد لاسونه يې ورخلاص کړه. زيد وايې چې دې سړي ماته وويل چې زه جبرئيل يم زه په (۷) آسمان کې وم چې تا دا دعا وکړه .يا رحمن اعنى. خدای جل جلاله پر ما امر وکړی .ادرک عبدي. يعني ځان ورسوه او زما بنده د دښمن څخه خلاص کړه دا خبره يې وکړه او غائب سو.

**پوښتنه:** زيد بن ثابت رضي الله عنه خو نبي نه ؤ نو څرنګه جبرئيل ده وليدی او خبري يې وسره وکړې؟

**ځواب:** امام ابو حامد محمد الغزالي په خپل کتاب کې (المنقذ من الضلال) کې وايې چې صوفيه کرام رحمهم الله په تصفيه د باطن د نفس و هواء څخه او په پاکي د زړه د ماوراء الله څخه او په سبب د دوام الحضور بقلوبهم مع الله سره ملائکة په صورت بشري لېدلای سي يا ځان ورښولی يا نه ورښولی. مقوله شد فرشته ديدن از شان فرشته صفتي.

**درویش وایي:** چې دا خیره به هغه څوک ونه مني چې د حب الشهوات او حب الجاه والجلال او حب الدرهم والدینار په دریاب کې غرق وي شیخ سعدي رح الباري وایي :تو گوي آنچه داني سخن سود مند . اگر هیچکس را نیاید پسند .

**فائده:** د دې آیت څخه .فنادیٰ ربه الی قوله فنجیناه، دا معلومه سوه چې دعاء او درخواست په دربار کې د رب العزة عظیم الرحمة سبب دی د اجابت وقد ورد في الحدیث الصحیح الدعاء مخ العبادة، وایضاً ورد ادعوا الله وانتم مستیقنون بالاجابة، یعني في الدنیا اما باعطاء ما یدعوه او باعطاء حسن البدل عنه او بدفع الشر العظیم عنه، واما في الآخرة باعطاء المنازل الرفیعة والدلیل علی اجابة الدعاء ان الرحمة عامة والقدرة تامة، والعلم بحال الداعي شامل فما لقبول الدعاء مانع . وجیوش الله کثیرة په صحیح روایت کې راغلي دي چې د سفینة رض په نامه چې د علیه الصلوة والسلام ازاد شده مریی ؤ د روم په غزاء کې د لښکر لار په سبب د یو عارض خندي ورکه سوه، نو دی روان ؤ په دښتا او غرو کې ،نو د یو غره له خوا یوه شپه یو زمری راشوه سو چې ستر کې یې لکه څراغان بریښېدې ، نو ده پر رغ کړه انا سفینة مولی رسول الله ﷺ وکان من امر کیت وکیت، یعني خپل حال یې ورته بیان کړی ،نو زمری ورته رانژدې کېدی کرار کرار د صلح پر ډول لکه د درندګانو چې عادت دی لکی یې ورته ښورول، دده و بغل ته ودرېدی، بیا زمری دمخه سو او سفینه رض ته یې وکتل یعني په لسان حال یې دا ورته وویل چې په ما پسې راځه زمری د مخه سفینه رض په پسې حتی چې د لښکر او ازونه یې واورېدل، زمری ودرېدی ده ته یې وکتل، ګویا په زبان حال یې ورته وویل چې ګم شده لښکر ته راورسېدې، وروسته زمري دده پر پښو ژبه تېره کړه یعني قدم بوسي د رخصت یې وکړه ځنګي راهي سو ....بیت:

محال است چون دوست دارد ترا ..... که در دست دشمن گذارد ترا

شیخ سعدي رح وایي:

یکی دیدم از عرصه رود بار ......... که پیش آمدم بر پلنگی سوار
چنان هول ازان حال بر من نشست ........ که ترسیدنم پای رفتن گرفت
تبسم کنان دست برلب گرفت ...... که سعدی مدار آنچه دیدی شگفت
توهم گردن از حکم داور مپیچ ...... که گردن نه پیچد زحکم تو هیچ

حافظ شيرازي رح وايي:

مرا درين ظلمات آنكه رهنمائی كرد ...... دعايي نيم شبی وگريه سحری

مولانا جلال الدين الرومي قدس سره وايي:

آن نياز مريمی بود ست ودرد ...... كه چنان طفلی سخن آغاز كرد

هركجا دردی بود دوا آنجا رود ...... هركجا پستيت آب آنجا رود

تانه رويد آسمان كی خندد چمن ..... تانه گريد طفل كی جوشد لبن

## وَدَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ اِذْ يَحْكُمٰنِ فِى الْحَرْثِ

**درويش وايي:** چي ددې آيت تركيب او بيان د اعراب يې هغسي دی، ونوحًا اذنادی آه. كما مر عنقريب.

**پوه سه:** چي عبدالله بن مسعود او عبدالله ابن عباس رض وايي چي له حرث څخه مراد د انګور تاکان دي چي عنقو يې ښکاره کړي يعني نازک وانبکي د انګورو يې ښکاره کړي. او قتاده رح وايي چي د غنمو خسيل ؤ وهو الاشهر.

## اِذْ نَفَشَتْ فِيْهِ غَنَمُ الْقَوْمِ ۚ وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شٰهِدِيْنَ ۝٧٨

(اذ) ظرف دی ليحكمان يعني يعني د انګورو باغ يا د غنمو كښت پولی ؤ پسو، ميږو او بزو د يو قوم يعني د شپې او شپانه هم نه ؤ ورسره كذا في القاموس او په نهايه كي چي د يو كتاب نوم دی وايي (لعنت) نفشت السائمة اذا رعبت ليلاً بلا راع وهلمت اذا رعت نهارًا (وكنا لحكمهم) او موږ ؤ د حكم ددوی.

**پوه سه:** چي ضمير د جمع راجع دی و داؤد او سليمان او متجا كمينو ته. او فراء رح وايي چي مراد له جمع څخه داؤد او سليمان عليهما السلام دي لانه قد يذكر الجمع ويراد منه اثنان كما في قوله تعالى فان كان له (ای للميت) اخوة يعني دوه وي بالاجماع فلامه السدس (شٰهدين) ای عالمين.

## فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ ۚ

نو الهام وكړی د حكوت يا د فتوی ددې دعوې.

**پوه سه:** چي ضمير مؤنث يا راجع دی و حكومت يا فتوی ته چي له مقام څخه د تحاكم فهميږي. والمراد ان المرضی لله هو فتوی سليمان ع. نو چي حكم د سلميان

داؤد ؑ وارد پدي که څه هم داؤد ؑ فيصله بل ډول کړي وه لکن خپل فيصله يې فسخ کړه او د سليمان ؑ پر فتوى يې فيصله وکړه، بغوي رحمه الله وايي چي ابن عباس او قتاده رضي الله عنهم وايي چي له فسخ څخه د داؤد ؑ د حکم خپل دا معلومه سوه چي حاکم چي مجتهد وي او رايه يې بدله سي د مخه تر امضاء د حکم وده ته روا ده بلکې لازمه ده چي د خپل سابق حکم څخه رجوع وکړي کما فعل داؤد ؑ مع کونه نبيًا وزبور کتابه او سليمان ؑ په دغه وخت چي د دوولسو يا ديارلسو کالو ؤ، او داؤد ؑ دومره تقوى داره ؤ چي له بيت المال څخه يې تنخوا نه اخستل بلکې د عمل اليدين له مبلغ څخه بې خوړک کاوه يعني زغري يې جوړولې او هغه يې خرڅولې.

روى البخاري عن ابى هريره رضي الله عنه عن النبي ﷺ چي داؤد ؑ ته خداى ﷻ قرآن يعني زبور دومره سپک کړى ؤ چي يو خواته به دى تللى نو نوکر ته به يې وويل چي آس خين کړه چي نوکر به لا آس نه ؤ خين کړى ده به زبور ختم کړى.

**درويش وايي:** چي فسخ کول د خپل حکم و حکم ته د دوولس کلن زوى يو ښاغ دده د غايت تقوى ؤ، ابن عباس، قتاده او زهري رضي الله عنهم وايي چي داؤد ؑ ته دوه کسه ورغله چي يو صاحب الزرع ؤ او بل صاحب الغنم ؤ صاحب الزرع ورته وويل چي ددې سړي پسونه د شپې زما په کښت کې سوي دي او کښت يې خواپاکې خوړلى دى (درويش وايي: چي داؤد ؑ چي د زرع او د پسو قيمت سره وسنجاوه يو شى ؤ، نو پسونه يې ټوله و صاحب الزرع ته ورکړه يعني حکم يې وکړى، دا دوه کسه چي تر محکمې د داؤد ؑ د باندي راووتل، سليمان ؑ ورته وويل چي زما پلار څه فيصله وکړه ستاسي تر منځ؟ هغو د داؤد ؑ فيصله ورته بيان کړه، سليمان ؑ ورته وويل که فيصله زما په لاس واى ما بل ډول فيصله کوله، او په بل روايت کي راغلي دي چي سليمان ؑ وويل غير هذا كان ارفق بالفريقين، دا خبره پسو والا و داؤد ؑ ته ورسول، نو داؤد ؑ سليمان ؑ راغوښتى او داسي يې ورته وويل بحق الابوة والبنوة، ته راته ووايه چي ارفق فيصله څرنگه ده؟ سليمان ؑ ورته وويل چي پسونه موقت و صاحب الزرع ته ورکړه چي شيدې، مستې، کوچ او غوړي، وړې، او نوي وري او مرغومي راوړي هغه يې هم د صاحب الزرع، او صاحب د غنمو يعني پسو پر کښت د صاحب الزرع د بزگر په شکل مقرر کړه چي کښت يې اوبه وي او روزي به يې تر څو

چي زرع شنه سوه او هغه حد ته ورسېده چې صاحب د پسو پيوولي وه، بيا دي پسونه و خپل مالک ته ورکړي او کښت دي خپل مالک ته ورکړي.

**درويش وايي:** چي د سليمان ؑ د دې فيصلې سر دادی چي د داؤد ؑ په فيصله کي پسو والا من کل الوجوه په تاوان کي ؤ. ولي تو له پسونه يې له لاسه ووتل او د صاحب الزرع کښت چي خسيل ؤ که څه هم پسو تو له خوړلی ؤ. خو بيرته راشين کېدی او غله يې ورته کوله. نو د صاحب الزرع د دوې ګټي کېدلې هم پسونه او هم غله فافهم.

**درويش وايي:** چي پو هان يو مثال وايي (توانګري بهتر است نه بمال) يعني توانګري د زړه ښه ده نه د مال (وبزرګی بعقل است نه به سال)

**درويش وايي:** چي مظهري ؒ له مجاهد ؒ څخه نقل کړی دی چي دی وايي قول د سليمان ؑ صلح وه بين المتخاصمين او مافعله داؤد ؑ حکم ؤ والصلح خير انتهى.

**درويش وايي:** چي قول د سليمان ؑ کما مرپور ورکول د حق د پسو والا ؤ لا صلح او بيا مظهري ؒ يو بل قول په قيل سره نقل کړی دی چي سليمان او داؤد ؑ دواړه قول په وحي سره وکړی لکن قول د سليمان ؑ ناسخ د قول دده وګرځېدی انتهى.

**درويش وايي:** وهذا بعيد جدا لانه لم يقل احد من المفسرين والمحدثين چي سليمان ؑ په دوولس کلنی يا ديارلس کلنی کي نبوي ؤ، او د قرآن مبارک له عبارت څخه هم دا فهمېږي چي دی نبي نه ؤ د فيصلې په وخت کي حيث قال عزوجل ففهمناها سليمان. او مظهري په خپله تفسير د دغه عبارت قرآني په الهمناها سره کړې. نو له هغه څخه دا واضح سوه چي قول د سليمان ؑ وحي نه وې الهام الهي ؤ، نو داؤد ؑ خو نبي ؤ دده قول چي وحي سي. نو د سليمان ؑ الهام يې څرنګه ناسخ کېدای سي. او بله خبره داده چي وحي قبل العمل به څرنګه نسخ روا وي؟ بلکې صحيح داده لکه اکثره مفسرين چي وايي چي حکم د داؤد او سليمان عليهما السلام دواړه په اجتهاد سره ؤ لکن داؤد ؑ په اجتهاد کي سهوه سو او سليمان ؑ حق ته ورسېدی.

**درويش وايي:** چي مظهري ؒ هم همدا خبره تائيد کړې ده بقوله والاظهر ان حکم کليهما کان بالاجتهاد آه، نو نقل د اقوال وضعيفه وو ته څه ضرورت ؤ بېله اضطرابه د متعلمينو دده د تفسير والله اعلم بالصواب.

**مسئله:** بعض علماء وايي چي انبياؤ ته اجتهاد روا نه دی. ولي چي انبياء ؑ له

اجتهاد څخه مستغني دي په وحي سره لکن صحيح داده لکه چي اکثره فقهاء وايي چي که په انتظار د وحي موضوع د لاسه وتل کما في نحن فيه من خصومة اهل الزرع ومالک الغنم، نو اجتهاد ورته روا دی والا لا.

**مسئله**: نبي چي اجتهاد وکړي خطاء يې ممکنه ده، بعض علماء وايي چي خطاء پر انبياء نه ده روا، لکن صحيح داده چي خطاء خو روا ده لکن لايقرون على الخطاء، بل ينبهم الله على الخطاء، وليس شان الانبياء في الخطاء کسائر المجتهدين من ائمة الامة بلکه ائمة الامة که اجتهاد وکړي او صواب عند الله ته ورسېږي لهم اجران وان اخطاؤا لهم اجر واحد کريمه: لايکلف الله نفساً الا وسعها.

## وَكُلًّا اٰتَيْنَا حُكْمًا وَّعِلْمًا

او هر يوه ته د داؤد او سليمان عليهما السلام مونږ وکړی حکم په منځ کي د خصما او علم يا په وحي سره لکه داؤد ته لکن نه په دې موضوع کي، ولي په دې موضوع کي خو د داؤد ؑ حکم هم اجتهادؤ، يا په الهام سره لکه حکم د سليمان په موجوده موضوع کي.

**مسئله**: بعض علماء وايي چي هر مجتهد مصيب دی او حق عند الله په وخت کي د اختلاف د مجتهدينو متعدد دی، او دا دله په دغه آيت سره دليل وايي حيث مدح الله کليهما بقوله وکلا اتيناها آه، لکن صحيح داده چي په دې آيت دوی لره دليل نسته بلکي دا آيت پر دوی د ملامتی دليل دی، ولي خدای ﷻ وويل ففهمناها سليمان، تخصيص د سليمان ؑ يې وکړی، دليل پر دې دی چي صواب اجتهاد د سلميان دون اجتهاد داؤد ؑ، نو چېري دی تصويب د هر مجتهد او دغه کسان چي هر مجتهد پر صواب بولي په حديث سره چي روايت يې بخاري او مسلم کړی دی هم دليل وايي چي عمر بن العاص رض وايي چي ما واورېده له عليه الصلوة والسلام څخه چي يو حاکم چي خپل اجتهاد په کار واچوي فاصاب فله اجران، او که خطا وتی فله اجر واحد، او ددې حديث روايت ابو داؤد، احمد، ابن ماجه او نسائي له ابو هريره رض کړی دی او ترمذي له عمرو بن العاص رض څخه کړی دی کما مر، دا هم ددوی دليل نه دی بلکي پر دوی دليل دی، لانه صريح في ان المجتهد يصيب

ویخطئ وحین کونه علی خطاء ماجورًا باجر واحد لایدل علی کونه مصیبًا لکون الصواب والخطاء ضدان ولیس مراده صلی الله علیه وسلم انه یؤجر علی خطاء بل یؤجر علی بذل اجتهاده في طلب الحق والصواب وهذا الجهد عبادة فیؤجر علی تلک العبادة والخطاء عنه مرفوع اذ لم ینل جهده ولا یکلف الله نفسًا الا وسعها ولیس للانسان الا ماسعی وعند الاصابة له اجران، اجر الاجتهاد وبذل مجهوده واجر نیل الصواب والله اعلم بالصواب.

روح البیان په مسئله کي د اجتهاد د انبیاء علیهم السلام وایي چي په صحیح حدیث کي راغلي دي چي العلماء ورثة الانبیاء، فیلزم ان یکون درجة الاجتهاد ثابتة للانبیاء لیرثوا العلماء منهم ذالک الاجتهاد، والاجتهاد جائز للانبیاء عند اهل السنة والجماعة لیدرکوا ثواب المجتهدین.

**درویش وایي**: چي روح المعاني وایي چي هر مجتهد مصیب دی دا قول دی د جمهور المتکلمین. کالاشعري والقاضي بیضاوي رح. ومن المعتزلة کابی الهزیل والجبائي واتباعهم. ونقل عن الائمة الاربعة یعني امام ابو حنیفة والشافعي ومالک واحمد بن حنبل رح. القول بتصویب کل مجتهد آه. قلت هذا بعید جدًا ولي چي ائمه اربعه رح قائل په تصویب د هر مجتهد سي، نو اتباع د دوی ولي عمومًا پر دې دي چي مجتهد یخطئ ویصیب مع ان دلیل المقلد هو قول مجتهد. والقرآن والحدیث النبوي ایضًا یدلان کما مر علی ان المجتهد یخطئ ویصیب فافهم والله اعلم.

**درویش وایي**: چي لکه چي د مخه اختلاف د داؤد او د سلیمان علیهما السلام په اجتهاد کي تېر سو. بل اختلاف اجتهاد دی هم په منځ کي د دوی راغلی دی. او بیا اجتهاد د سلیمان ع کامیابه سوی دی وهو ماجاء في حدیث رواه البخاري ومسلم عن ابي هریرة رض قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول چي دوې ښځي وې چي د هري یوې سره خپل کوچنی زوی ورسره ؤ، نو یو لېوه راغلی د یوې ښځي کوچنی زوی یې حمله کړی (درویش وایي چي داسي معلومېږي چي له اهل بدو ښځه به وي) نو هغې ښځي چي زوی یې لېوه یوړی په هغه بلې ښځي یې دعوه وکړه چي ستا زوی لېوه یوړی دا موجود زما زوی دی. خیر د دې فیصله یې و داؤد ع ته وروړه، او هغه مشره ښځه چي زوی یې لېوه وړی ؤ د هېره په ژبه کي چالاکه وه، نو د داؤد ع دا اجتهاد

سو چي دا پر حق ده، نو يې حکم وکړی چي پاته کوچنۍ مشري ته ورکړئ. دوی چي راوتلې سليمان ؑ ورته وويل چي فيصله د چا په حق کي وسوه؟ هغې مشري ښځې ورته وويل چي کوچنۍ مې ځندي وګټې، سليمان ؑ په الهام الهي ورته وويل چي چاړه راوړئ زه يې درنيمی کوم فقالت الصغری لاتفعل يرحمک الله هو ابنها. چي دا کوچنۍ د کبری زوی دی، نو چونکه هلک د صغری زوی ؤ في الحقيقة که څه هم داؤد ؑ فيصله په حق کي د کبری کړې وه (د تقسيم په خبرو کي کبری ساکته وه) نو د صغری تقسيم او مرګ د زوی نه ؤ پېرزو. نو له دې کبله يې اقرار وکړی چي زوی د کبر دی، نو سليمان ؑ هلک و صغری ته ورکړی چي دا رشتيا ستا زوی دی چي پر مرګ دي نه دی پېرزو انتهی الحديث په پښتو ژباړه.

## وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ ۚ

موږ مسخر کړي دي د داؤد ؑ سره غرونه، چي غرونه به دده تسبيح ويله، يعني چي داؤد ؑ ته به تسبيح څه فتور وريښ سو غرونه به تسبيح ورسره شروع کړه ده ته به لويه خوشالي پيدا سوه.

**يوه سه**: چي کلمه د مع متعلق په سخرنا پوري يا په يسبحن پوري ده، مراد له تسبيح څخه تسبيح قولي ده چي بل چا به هم اورېدې لکه په لاس کي د رسول کريم ﷺ چي شګو تسبيح ويل او خلکو هم واورېده کما جاء في الحديث النبوي (والطير) او مرغان. عطف دی پر جبال يا مفعول معه دی.

**نکته**: جبال يې تر طير د مخه کړه، ولي چي تسخير او تسبيح د غرو اعجب ده. ولي مرغانو خو ظاهراً يو څه اوازونه کوي که څه هم څوک عموماً نه په پوهېږي او له جبال څخه خو هيڅ صوت نه صادرېږي.

**يوه سه**: چي جمله د يسبحن يا حال ده له جبال څخه او يا استيناف دی بيان د وجه د تسخير دی يعني استيناف بياني دی، حسين کاشفي وايي مؤمن کامل بايد که اعتقاد کند برين وجه که کوهها و مرغان بموافقت داؤد ؑ بروجهی تسبيح می ګفتند که همه سامعان را ترکيب حروف و کلمات آن مفهوم ميشده و اين معنی از قدرت الهی غريب نيست، يک شاعر محقق ميګويد:

هر كجا قدرتش علم افراخت ....... از غرائب هر آنچه خواست بساخت
قدرتی راکه نیست نقصانش ....... کارها جمله هست اسانش

**درویش وایي**: چي هر څوک چي له تسبیح قولي مسموعي څخه د حجر او طیر د داؤد علیه السلام منکروي، هغه له قدرت عظیم څخه د خدای ﷻ او د قرآن څخه منکر دی.

## وَكُنَّا فَٰعِلِينَ ۝٧٩

موږ یو فاعل د تفهیم او تسبیح او غرو او د مرغانو.

**درویش وایي**: چي عجب خبره خو دا ده چي د جمادات چي په صنعت سره د کافرانو جوړ سوي دي لکه راډیو، ټلویزون، ټلګراف او نور فاحشاتي آلات او تر ټولو رائج شی لکه موبائل چي د هر نر او ښځي په جیب کي دی او د هر لوی او کوچنی په پوهیږي، او د خالق العالم په قدرت د غرو او مرغانو د تسبیح د داؤد سره د حیرت یا د انکار په ستر ګو ګوري، روح المعاني وایي تذیل او تعلیل دی د ماقبل ای من شاننا ان نفعل امثاله فلیس ذالک یبدع وان کان بدیعًا عندکم.

## وَعَلَّمۡنَٰهُ صَنۡعَةَ لَبُوسٖ

موږ ښوولی و داؤد ؑ ته جوړول د لبوس.

**پوه سه**: چي لبوس په لغت کي نوم دی د هر اغوستونکي شي او په اسلحه وو کي استعمالیږي، مراد څنګه دي دلته زغري دي چي د جنګ په وخت کي استعمالیږي (یعني په پخواني زمانه کي)

**درویش وایي**: چي اول واضع او جوړونکی د زغرو په قول د قتاده رح داؤد ؑ دی وفي الحدیث الصحیح کان داؤد ؑ لایاکل الا من عمل یدیه.

## لَكُمۡ لِتُحۡصِنَكُم مِّنۢ بَأۡسِكُمۡۖ

(لکم یا معشر القریش في جملة الناس) چي تاسي وساتي یعني من حرب عدوکم. او سدي رح وایي من وقع وتاثیر السلاح من السیف وغیره في ابدانکم.

**پوه سه**: چي اهل القراءة السبع، ابو جعفر، ابن عامر، حفص او یعقوب رح (لتحصنکم) په تاء سره وایي وضمیر الفاعل المؤنث راجع دی یا وصنعة ته یا و لبوس ته په تاویل د زروع. او باقي قراء یې په یاء تحتانیه سره وایي. وضمیر

الفاعل راجع الی داؤد ؑ.

**درویش وايي**: چي صنعه د زغرو معجزه وه د داؤد ؑ په دې سبب چي هیڅ آلت نه متركه، نه سندان او نه اورته ضرورت ؤ. کريمه: والنا له الحديد ان اعمل سابغات الآية.

تاريخ قديم وايي چي لقمان حكيم چي د داؤد ؑ شاگرد ؤ په دې صنعت کي به يې فکر واهه چي داؤد ؑ دا څه شی جوړوي ولي چي تر اوسه يې نه ؤ ليدلی، ګاهي به يې فكر واهه چي پوښتنه ځني وكړه بيا به بر ته ساكت سو چي اخير به پخپله داؤد ؑ د دې شي سر بيان كړي، نو داؤد ؑ چي زغره پوره كړه او وايه غوستل. نو يې وويل نعم ادات الحرب، نو لقمان يې بې پوښتنه په حكمت او فائده پوه سو. نو يې داسي وويل ان من الحكمة الصمت (يعني حکمت دا دی چي سړی پټه خوله اوسي)

مقوله: پوهان وايي چي كه څه هم خبري سپين زر دي لكن صمت بيا هم سره زر دي

اگر بسيار دانی اندکی گوی .......... يکی را صد مگو صدرا يکی گو

دی له بیت المال څخه تنخواه اخلي، ولیس شئ افضل من ان یاکل الرجل من کد (د تکلف څخه) یده، نو داؤد ؑ چي دا خبره د جبرئیل واورېده له خدای ﷻ څخه یې خواست وکړی ان یجعل رزقه من کد یده، قال الله تعالی فالنا الحدید الی اخیر الآیة، او صنعت د ذروع یې وروښو، نو زغري به یې جوړولې او هغه به یې خرڅولې ویاکل هو و عیاله من ذالک.

**تفریع**: د فقهي شریفي په کتابو کي وایي چي په بیت المال کي حق د تنخواد حکمرانانو سته او حق د علماؤ او مدرسینو سته او حق د ساداتو کرامو سته، نو د مذکوره کسانو لپاره اکل د بیت المال څخه حرام نه دی عند اهل الشریعة والحقیقة لکن ترک یې افضل دی لاهل التقوی کمایدل علیه قصة داؤد ؑ، حافظ شیرازي ؒ:

فقیه مدرسه ای مست بود و فتوی داد ... که می حرام ولی به زمال اوقاف است

شرح البیت: له فقیه مدرسه څخه مراد هغه مست دی چي په شرابو د غفلت او د حب الدنیا او اعتماد پر تنخوا د مدرسې یې تکیه او اعتماد کړی وي، او لفظ د (دی) معنی دی شب برای شپه فتوی ورکړي، د لفظ می معنی شراب دی او مراد څني عشق الهي دی یعني فقیه مدرسه دا عشق حرام وباله لکن حال دا غسي نه دی لکه ده چي فتوی ورکړه، ولي چي عشق حقیقي او اعتماد التام پر خدای ﷻ ښه دی تر اکل او خوراک د مال وقف، او تکیه پر تنخواد مدرسې یا پر زکواة مقتدیانو، ولي د دوی سترګي د مخلوق و خواته کړې دي.

فائده: د انبیاء علیهم السلام قبل النبوة وبعدها کسبونه یې کول او د عمل الیدین نفقه په خوړله (۱) د داؤد ؑ حرفت او کسب خدای ﷻ په قرآن کي ذکر کړی (۲) ادریس ؑ خیاط ؤ (۳) او نبینا ﷺ د مخه تر نبوت د مکې والو پسونه په اجرت ورپوول کما في البخاري کنت ارعی الغنم لاهل مکة علی قراریط او کماقال. وروسته تر نبوت علیه الصلوة والسلام کالي په خپله ګنډله په کور کي، وفي الحدیث عمل الابرار من الرجال الخیاطة وفي الحدیث ما من نبي الا وقد رعی الغنم (۴) نوح علیه السلام نجار ؤ (۵) ابراهیم علیه السلام بزاز ؤ، او په حدیث شریف کي راغلي دي چي که جنتیانو تجارت کولای بزازي به یې کولای، او که دوږخیانو تجارت کولای صرافي به یې کولای، او په بل نامه د حوالو کاروبار به یې کولای.

(۶) زمونږ نيکه آدم علیه السلام کالي ودل چي خامک يې بولي (۷) سليمان علیه السلام سره
د انس او جن د سلطنته تو کرۍ يا غلبېلونه به يې جوړول او خرڅول به يې ويا کل
من ثمنه لا من بيت المال (۸) او موسی و شعيب علیهما السلام د خلکو د پسو د پوونې
مزدوري کول.

**مسئله:** د انبياء علیهم السلام نومان ددوی د اکسابو به سپکاوی نه وایي والا
يخاف عليه الكفر نعوذ بالله من ذالک.

**پوه سه:** چي افضل د کسبو جهاد في سبيل الله دی وکان حرفة رسول الله ﷺ
بعد النبوة والهجرة. ثم التجارة بشرط الامانة. ثم الحراثة يعني کښت کاري ثم
الصناعة کما في المختار والتحفة.

## وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً

دا جمله عطف ده پر (مع داوٗد) والمعنى وسخرنا لسليمان الريح.

**پوښتنه:** د تخسير سره د داوٗد يې مع لفظ راوړی، او د تسخير سره د سليمان
يې لام راوړی نکته يې څه ده؟

**ځواب:** لپاره د فرق بين السخيرين من التفاوت، ولي چي تسخير د سليمان[۴] ريح
وه وغيرها كان بالانقياد الكلي له وكونه امرًا عليها. وتسخير الجبال وطير فلم يكن
بهذه المثابة اي الامرية عليها بل بطريق التبعية له والاقتداء به في عبادة التسبيح
وشتان بينهما فافهم (عاصفة) حال من الريح (چي مؤنث سماعي دی) يعني تند تېز
رفتاره چي مسافت بعيده په مدت قصيره کي قطع کوي، کريمه: غدوها شهر (يعني
له سهار څخه تر غرمي پوري د يوې مياشتي مزل يې پر مخکه قطع کاوه) ورواحها
شهر (او له زوال ته تر لمر لوېدلو پوري يې د يوې مياشتي مزل قطع کاوه)

**سوال:** په قرآن مبارک کي داسي هم راغلي دي (رخاء) چي ضد د عاصفة دی؟

**ځواب:** د باد کرار والی او تند والی د سليمان علیه السلام په اراده ؤ.

**درويش وايي:** چي حال د تخت سليماني حال د طيارتو دی په اوسنی زمانه
کي لکن د اوسنی زماني طياري په صنعت او حکمت چلېږي، او د تخت سليماني
رفتار په معجزه او قدرت د خدای جل جلاله ؤ لکن مع ذالک د اوسنی زماني صنعت او
حکمت د سليماني تخت ورفتار او بارګيرته نژدې لا نه دی کما سيئاتي.

تَجْرِي بِأَمْرِهِ إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا

(تجري آه) حال ثاني دی یا بدل دی له حال اول څخه، یعنې دا باد رفتار کاوه په امر د سلیمان و هغې مځکې ته چې موږ برکت ایښی دی چې مراد ځنې شام دی چې منزل د سلیمان علیه السلام هورې ؤ.

**پوهه سه:** چې برکت د شام هم دنیاوي دی چې ښه ښه رودونه او ولې پکښې بهیږي او د هري ښې میوې باغونه پکښې سته او غرونه یې د معدنیاتو مرکزونه دي، او هم برکت معنوي پکښې سته چې مقر د ډېرو انبیاء کرامو علیهم السلام دی.

**سوال:** د سلیمان ؑ کور خو په شام کې ؤ، نو دې خو به له شام څخه لېږي کېدی، نو کلمه د الی چې لپاره د انتهی د غایة څرنګه استعمال سوه.

**ځواب:** بعض مفسران وایې چې کلمه د الی په معنی د من ده چې لپاره د ابتداء الغایة ده، او بعض مفسرین وایې چې دې مجاز ته ضرورت نسته، ولې چې سلیمان ؑ چې به بکرة پر یو خوا تلی ماښام به بیرته ارض مقدسه ته راستون کېدی.

وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عَالِمِينَ ﴿٨١﴾

موږ په هر شي سره په ازل کې خبر ؤ، یعنې د حکمت سره برابر کار مو کاوه چې یو له هغو امورو څخه حال د سلیمان ؑ ؤ چې که څه هم تخت پر باد روان ؤ لکن دا سبب د تکبر دده نه ګرځېدی بلکې لا یې خضوع و رب جل وعلا ته زیاتېده، وهب بن منبه رح وایې چې سلیمان ؑ چې به له کوره راووتی مرغان به په هوا کې شاوخوا پر ګرځېدل او جنیات به تیارسيږ ولاړ وه تر څو چې دی پر تخت کښېناستی، او سلیمان ؑ غازي مطلق ؤ في جمیع مدة حیوته، او چې په یوه ناحیه کې د اطرافو بې خبر د مملکت د کافرانو واورېدې غزا ته به ور راهې سو، نو له مملکت به یې ذلیل کړی او د کفر بېخ کې به یې د وزرو څخه وروکښلې.

حسین کاشفي رح در تفسیر حسیني چنین میګوید: در تلخیص آمده که در شام شهری بود بنام قدمو که دیوان برای سلیمان بنیاد ساخته بودند. صباح از آن شهر بیرون آمدی باز نماز شام دیر آید آنجا آوردی. و در مختار القصص آورده که بامداد از شهر قدمو بیرون آمدی و قیلوله (یعنې غرمه) در اصطخر فارس کردی

وشبانگه بکابل پای تخت افغانستان رفتی وروزی دیگر از کابل بیرون آمدی وچاشت در اصطخر بودی وشام به شهر خود قدمو باز آمدی. وکانت (یعنی تخت سلیمان ؑ) یذهب الی حیث یشاء سلیمان ثم یعود منزله بالشام، وروی ان سلیمان ؑ سار من العراق غادیًا وصلی العصر ببلخ (من بلاد افغانستان) ثم سار من بلخ درمیان بلاد الترک والصین (یعني چین) ثم عطف منها علی مطلع الشمس علی ساحل البحر حتی اتی الی قندهار (من مضافات افغانستان) یعني هغه ځای چي داله یې بولي چي امریکایانو هورې د ارغنداب رود ته کاسه جوړه کړې ده یعني د دوو غرو منځ په سختو لوی لوی ډبرو او په سمټو یې بند کړی دی تاچي ذخیره د اوبو سي د قندهار د ولایت، درې دروازې یې ورکړي دي چي کاسه چي ډکه سي د پسرلي په وخت او واوري د غزني او کابل ویلي سي او دې کاسي ته راسي، اول یې لوړه دروازه ایله کړي د قندهار د باغو او کښتو لپاره، وروسته چي لوړې اوبه تمامي سي بیا یې دویمه دروازه ایله کړي، د کال په پای کي دریمه دروازه ایله کړي چي هغه اوبه هم تمامي سي، نو درې سره دروازې بندي کړي د آئنده کال د بارانو لپاره ثم وثم الی الیوم، نو بیا به سلیمان ؑ له قندهار څخه ووتی و مکران او کرمان ته حتی فارس ته به راغلی، څو ورځي به یې په فارس کي تېري کړې سهار به د کسکر پر خوا وخوځېدی خپل ښار قدمو ته به راغلی.

**درویش وایي:** چي په داله کي د قندهار یو غردی چي کوه سلیمان یې بولي دا غر قرارگاه د سلیمان ؑ وه، امریکایانو چي د دالې بند تړی په یوه غار کي یې یوه تاریخي ډبره پیدا کړه چي پر هغه ډبره نوشته وه چي موږ یو وخت د سلیمان په ملګری دلته راغلو والله اعلم.... شیخ سعدي ؒ وایي:

نه برباد رفتی سحرگاه وشام ....... سریری سلیمان علیه السلام
بآخر نه دیدی که برباد رفت ...... خنک آنکه بادانش وداد رفت

**درویش وایي:** چي روح المعاني، روح البیان او مظهري له مقاتل ؒ څخه داسي روایت کړی دی چي شیطانانو یو قالین رقم بساط و سلیمان ؑ ته د سرو زرو له تارو څخه او د ورېښمو د تارو څخه جوړ کړی وُ فرسخ په فرسخ کي او پر دې بساط یې منبر د سرو زرو جوړ کړی وُ في وسط البساط، نو سلیمان پر دې منبر

کښېنستلی او شاوخوا به یې درې زره کرسی وې بعض د سرو زرو او بعض د سپینو زرو چې انبیاء یعني د سلیمان د وخت پر کرسیو د سرو زرو کښېناستل، او علماء د وخت دده پر کرسیو د سپینو زرو کښېناستل وحولهم الناس، وحول الناس الجن والشیاطین او پر سرو د ټولو به مرغان راګرځېدلي وه، یعني د سایوان په شکل تا چې تودوخی د لمر نه ورور سېږي وترفع ریح الصبا ذالک البساط مسیرة شهر من الصباح الی الرواح ومسیرة شهر من الرواح الی الصباح.

واعجب من ذالک ما روی عن سعید بن جبیر ونقل المظهري، چې سلیمان ته به شپږ لکه کرسی ایښوول کېدې یجلس الانس فیما یلیه ثم یلیهم الجن ثم یظلهم الطیر ثم تحملهم الریح.

**درویش وایي**: چې دېر عجیبه روایت مظهري له ابن زید څخه کړی دی، دی وایي چې د سلیمان مرکب یعني تخت د لرګو ؤ، او په دې مرکب کې زر کونجیان وه او په هر کونج کې زر خوني وې یرکب معه فیه الجن والانس، او تر هر کونج یې زر شیطانان وه او هغو شیطانانو دا مرکب چې بې پورته کړی ریح رخا به راغلی فسارت به (ای بسلیمان) وبهم (او دده په ملګرو سره هر څو زره کسان چې به وه) یقیل عند قوم (یعني غرمه به یې تېرولـه پـه نېږ د یـوه قـوم) بینه وبینهم شهر ولیمشي عند قوم بینه وبینهم شهره، او د سلیمان جنګي فوج به ورسره ؤ او د مخ خلک به په لښکرو نه وه خبر انتهی.

**پوښتنه**: ستا حواله و کتاب ته نه وه عادت دا اوس ولي حوالې کوې؟

**ځواب**: که فقیر بې حوالې دا عجیبه روایات بیان کړي وای حاسدانو به ویل چې ایوبي سخته لوی درواغ وویل یعني زه خپله ذمه فارغه کوم، ولي چې مظهري تر ما په حدیث نبویه وو بنه خبر دی او په تواریخ قدیمه وو تر ما بنه خبر دی، والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

**پوښتنه**: ددې کرامت د تسخیر د ریح کما ذکرناه و سلیمان ه سبب څه ؤ؟

**ځواب**: حسن وایي چې یو وخت چې سلیمان د یوې غزاء اراده وکړه او آسان یې معاینه کول کما جاء في القرآن في موضع، د ماپښین تر لمانځه وروسته فکر یې نه ؤ د آسانو په معاینه اخته ؤ د مازدیګر لمونځ ځندي قضاء سو، نو هغه

بوله آسان يې ذبح کړه خيرات يې کړه، نو خداى عزوجل تر آسانو خير او بې تکليفه د خورک وغيره او تر آسانو چابک شى چې باد ؤ ده ته مسخر کړى انتهى.

**وَمِنَ الشَّيٰطِيْنِ مَنْ يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ وَيَعْمَلُوْنَ عَمَلًا دُوْنَ ذٰلِكَ**

او مونږ مسخر کړي وه و سليمان ته شيطانان چې غوټې به يې وهلې په درياب کې او جواهرات به يې له دريابو څخه ده ته رايستل.

**اعراب:** کلمه د من موصوفه يا موصوله ده يغوصون صله يا صفت دى معطوف على الريح او ضمير د له راجع دى سليمان ته او من الشياطين حال من کلمة من باعتبار معناه او مقدم پر ذى الحال دى. والتقدير وسخرنا نفوسًا يغوصون له کائنين من الشياطين (ويعملون عملاً آه) عطف دى پر يغوصون. او جوړول او عمل کاوه شيطانانو عملاً ماسوى د اخراج د جواهرو من البحار بالغوص فيها، چې قلاوي يې ورجوړولې چې ځاى پر ځاى به ثابتې وې يعنې له يوه ځايه بل ځاى ته نقل کېدلې. او ښارونه يې ورجوړوله او اختراع د غريبه او نادره صنعاتو به يې ورته کوله کما جاء في موضع آخر من القران. کريمه: من محاريب وتماثيل وجفان کالجواب و قدور راسيات الى آخير الآية.

**وَكُنَّا لَهُمْ حٰفِظِيْنَ**

او وو مونږ ساتونکي د شيطانانو له بغاوت څخه ده د امر يا له افشاء څخه د ماعملوا. ولې چې د شيطانانو دا عادت ؤ چې له يوه کار څخه به خلاص سوه او په بل کار به نه سوه اخته هغه د مخه کار به يې بېرته خراباوه، نو سليمان عليه السلام دوى دې ته نه پرېښول بلکې يو کار چې به يې خلاص کړى على الفور به يې په بل کار اخته کړل او د هر شيطان سره به يې يو انسان مقرر کړى ؤ او هغه انسان ته به سليمان عليه السلام ويل چې شيطانان چې له يو کار څخه خلاص سي دستي يې په بل کار اخته کوه کذا ذکر البغوي رحمه الله. په يوه روايت کې راغلي دي چې مسخر شيطانان چې سليمان عليه السلام به اعمال شاقه په کول کافران د شيطانانو وه لا مؤمنوهم يعنې په هغو يې اعمال شاقه نه کول.

**سوال:** شيطانان خو کافران دي طبعًا نو مؤمنان به دوى څرنګه وه؟

**ځواب:** مراد له شيطانانو څخه معنى اعم ده للجنيات وفي الجن مؤمن وکافر.



Scanned by CamScanner

**پوښتنه:** شيطانان خو اجسام لطيفه دي، نو اعمال شاقه د دوی د حال سره ځرنګه و ړ دي؟

**ځواب:** دا ثابته ده چي دوی په اشکالو مختلفه وو سره کېږي فيقدرون على الاعمال الشاقة. ولي چي ريح خو هم جسم لطيف دی لکن په وخت کي د قصف يعني الشدة درختي نړوي، علاوه تر دې شيطانان په تسخير کي د سليمان همېشه پر داسي اجسامو وه چي خلګو به ليدل کارونه به يې کول.

## وَاَيُّوْبَ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗٓ

**پوه سه:** چي دد دې آيت اعراب هم هغسي دی لکه ونوحًا اذ نجيناه، او روح البيان دد دې اعراب داسي بيان کړی دی واذکر خبر ايوب الی قومک.

**درويش وايي:** چي وهب بن منبه رح وايي چي ايوب ؑ رجل من الروم او مظهري هم دغه روايت راوړی دی، او روح المعاني وايي نقلاً عن ابن اسحاق الصحيح انه من بني اسرائيل ولم يصح في نسبه شئ الا ان اسم ابيه اموص، او ابن جرير رح وايي چي نسب يې داسي ؤ ايوب بن اموص بن رزاح بن عيص بن اسحق بن ابراهيم عليه السلام، او ابن عساکر رح وايي چي د ايوب ؑ مور د لوط ؑ لور وه، او دده پلار پر ابراهيم ؑ باندي ايمان راوړی ؤ فعلی هذا کان ايوب ؑ قبل موسی ؑ، او ابن جرير رح وايي کان ايوب ؑ بعد شعيب ؑ وقال ابن ابی خثمة رح کان بعد سليمان ؑ، او ابن سعد المؤرخ الکبير له کلبي رح څخه روايت کړی دی چي اول نبي مبعوث بعد آدم هو ادريس ؑ ثم نوح ثم ابراهيم ثم اسماعيل واسحق و يعقوب ثم يوسف ثم لوط ثم هود ثم صالح ثم شعيب ثم موسی و هارون ثم الياس ثم اليسع ثم يونس ثم ايوب علی نبينا و عليهم السلام.

(القول. المسلم) درويش وايي: چي په اتفاق د مفسرينو دا خبره منل سوې خبره ده چي ايوب ؑ د خدای جل جلاله برګزيده شخصيت ؤ او نبي يې ګرځولی ؤ او فراخه دنيا يې ورکړې وه، د ثنيه په نامه په شام کي يې يوه قريه درلوده ټوله دده وه اهلها وجبالها، او قسم قسم مواشي يې درلوده من الابل والبقر والغنم والخيل والحمر مالا يکون لرجل افضل منه في العدة والکثرة، او پينځه سوه جوړه غوايي د زراعت يې درلوده چي د هري جوړې سره يو مريی ؤ او هر مريي يې ماينه او عيال درلوده، او

خدای پاک ده ته کور ودانه ورکړي وه او اووه (٧) زامن او اووه لوڼې يې درلودې وکان برًا تقيًا رحيمًا بالمساكين يطعم المساكين ويكفل الارامل (اى كونډيانې) والايتام ويكرم الضيف وكان شاكرًا لانعم الله مؤديًا بحق الله من الزكوة وغيره او خدای دی ساتلی ؤ د عدو الله ابليس څخه چې اهل غنی والغفلة والشاغل عند امر الله بما فيه من الدنيا ته به ابليس ور پيښول ايوب علیه السلام ته به يې نسوای رسولای، تر دې ځايه پورې به بعض مبالغه آميزې خبرې به البته پکښې وي. روح البيان ډېره مختصره تو که بيان د غنی د ايوب کړی دی او روح المعاني هم څه تطويل په غنا کې د ايوب ؑ کړی دی. خو مطلب دا دی چې د ابليس حسد ورسره پيدا سو. او خدای ﷻ ته يې خواست وکړی چې ستا بنده ايوب در عافيت است وسعت عيش است ډېر مالونه لري او خوانان زامن لري، که چېري له ايوب څخه دا مال او اولاد او دا سعت عيش ځندي واخلې ژر دی چې ستا څخه به مخ واړوي او د کفران نعمت لار به غوره کړي. بعض مفسرين لکه روح البيان او مظهري داسې راوړي دي چې حق سبحانه وتعالی و ابليس ته وويل چې داغسې نه ده لکه ته چې وايې، ايوب ؑ زما په حقه سره بنده دی که زه زر واره په بوقه کې د امتحان دی ويلي کړم بې غش به راوخي بلکې صفائي به يې توره زياته سي لکه د سرو زرو آه.

**درويش وايي:** چې له دې عبارت څخه خو داسې معلومېږي چې د خدای ﷻ او د ابليس تر منځ دغه سوال او ځواب بالذات جاري ؤ وليس كذالك كيف يصح مكالمة رب الارباب مع الرجيم الخناس. بلکې صحيح دا ده چې ابليس به خود حسد د ايوب علیه السلام سره پر لار اچولی وي لکه د ابو البشر آدم علیه السلام او دا مذکوره خبرې به ابليس خود د خدای ﷻ په دربار کې کړې وي لا بالذات په اميد د دې چې شايد دغه لوی دوست د خدای ﷻ په بلاء کې د مخالفت د خدای ﷻ واچوي، نو حق سبحانه وتعالی پر ايوب ؑ بلايا مسلط کړې چې دی صابر ثابت سو، د ابليس ځواب په خپله وسو. بلايا ايوب ؑ چنان بود که همه شتر انش بصاعقه هلاک شدند وگوسفند انش همه وهمه بسبب سيل در گرداب بلا افتادند وزراعاتش بباد آتش آميز بسوخت و اولادش همه وهمه درزير ديوار کشته شدند وبر بدن مبارکش دانه ها پيدا شدند ودران هزاران کرمها پيدا شدند

وخلق از وی گریخت و دوری اختیار نمودند بجز زن او رحمت بنت افرایم بن یوسف، او ایوب په دې بلا او امتحان کې اتلس یا اوولس کاله اووه میاشتې اووه ورځې اووه ساعته مبتلا ؤ. یوه ورځ یې ماینې ورته وویل چې کاشکې دې خدای ﷻ ته خواست کړی وای چې خدای له دې ناجوړی څخه جوړ کړی وای. ده ورته وویل چې زما او ستا د استراحت او عیش څو زمانه وه؟ هغې ورته وویل اتیا کاله، نو ایوب ورته وویل چې زه له خدایه شرمېږم چې خواست ورته کوم چې تر اوسه مې زمانه د بلا و زمانې ته د رخاء (استراحت) نه ده رسېدلې. او هر سهار و ایوب مکروب ته دا خطاب مستطاب د رب الارباب په ذریعه د جبرئیل رسېدی چې ایوبه څه حال دې دی. وایوب بذوق و شوق این پرسش الهی کوه بلا را بجان میکشید و درآن بیماری خوش وقت.

اگر بر سر بیمار خود آیی بعیادت.... صد ساله بامید تو بیمار توان بود

او په بدن کې د ایوب په زرو چینجیان خدای ﷻ پیدا کړي وه چې یو چینجی به ده له بدنه ولوېدی ده به بیرته په خپلو غوښو کې کښېښو او دا به یې ویل چې ستا رزق خو زما له غوښو څخه دی. روح البیان وایي چې بعض کبائر علماء وایي چې بلا د ایوب تر ده د مخه اوویا انبیاؤ د ځانو لپاره مختاره کړې وه لکن خدای پاک و ایوب ته دا پېرزوینه وکړه لانه قد قیل ان العطایا علی متن البلایا. ولهذا قال سعید البشر ﷺ ما اوذی احد کما اوذیت. راویان وایي چې د ایوب د بدن ټولې غوښې چینجیانو وخوړلې حتی بقی العظام والقلب واللسان والعینان والاذنان، ولما قصد الدود القلب الذي هو معدن النبوة والولاية ولسانه الذي هو مصدر الذكر ومورد التوحيد. نو ایوب وېرېدی چې له طاعت څخه او له تسبیح څخه د خدای ﷻ بالکلیة بېکاره کېږم، ولې دی له ضعف څخه د بدن دومره اندازې ته ورسېدی چې په ولاړه یې لمونځ نشوای کولای. فلما انتهى الاتبلاء وحصل الغناء التام في مقام البلاء الهمه الله تعالى الدعاء ليوصله الى مرتبة البقاء ويتجلى له الرب بصفة الجمال واللقاء بعد الجلال والاذى كما اخبر عنه اذنادی ربه (ای دعاه)

أَنِّي مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَأَنتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ﴿٨٣﴾

(اني) اى باني (مسني) اى اصابني (الضر) اى رنج وسختي، ته تر ټولو مهربانو بهتر مهربانه يې.

**پوهه**: چي ايوب ؑ داسي نه وويل ارحمني بلکې صرف خپل افتقار يې ښکاره کړی تلطفًا في السؤال وحفظًا للادب، علماء وايي چي اکثره سوالونه د انبياء کرامو په صورت کي د تعريض او کنايې دي قال الشاعر المحقق:

وفي نفس حاجات وفيک رحمة...... سکوتی بيان عندها وخطاب

حافظ شيرازي قدس سره وايي:

ارباب حاجتم وزبان سوال نيست...... در حضرت کريم تمنا چه حاجتيست

**نکته**: هذا القول من ايوب دعاء وتضرع والافتقار لاجزع وشکاية له تلطف شخه د طلب او سوال هغه سوال د يوې ښځي دی چي شکايت يې وکړی بعض اولاد ته د سعد بن عباده چي يو غني سړی ؤ او داسي ورته وويل قلت الفار في بيتها، زما په خونه کي مږکان لږ سوه، هغه ورته وويل تلطفت في السوال، نوکرانو ته يې وويل املئوا بيتها خبزًا وسمنًا ولحمًا، په روح المعاني کي وايي چي يوه ورځ چي امرئة ايوب په طلب پسي د ډوډۍ لپاره د ايوب ؑ تللې وه على حسب المعتاد ابليس عليه اللعنة ورڅې ته په يو عظيم هيئت ودرېدی او دې ته يې وويل چي زه خدای د ځمکي يم، دا ستا پر مېړه هر څه حالات چي راغلي دي زما له طرفه شخه دي، ولي ده زما عبادت پرېښو چي اله الارض وم او د اله السماء عبادت يې مختاره کړی که دی ماته يوه سجده وکړي زه بې مال اولاد ټولو ورد کړم او په صورت به يې جوړ کړم، نو رحمته د ايوب ؑ کور ودانه راغله و ايوب ؑ ته چي هغه په اصطلاح په يوټپ کي چي په عربي يې کناسه بولي د بيت المقدس پروت ؤ بې يارو مددګار، دا حال يې ورته ووايه، هغه پوه سو چي شيطان لعين ورته ويلي دي، نو قسم يې واخستی چي که زه خدای ﷻ جوړ کړم تا به سل لرګي وهم، روح المعاني په اخير کي وايي والله اعلم بصحة هذا الروايات.

**درويش وايي**: چي دا عجب العجائب د بيانا تو شخه چي په حال کي د ايوب ؑ بيان سوي دي ما قال المظهري ؒ في بيان قصة ايوب ؑ قال فکان ابليس لايحجب

عن شئ من السموات وكان يقف فيهن حيث ما اراد حتى رفع عيسى عليه السلام فحجب عن اربع فلما بعث محمد ﷺ حجب عن الثلاث الباقيات آه.

**درويش وايي:** چي دا منع د ابليس نه ده دا خو منع د مسترقوا السمع يعني هغه شيطانان چي تر اول اسمان پوري به ورغله او د ملكو خبرو ته به يې غوږ نيوى. نو د عيسى ؑ په بعثت سره نه د دفع ده په سبب سره دا دائره د اوريدلو د ملكو د خبرو ځخه تنګ سوه او د عليه الصلوة والسلام په بعثت سره ډېر تنګ سوه او په شهب ويشتل كېدل كما جاء في القرآن المجيد. وصرح بذالك في البخاري ومسلم، وروسته دى وايي فسمع ابليس تجاوب الملائكة بالصلوة على ايوب وذالك حين ذكر الله واثنى عليه فادركه البغي والحسد وصعد الى السماء حتى وقف من السماء موقفا كان يقضه آه.

**درويش وايي:** چي دا خبره د صريح قرآن ځخه مخالفه ده. ولي ابليس چي آدم ؑ ته سجده ونه كړه خداى ﷻ ورته وويل اخرج منها اى من الجنة. وروسته ابليس، آدم او حواء ته جمعًا يې وويل اهبطوا بعضكم لبعض عدو، نو دوى درې سره له اسمان ځخه و مځكي ته راغله. بيا په هيڅ حديث كي نه دي راغلي چي د ابليس لار و آسمانو ته خلاصه وه د مخه تر عيسى او محمد عليهما السلام آه. وروسته يې ويلي دي چي ابليس چي د ايوب ؑ په زمانه كي آسمانو ته ورغلى داسي يې خداى ﷻ ته وويل الهى نظرت من امر عبدك ايوب فوجدته عبداً انعمت عليه فشكرك وعافيته فحمدك، ولو ابتليته بنزع ما اعطيته لحال عما هو عليه من شكرك وعبادتك ولخرج عن طاعتك آه، ددې معنى خو داده چي د خداى ﷻ سره بالذات ابليس خبري وكړې او خداى ﷻ دده په خوله هم وكړه ولم ينقل عن احد من العلماء المحدثين ولا عن احد من الائمة الاربعة رحمهم الله ان ابليس كلم ربه تعالى بعد الطرد واللعن فمن اين يقول المظهري رحمه الله ذالك؟ ثم قال المظهري چي خداى ﷻ ابليس ته وويل انطلق فقد سلطتك عليه وعلى ماله آه.

**درويش وايي:** چي خداى ﷻ فرمايي (ولن يجعل الله للكافرين على المؤمنين سبيلاً. نو ځرنګه خداى ﷻ دا لوى دښمن ابليس پر دې دوست ايوب مسلطه كاوه البته ابتلاء د خداى ﷻ پر ايوب ؑ راغله لكه د مخه چي تېره سوه په هلاك د اموالو،

مواشيو، د اولادو او د زراعت دده نه په واسطه د ابليس عليه اللعنة لانه تعالى عزيز علي امره، وروسته مظهري ويلي دي چي درويش دده عبارت په پښتو ژباړه نقل کړي دي، دى وايي چي ابليس چي خداى جل جلاله مسلط کړى پر ايوب ؏ او دى له آسمانو څه مځکي ته راغلى، نو ده اراده وکړه چي پر ايوب ؏ داسي مصيبت قارعة مسلط کړي چي هيڅ انسان صبر نسي پر کولاى، نو ددې کار لپاره يې د پيرانانو خبيثان او د شيطانان سرکښان راجمع کړه، او ابليس ورته وويل چي ستاسي سره څه قوت چي درسره دى. يو عفريت د شيطانان ورته وويل ما ته دومره قوت راکړل سوى دى چي ستا خوښه وي چي زه کولاى سم چي يوه لمبه د اور وګرځم او هر شي ته چي ورسم پاک يې وسوځم. ابليس ورته وويل چي ورسه او ښانو ته د ايوب چي ټوله په مرعى کي سره جمع دي ټوله اوښان يې وسوځه، خلګ نه پوهېدل چي نابېره له مځکي يوه لمبه راووتل، نو د ايوب ؏ ټوله اوښان سره د څرونکو (سارووانانو) پاک وسوځل، وروسته ابليس ځان د اوښان د څرونکو په شکل کړى ايوب ؏ ته راغلى چي دى پر لمانځه ولاړ ؤ، نو يې ورته وويل يا ايوب له مځکي څخه يو اور راووتى ټوله اوښان يې وسول سره د هر شي بېله ما. فقال ايوب ؏ الحمد لله الذي هو اعطاها وهو اخذها، ما نه دى عادت کړى خپل نفس پر غنى.

**درويش وايي**: چي ورته واقعات د ابليس د ايوب ؏ سره په هلاک کي د اولادو دده او د زراعت د ايوب ؏ مظهري راوړي دي درې صفحې نوري. فقير وايي چي که دومره قدرت ابليس درلوداى او دومره قهرمانان يې درلوداى، نو پر مخ د مځکي به يې مسلمان نه واى پرې ايښى، وقد قال الله تعالى ان عبادي ليس لک عليهم سلطان فافهم.

فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَكَشَفْنَا مَا بِهٖ مِنْ ضُرٍّ

قبوله کړه موږ دعاء د ايوب ؏ (يوه سه: چي مراد له دعاء څخه هغه ضمني دعاء د ايوب ؏ ده اني مسني الضر وانت ارحم الراحمين) نو موږ لرى کړى هغه چي دده مرض ؤ يعني جوړ مو کړى او ورته وه مو ويل ارکض برجلک، پښه د مځکي ووهه ده چي پښه د مځکي ووهل له مځکي څخه يوه چينه د اوبو پيدا سوه، خداى پاک دى امر کړى چي په چينه کي غسل وکړه! ده چي غسل وکړى ټوله مرضونه چي په

ظاهر بدن کي وه جوړ سوه، او از سر نو يې ځواني راوګرځېدل او هغه جمال او حسن ما کان چي خدای ﷻ ورکړی ؤ. ایوب ؑ څلوېښت ګامه رهي سو، بیا خدای ﷻ ورته وویل چي بیا پښه د مځکي ووهه. نو ده چي پښه له مځکي ووهل بله چینه پیدا سوه چي بنې یخي او به یکښې وې خدای پاک دی امر کړی چي دا او به وڅښه ده چي او به د قدرت الهي وڅښلي نو له د باطن امراض یې جوړ سوه فصار کاصح ما یکون من الرجال. او له جنت څخه کالي ورته راغله هغه یې په ځان واغوستل.
قال الحسن رحمه الله چي ایوب ؑ پر یو لوړ ځای کښېنستی ماینې یې فکر وکړی چي ورسم چي دی به مړ وي د لوږي. ولي چي هغه د شیطان خبره چي دې ته یې کړې وه چي دې وایوب ؑ ته وکړه او ده قسم واخستی چي که زه جوړ سوم تا به سل لرګي وهم. ایوب ؑ دا قسم هم په هغه وخت کي ورته اخستی ؤ چي زه بیا ستا د لاس راوړې ډوډی نه خورم. نو ځکه د ماینې یې دا خیال سو چي اوس به دی د لوږي مړ وي او خدای نخواسته که مړ وي نو درندګانو به خوړلی وي. نو دې د ځان سره وویل چي که څه هم دی زما څخه پر هغه خبره خفه سو زه به خامخا ور ځم او د وفاداری قدیم تناؤ به کشوم. دا چي ور غله نه کناسه وه او هغه مځکنی حالات چي دې لیدلی ؤ ټول متغیر ؤ. نو شا وخوا ګرځېدله چي هغه کناسه چیري ده چي ایوب ؑ پر پروت ؤ او ژړل یې په فراق د مېړه. دې خو هغه ځوان ولیدی چي پر لوړ ځای ناست ؤ لکن له شرمه یې پوښتنه نسوای ځندي کولای. ایوب ؑ ږغ پر وکړی یا امة الله ما تریدین؟ دې وژړل او داسي یې ورته وویل چي په خپل همسر مبتلی ایوب ؑ چي پر دې کناسه ناجوړی پروت ؤ ګرځم، زه نه پوهېږم چي مړ سوی به وي درندګانو به خوړلی وي او که څرنګه؟! ایوب ؑ ورته وویل چي که یې ته ووینې پېژنې یې؟ دې ورته وویل چي ایوب ؑ چي چا لیدلی وي، نو څرنګه به یې نه پېژني، نو ما چي خپله ځواني د ده سره تېره کړې ده نو څرنګه به یې نه پېژنم؟. لکن دې د ستر ګو تر کنجیانو دې ځوان ته کتل او شرمېدل او ځندي پېرېدل هم. نو یې دا خبره ورته وکړه چي زما مېړه چي جوړ او ځوان ؤ تا ته په رنګ سوی ؤ. ایوب ؑ ورته وویل چي زه ایوب یم. روح المعاني وایي چي ایوب ؑ ورته خندل ماینې یې پر خندا وپېژندی، نو مېړه او ماینې لاس و نه په غاړه کي سره واچول... جامي رحمه الله وایي:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ........ بامید رسد امیدواری

**پوښتنه**: خدای پاک ایوب؏ په صابر سره مسمّٰی کړی دی، او سره ددې چې د ده جزع یعني شکایت وکړی انی مسني الضر؟

**ځواب**: بعض مفسرین وايي چې دا شکایت نه دی بلکې دا دعاء ده د رفع د ضر یعني المرض بدلیل قوله تعالی فاستجبنا له یعني موږ یې خواست قبول کړی. او بل ځواب دادی چې جزع شکایت دی و مخلوق ته او شکایت و خدای ﷻ ته جزع نه ده او نه عدم صبر دی، کما قال یعقوب؏ في فراق یوسف؏ انما اشکوبثي وحزني الی الله. علاوة سفیان بن عیینة رحمه الله وايي چې څوک چې اظهار د شکایت و خلګو ته وکړي لکن په قضاء د خدای ﷻ راضي وي دا جزع نه بولي لکه په حدیث صحیح کې چې راغلي دي چې جبرئیل؏ و آنحضرت ﷺ ته راغلی په مرض موت کې دده نو یې ورته وویل چې ته خپل ځان څرنګه بولې؟ علیه الصلوة والسلام اجدني مغمومًا اجدني مکروبًا. زه خپل ځان په غم کې وینم (یعني في امر امتي) نو دا خو علیه الصلوة والسلام اظهار د جزع او غم و جبرئیل ته وکړی لکن مع هذا په قضاء د خدای ﷻ راضي ؤ وله امثلة کثیرة في الآحادیث الصحیحة.

## وَاٰتَيْنٰهُ اَهْلَهٗ وَمِثْلَهُمْ مَّعَهُمْ

او موږ ورکړه و ایوب ته اهل دده یعني هلاک شده زامن دده او مثل د هغو سره د هغو.

**پوښتنه**: چې ماینې ته اهل نه وايي فلا یرد السوال چې د ایوب؏ ماینه خو ژوندۍ وه.

**درویش وايي**: چې ددې آیت په تفسیر کې اختلاف دی ابن مسعود رضي الله عنه ابن عباس رضي الله عنه، قتاده، حسن او اکثره مفسرین رحمهم الله وايي چې ایوب؏ ته مثل د اولاد هلاک شده ورکړل سو چې شپږ زامن او شپږ لوڼې وې او هلاک شده ګان نه دي ورته راژوندي سوي، وهذا القول یخالف ظاهر القرآن کما مر. او بعض علماء وايي چې ایوب؏ ته اختیار ورکړل سو د خدای ﷻ له خوا څخه چې هالکین په دنیا کې درژوندي کړم او که دي هغه د آخرت ذخیره وي او مثل یې په دې دنیا کې درکړم، نو ایوب؏ شق ثاني مختار کړی، نو معنا د آیت داسې ده، وآتینا مثل اهله في الآخرة ومثلهم في الدنیا ونسب هذا القول الی الامام الاعظم ابو حنیفة رحمه الله والله اعلم.

**درویش وایي:** چي له انس رض څخه روایت دی چي علیه الصلوة والسلام ته یې رسولی دی چي د ایوب ؑ دوه ځایونه وه یو د غنمو او بل د اوربشو، نو خدای ﷻ د غنمو او د اوربشو د ذخیرې پر ځای دوې وریځې راواستولې چي د غنمو د ذخیرې پر ځای یې د سرو زرو باران وکړی او د اوربشو د ذخیرې پر ځای یې د سپینو زرو باران وکړی.

**درویش وایي:** چي په روح المعاني کي یو حدیث داسي راغلی دی په روایت د ابن عباس رض، دی وایي چي ما پوښتنه وکړه د علیه الصلوة والسلام څخه په باره کي دد غه آیت (وآتیناه اهل الخ) علیه الصلوة والسلام وویل چي خدای پاک مایینه د ایوب رد کړه وده ته وزاد في شبابها او ددې ځواني له سره راوګرځېدل یعني لکه د ایوب ؑ ځواني چي خدای ﷻ راوګرځول. حتی ولدت له ستا وعشرین ولدًا ذکرًا قال روح المعاني. فالمعنی علی هذا آتیناه في الدنیا مثل اهله عددًا مع زیادة مثل آخر انتهی (یعني هغه مړه عیال د ایوب ؑ یې نه دي راژوندي کړي).

**پوه سه:** چي احمد، بخاري وغیرهما رح روایت کړی دی له ابو هریره رض څخه عن النبي ﷺ چي یوه ورځ ایوب ؑ غسل کاوه لڅ (یعني په محفوظ ځای کي) پر ده راشوه سوه ملخان د سرو زرو، نو ایوب ؑ هغه ملخان په څپلو کالو کي چابک چابک جمع کول. نو خدای ﷻ ده ته نداء وکړه (یعني بلا واسطة ملک) الم تکن اغنیتک عما تری، یعني ته ما نه یې مستغني کړی له دې جمع کولو څخه د سرو زرو د ملخانو یعني چي پر ذخیره د غنمو مي د سرو زرو باران درو کړی او پر ذخیره د اوربشو مي د سپینو زرو باران درو کړی. ایوب ؑ ورته وویل چي هو مستغني خو دي ګرځولی وم، وعزتک یعني ستا په عزت مي دي قسم وي لکن لا غنی عن برکتک یعني د سرو زرو ملخان خو ستا له خوا برکت دی، ستا له برکت څخه خو مستغني نه یم.

**درویش وایي:** چي له دې حدیث څخه معلومه سوه چي تکثیر د مال حلال مباح دی خصوصًا لمثل ایوب ؑ الذي کان منفقًا علی الیتامی والارامل والمساکین في سبیل الله کما لایخفی.

**فائده:** د ابن عباس رض په روایت ایوب ؑ وروسته تر تېرېدلو د امتحان او بلا تر دورې اوویا کاله ژوندی وُ، او مفسران وایي چي ایوب ؑ چي په امتحان کي د بلا

واقع کېدی عمر يې اوويا کاله ؤ. نو مجموع عمر د ايوب ؑ و يوسل څلويښتو کالو ته رسېږي، وهب بن منبه ؒ وايي چې د ايوب ؑ د عمر نيمه چې پای ته رسېدله، نو يې خپل زوی حرمل جای نشين وګرځاوه يعني بامره تعالى.

## رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا وَذِكْرٰى لِلْعٰبِدِيْنَ

يعني موږ چې ايوب له بلا څخه خلاص کړی وآتيناه اهله الآية. دا پر ايوب ؑ باندي رحمت ؤ زموږ له خوا څخه، او دا نصيحت ؤ د نورو عابدانو لپاره يعني چې دوی هم په بلايا وو کي د خدای ﷻ صبر وکړي، ولي صبر که څه هم ظاهراً ګران دی لکن بر او مېوه شرينه لري في الدنيا والآخرة کما سمعت في قصة ايوب ؑ.

سعدي شيرازي ؒ وايي:

هرکه او در راه حق صابر بود ...... بر مراد خويشتن قادر بود
صبر بايد تا حرج يکسو شود ...... زانکه ګفت الصبر مفتاح الفرج

**فائده:** پوه سه! چې بلا د ايوب ؑ له قبيلې څخه د امتحان وه تا چې ښکاره سي و خلکو ته ما في الضمير من الصبر ويظهر الله لخلقه اين ايوب ؑ من ربه. او بلا د يوسف ؑ چې څورلس کاله يې په بندي خانه کي تېر کړه له قسمه څخه د عقوبت وه، ولي چې ده يو بندي ته چې له بندي خانې خلاص سو داسي وويل اذکرني عند ربک يعني پر ما سوی د خدای ﷻ يې تکيه وکړه، او بلاء د يحيٰ عليه السلام چې کافرانو ذبح کړی له قبيلې څخه د کرامت وه، ولي چې يحيٰ ؑ په خپل ګرد عمر کي د معصيت قصد نه ؤ کړی.

**درويش وايي:** چې تر عنوان د دې آيت مبارک لاندي واما بنعمة ربک فحدث يعني ذکر د نعمت د خدای ﷻ په قصد د شکر روا دی بلکې واجب دی بلکې عليه الصلوة والسلام ته چې په دغه آيت کي ده ته امر وکړل سو چې تحديث په نعمت دی وتاته چې عبارت له رسالت څخه دی واجب دی، او نورو خلکو ته بيان د نعمت د خدای ﷻ پر دوی لازم يا مستحب دی. نو درويش له قسمه د تحديث بالنعمة من الله العزيز عليه وايي چې په سنه (۱۴۳۰) هجري قمري کي چې عمر د فقير د (۹۵) په شاوخوا کي ؤ په نيت د عمرې او د زيارت د حرمينو شريفينو په اخير کي د مياشتي د ربيع الثاني سره د خادم زوی حاجي عبد الهادي عازم د سفر سوم حتی

چي مکې مکرمې ته ورغلو مراسم د عمرې مو پر ځای کړل او يو څو شپې مو په مکه مکرمه کې تېرې کړې، وروسته لپاره د زيارت د قبر نبوي او مسجد نبوي مدينې منورې ته ولاړو تخميناً څورلس ورځې مو هورې تېرې کړې وروسته بيرته مکې مکرمې ته راغلو شپه د جمعې مباركې وه چې مکې مکرمې ته ورغلو په هغه شپه کې فقير خوب وليدی چې يو څوک فقير ته وايي امح کمالاتک من العلم والقدرة والعبادة في کمالات حضرت النبي ﷺ تعرف حقيقة الرسالة وامح كمالات حضرت النبوة في صفات حضرت الرب جل وعلا تعرف حقيقة ربوبية الله ﷻ وهذه الرؤيا. بشارة لهذا العبد العاصي وتعليم مقام رسالة النبي ﷺ والمرتبة العالية لحضرت الباري جل وعلا والامر كذالك.

## وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِدْرِيسَ وَذَا الْكِفْلِ

او اسماعيل بن ابراهيم او ادريس چي نوم يې اخنوع وسمى بادريس لكثرة دراسته ووعظه للناس، او ذا الكفل

**پوهه:** چي دغه اسماء منصوب دي په اذكر مقدر سره يعني ذكر كړه ته قصه دد غو كسانو و خپل قوم ته.

**فائده:** په ذا الكفل کې اختلاف دی عطاء رح وايي چي دی نبي ؤ له انبياؤ څخه د بني اسرائيلو، قصه څه داسي وه چې يو نبي ؤ له انبياؤ څخه د بني اسرائيلو چي اجل يې نژدې سو خدای پاک وحي ورته وکړې چې زه ستا روح قبض کوم ته مملکت د بني اسرائيلو داسي چا ته وسپاره چي هغه دې ضمانت او کفالت پر ذمه واخلي چي هغه به ټوله شپه په عبادت تېروي سستي به نه کوي، او هره ورځ به روژه نسي روژه به نه خوري او غصه او غضب به چاته نه کوي فادفع ملك اليه. يعني ملک او بادشاهي و هغه ته وسپاره، نو يو ځوان د بني اسرائيلو دا کار پر ذمه واخستی هغه ته يې بادشاهي وسپارل او هغه هم په مذکوره شرائطو سره وفا وکړه او خدای ﷻ يې سعي مشکور او قبول وګرځول او نبوت يې هم ورکړی فسمی بذا الكفل لذالک. او دې سرې ته خدای ﷻ صرف د غرمې په وخت کې د يو څو ساعتو د خوب او ارام اجازه ورکړې وه، نو ابليس ملعون د دې ذوا الکفل له لاري څخه د اړولو داسي تدبير وکړی چې د ذوا الکفل چې د قيلولې او ارام وخت

راغلی نو ابلیس په صورت د سپین ږیري سړي ورته راغلی دروازه یې ورو ټکول، ذوا الکفل ورته وویل من هذا؟ څوک یې چي دروازه دي وټکول؟ ابلیس ورته وویل شیخ مظلوم، ذوا الکفل دروازه ورخلاصه کړه، ابلیس ورته وویل چي زما او د قوم تر منځ خصومت دی پر ما یې فلانی فلانی ظلم کړی دی خو ابلیس خبري اوږدي کړې او د ذوا الکفل د خوب او ارام وخت یې ټوله پر تېر کړی، ذوا الکفل ورته وویل چي ته ولاړ سه زه چي د قوم او خلکو د فیصلو لپاره کښېنم ستا حق به د ظالمانو څخه درواخلم، ذوا الکفل چي د محکمې په ځای کي کښېناست ګوري چي اوس به هغه سپین ږیری مظلوم راسي اوس به راسي خو سپین ږیری ورک سو یعني نه راغلی اخیر ولاړ سو شا وخوا یې په خلکو کي وکتل سپین ږیری یې نه ولیدی، دویمه ورځ هم ذوا الکفل د سپین ږیري په انتظار ؤ خیر چي د محکمې وخت پوره سو ذوا الکفل د خوب او استراحت پر ځای پرېوتی، دروازه وټکېدل ذوا الکفل ورته وویل څوک یې؟ ابلیس ورته وویل الشیخ المظلوم دروازه یې ورخلاصه کړه او شیخ ته یې وویل چي ما تاته نه وویل چي ته راسه د محکمې په وخت کي ما ستا انتظار کاوه ته نه راغلې سبب څه ؤ؟ ابلیس ورته وویل چي زما قوم ماته وویل چي ته مه ورځه محکمې ته د ذوا الکفل مه پیشوه موږ ستا حق پوره درکوو. لکن دوی چي وپوهېدل چي ذوا الکفل د محکمې له ځایه ولاړ سوی دی بیرته منکر سوه. نو ځکه زه نن بیا د فریاد رسی لپاره راغلم، ذوا الکفل ورته وویل چي ته اوس ولاړ سه چي زه د محکمې په ځای کي کښېنم ته راسه زه به ستا غور وکړم، ابلیس چي د شیخ مظلوم په شکل کي راغلی ؤ خبري یې ورسره اوږدي کړې حتی چي د ذوا الکفل د استراحت وخت یې دویمه ورځ هم پر تېر کړی، د ابلیس مقصد دا ؤ چي ذوا الکفل به ماته په غضب سي او دده د کفالت کړی به ماته سي کمامر، بیا ذوا الکفل ورته وویل چي ته ولاړ سه ماپښین د محکمې په وخت کي راسه، ابلیس ذوا الکفل دوه شپانه روزه بد خوبه کړی. دا بله ورځ هم ذوا الکفل د شیخ په انتظار ؤ خو نه راغلی دریمي ورځي بدخابي ډېر زور پر وکړی، نو حاجبانو ته یې وویل چي نن د دروازې ټکولو ته هیڅ څوک مه پرېږدئ چي زه یو څه خوب وکړم، دریمه ورځ شیخ مظلوم ابلیس پر هغه وخت د استراحت د ذوا الکفل راغلی خو حاجبانو منع کړی چي دروازه وټکوي. نو ابلیس په هغه خونه

کي چي ذوا الکفل ارام پکښي کاوه يو غار وليدی تر هغه غار ورننوتی ولي چي
شيطان په هر صورت کېدای سي، ابليس په خونه کي دننه ولاړ دی په صورت د
شيخ مظلوم د دننې خوا څخه دروازه ټکوي ذوا الکفل چي د درو ورځو بېخابه ؤ
حاجب ته يې وويل چي ما نه وه درته ويلي چي د دروازې ټکولو ته څوک مه
پرېږده؟ حاجب ورته وويل چي د دباندي له خوا څخه خو موږ څوک نه دی پرې
ايښي چي دروازه وټکوي ته وګوره چي د کومي خوا دا سړی درغلی دی. ذوا
الکفل ور ولاړ سو دروازه د دننه خوا هغسي بنده وه لکه ده چي بنده کړې وه، ذوا
الکفل چي وکتل شيخ مظلوم په خونه کي دننه دده سره ولاړ دی. ابليس ورته وويل
اتنام والخصوم ببابک (ته خوب کوې او خلګ په دروازه کي تا ته ولاړ دي) نو ذوا
الکفل پوه سو چي دا ابليس دی، نو يې ورته وويل يا عدو الله انت ابليس؟ قال نعم
زه دي ډېر ستړی کړی وم نو ما هم دا درې ورځي پر تا خوب حرام کړی په اميد د دې
چي ته ما ته غصه او غضب وکړې او ستا عهد به مات سي لکن عصمک الله مني،
فسمی ذوا الکفل لانه تکفل بامر کما مر من الشروط الثلثة فوفی بها فتامل.

كُلٌّ مِّنَ الصّٰبِرِيْنَ

هر يو له دغو مذکوره انبياؤ څخه له صبر کونکو څخه وه پر مصائبو او پر
مشقت د عباداتو او ځانونه يې ساتلي وه د شهواتو او معاصيو څخه.

**پوه سه:** چي مراد له صابرينو څخه کاملين في الصبر دي. اما اسماعيل[ع] ده صبر
وکړی پر ذبح کولو باندي د پلار ابراهيم[ع]، او پلار ته يې داسي وويل يا ابتي افعل ما
تؤمر به ستجدني ان شاء الله من الصابرين. او بل يې صبر کړی وُ په او سېدو کي د
مکې د وچې شيلې چي لازرع فيه ولاضرع ولانباء، نو ځکه خدای پاک دده له نسل
مبارک څخه خاتم الانبياء محمد مصطفی ﷺ پيدا کړی. او ادريس[ع] صبر کړی وُ پر
مشقت د دراست د کتاب الله. او د ذوا الکفل بيان نږدې تېر سو.

وَاَدْخَلْنٰهُمْ فِيْ رَحْمَتِنَا اِنَّهُمْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ

او موږ داخل کړي وه دوی ټول په رحمت خاصه کي خپل (من النبوة و درجات
القرب من الله ﷻ او په اخرت کي مقامات عاليه د جنتو دي) په تحقيق دوی له
صالح بندګانو څخه د خدای ﷻ وه، يعني کامل الصلاح چي د فساد هيڅ لار

ورته نه وه لكونهم معصومين من الصغائر والكبائر قبل النبوة وبعد النبوة.

**درويش وايي**: چي د عصمت د انبياء عليهم السلام تحقيق مي په اكمله وجه ما په خپله رساله كي چي نوم يې (كشف الغطاء عن عصمت الانبياء) دى كړى دى والله الموفق.

## وَذَا النُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا

او بيان كړه قصه د ذا النون اى صاحب الحوت وهو يونس بن متى عليه السلام، يعني چي دا خبره د ذا النون هغه وخت ؤ چي دى ولاړى له قوم څخه په داسي حال كي چي دى په نهايت غضب كي ؤ.

**درويش وايي**: چي متى د يونس د پلار نوم ؤ كما في البخاري وغيره وصححه ابن حجر رحمه الله. روح المعاني وايي چي زما علم نسته پر اتصال د نسب د يونس يعني چي نسب متصل يې چاته رسيږي، او ابن كثير وايي چي متى د يونس د مور نوم ؤ.

**فائده**: نسبت و مور ته په هيڅ نبي كي نه دى راغلى بيله يونس بن متى او عيسى بن مريم عليهما السلام، په جامع الاصول كي دغه مختاره ګڼل سوې ده چي د مور نوم يې ؤ او عطاء رحمه الله وايي چي ما له كعب بن مالك رضي الله عنه څخه پوښتنه وكړه چي متى د يونس د مور نوم ؤ او كه د پلار؟ ده راته وويل چي د پلار نوم يې ؤ، د مور نوم يې بدورة دى وهو من ولد هارون.

**فائده**: لفظ د متى په فتح سره د ميم او په تشديد د ياء مفتوحه ويل كيږي، او يونس ته ذا النون په دې سبب وايي چي ماهي تېر كړى ؤ والنون الحوت كما سيأتي.

**پوښتنه**: مغاضبًا كه څه هم له باب څخه د مفاعله دى او دلته غضب يوازې د يونس له خوا ؤ. نو د باب د مفاعله څه توجيه ده؟

**ځواب**: توجيه يې داده چي پر شدت غضب د يونس دلالت وكړي، اهل صرف وايي چي ګاهي باب د مفاعلې لپاره د مبالغې راځي.

**درويش وايي**: چي په سبب كي د غضب د يونس اختلاف دى، ضحاك رحمه الله وايي مغاضبًا لقومه كما روى عن ابن عباس رضي الله عنه چي يونس او قوم دده په فلسطين كي او سېدل، او بعض مفسرين وايي چي په نينوا كي اوسېدله چي د موصل يو وطن دى، نو بادشاه د كافرانو پر دوى حمله وكړه، نو د دوى څخه يې اووه سبطه او

قوم د دوی او یو نیمایي د سبط یې په حصارت بوتلل، او د وه نیم سبط پاته سوه، نو خدای ﷻ وحي وکړې و شعیا، ته چي نبي ؤ چي ته ورسه و حزقیاء ته چي دی بادشاه د بني اسرائیلو ؤ چي ته یو لښکر د یو قوي نبي په مشري واستوه و هغه بادشاه ته چي اووه نیم سبط د بني اسرائیلو یې یرغمال نیولي زه به د هغه بادشاه او دده د رعیتو په زړو کي ېېره وروا چوم چي ټوله یرغمال بني اسرائیل به خوشي کړي، نو حزقیا چي ملک ؤ د بني اسرائیلو و شعیا النبي ته یې وویل چي کوم نبي واستوم او په هغه وخت کي په بني اسرائیلو کي پینځه نبیان وه، شعیا ورته وویل چي یونس ؑ واستوه انه قوي آمین. نو ملک یونس ؑ راوغوښتی او امر یې کړی چي ته د دغه فوج مشري پر غاړه واخله. یونس ؑ ورته وویل چي خدای ﷻ زه په نامه درښوولی یم؟ ملک ورته وویل یا! نو یونس ؑ ورته وویل چي نور انبیاء اقویا خو هم سته هغه ولي نه استوې. ملک او قوم پر یونس ؑ ډېر الحاح او ټینګار وکړی فهرب وخرج یونس ؑ مغاضبًا للملک ولقومه فاتی بحر الروم فرکب السفینة الی آخیر القصة کما سیٔاتي ان شاء الله تعالی.

او بعض مفسرین وایي چي یونس ؑ وروسته تر نصیحت و قوم ته او د هغو اصرار پر کفر باندي د خدای ﷻ څخه خواست د نزول د عذاب پر دوی وکړی او خدای ﷻ نېټه د نزول د عذاب پر دوی وروښوول او یونس ؑ قوم ته هغه وخت د نزول د عذاب پر دوی که ایمان را نه وړي بیان کړه، او ده د قوم له منځه بېله اجازې د خدای ﷻ هجرت وکړی هغه نېټه د نزول چي راغله او علامات د نزول د عذاب چي ښکاره سوه قوم پر کفر پښېمانه سو او سره وه یې ویل چي یونس ؑ پیدا کړئ چي ایمان پر راوړو او دا عذاب نسي واقع، هر څه تلاش چي یې وکړی یونس ؑ یې نه کړی پیدا اخیر رئیس د قوم و خلګو ته وویل یونس ؑ که نسته دده خدای ﷻ خو سته، نو یې امر وکړی چي ټوله حیوانات یعني اوښه چي لنګه وي سره د شیر خواره جونګي، او غوا چي لنګه وي سره د شیر خوار ګیلګي وهکذا مېږي، بزې او هغه ښځي چي شیر خوار اولادونه لري او انسانان ټوله دي صحراء ته ووځي، نو هلته دي اوښه او جونګی، غوا او ګیلګی، مېږي او وري، بزې او مرغومان، ښځي او شیرخواره کوچنیان دي سره جلا کړي تا چي فضاء ټوله د ژړا د کهسي او خلک دي

هم د ژړا زږغ په دربار کي د خدای ﷻ خپور کړي او ناري د ايمان بيونس ؑ دي وهي او د آمنت بالله وحده ناري دي وهي، هغه ؤ چي په دې سبب عذاب پر دوی نسو نازل، يونس ؑ چي يو ځای پټ ؤ او د دوی د عذاب انتظار يې کاوه، بعض خلک مسافر د يونس ؑ د قوم چي پر لاره يې سفر کاوه يونس به د هغو څخه پوښتنه کوله د نزول د عذاب پر قوم دد، هغو مسافرو به ورته وويل چي هغه صحيح سالم وه، نو يونس ؑ له دې کبله چي په سبب د عدم نزول نه ؤ خبر دا يې خيال سو چي زه قوم ته ورسم هغه به ماته دروا غجن وايي، او وايي به چي کومه دی چي عذاب نازل سو، او په يوه روايت کي راغلي چي د هغو دا قانون ؤ چي پر چا به درواغ ثابت سوه هغه به يې قتل کاوه، يونس ؑ پر خپل مرګ هم وېرېدی، نو ولاړی په کښتۍ کي سپور سو.

## فَظَنَّ اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ عَلَيْهِ

**درويش وايي**: هذه عبارة مشكلة وقد ذكر المفسرون لهذه العبارة توجيهات فقيل ظن يونس (ګومان وکړی يونس ؑ يعني په فرار له قوم څخه بېله اجازې په هر صورت چي ؤ كما ذكرنا من الاحتمالين) ان لن نقدر عليه (چي موږ به تنګي پر ده په حبس جوړه نه کړو كذا قال عطاء وكثير من العلماء، او بعض علماء وايي چي نقدر مشتق دی له قدر څخه په معنی د قضاء، والمعنى موږ به فيصله د عقوبت پر ده ونه کړو كذا قال مجاهد والضحاك والكلبي وروی ذالک عن ابن عباس ؓ.

**توجيهات**: (١) ماذكرنا آنفا (٢) بعض مفسرين وايي چي دا عبارت تمثيل دی د حال د يونس ؑ چي ده له قوم څخه ځان جلا کړی بېله امره د خدای ﷻ په حال سره د هغه چا چي ګمان کوي چي خدای ﷻ به پر ده قدرت د عذاب نه ولري، او مظهري وايي ناقلاً چي دا يوه وسوسه شيطانيه وه چي دده وهم ته بې اختياره تېره سوه فسمی ظنًا مبالغة.

**درويش وايي**: چي څرنګه دا يو نازک مقام ؤ نو ددې مقام د تفصيل زه تاسي ته حواله د تفسير روح المعاني او د تفسير روح البيان او د تفسير بحر مواج او د تفسير قرطبي او د تفسير مظهري درکوم، او هغه تفسير چي موږ ذکر کړی اولاً وثانيًا وثالثًا په هغه کي مطالعه کونکو ته د تفسير ايوبي کفايت دی والله اعلم بالصواب.

د يونس ؑ د قصې راويان په يوه خوله وايي چي يونس ؑ په هر صورت چي ؤ

بحر الروم ته يې ځان ورساوه هورې كښتۍ ولاړه وه نفر پكښې سپاره وه. يونس ؑ چې كېښتي وليدل دى هم پكښې سپور سو. كښتۍ روانه سوه د درياب په څپو كې ځاى پر ځاى ودرېدله ملاحانو د كښتۍ وويل چې زموږ د كښتۍ دا عادت دى چې يو عاصي او يا عبد آبق له مولى څخه چې پكښې سپور وي كښتۍ درېږي هيڅ حركت بيا نه كوي. نو چونكه عاصي يا عبد آبق من المولى موږ ته نه معلومېږي. نو موږ قرعه چې په پښتو يې پچه بولي كوو د هر چا قرعه چې وختل هغه درياب ته غورځوو ولې چې د ټوله اهل كښتۍ تر هلاک د يوه سړي هلاک افضل دى. نو قرعه چې يې يو وار وكړه قرعه د يونس ؑ وختل. چونكه ملاحانو دده زيبا هيئت او صورت ته وكتل شک د عاصي يا د عبد آبق من المولى يې نه پر راتلى. دويم وار يې قرعه وكړه بيا قرعه د يونس ؑ وختل. درېيم وار يې بيا قرعه وكړه بيا قرعه د يونس وختل. يونس ؑ خپل كالي پر ځان راټول كړه او داسې يې وويل. نعم انا العبد العاصي والعبد آبق من المولى يم. يعني بېله اجازې د خداى ﷻ زه له قوم څخه فرار سوم. او ځان يې و درياب ته وغورځاوه. په اراده الهي او قدرت خداوندي ﷻ غټ ماهى اماده باش ولاړ ؤ او يونس ؑ يې سره د كالو تېر كړى. او ماهي ته خداى ﷻ وحي وكړې چې دا شخص ستا خوراكي غذا نه ده بلكې ستا نس د ځو ورځو لپاره بندي خانه فكر كوه چې يو وېښته يې ضائع نه كړې. ماهى د اوبو د درياب پاى ته ولاړى.

**فائده:** بعض كسان به دا توهم كوي چې د ماهي څومره خوله وه چې يونس ؑ يې سره د كالو تېر كړى. ددې ځواب دادى چې تاريخ پوهان وايي يعني اهل العلم چې په ماهيانو كې د درياب دومره كوچني ماهيان سته چې لايدرک الطرف چې سړى يې په ولاړي نسي ليدلاى يعني تر دغه بالا نه غټېږي او دومره لوى ماهيان هم سته چې لايدرک طرفه يعني چې سړى فرضًا و سر ته ودرېږي لکۍ يې نه ويني او كه يې لکۍ ته ودرېږي سر يې نه معلومېږي.

## فَنَادٰى فِى الظُّلُمٰتِ

**بوه سه:** چې كلمه د فا تفريع پر ماقبل ده يعني يونس ؑ په كښتۍ كې سپور سو او قرعه كښې وسوه او يونس ؑ ځان و درياب ته وغورځاوه او ماهي تېر كړى او د

دریاب پای ته ولاړی. نو یونس ؑ ناري کړې په تاریکیو کي چي یو ظلمت د بطن الحوت ؤ او بل د دریاب د پای او بل ظلمت د شپې ؤ. او شیخ سمرقندي په بحر مواج کي وایي چي ظلمات یې په دې سبب جمع راوړه چي د شپې و جهاتو څخه تاریکه و. لکه په یو حدیث کي چي راغلي دي (رئيت رجلاً من امتي من بين يديه ظلمة ومن خلفه ظلمة وعن يمينه ظلمة وعن يساره ظلمة ومن فوقه ظلمة ومن تحته ظلمة فهو متحير في الظلمات)

أَن لَّآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنتَ سُبْحَٰنَكَ إِنِّى كُنتُ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٨٧﴾

دا چي نسته معبود بالحق مګر یو ته. پاکي ده تالره د قوله مالایلیق بشانک الاقدس. په تحقیق زه یم د ظالمانو څخه چي ستا بې اجازې مي له قوم څخه هجرت وکړی یعني دا ابتلا. چي تا زما وکړه ظلم زما له جهته څخه ؤ. ستا ذات اقدس له ظلمه پاک دی. ولذا قال سبحانک.

**درویش وایي**: چي محي السنة البغوي ؒ د ابو هریره ؓ څخه حدیث مرفوع نقل کړی دی چي د هغه په یوه برخه کي راغلي دي چي ماهی چي د دریاب پای ته چي په نس کي یونس بندي ؤ تسبیح یې واورېدل نو په زړه کي وروګرځېدل چي دا تسبیح د چا ده خدای وحي ورته وکړې چي دا تسبیح د دواب البحر ده. نو یونس هم په تسبیح شروع وکړه د ماهي په نس کي ملکو د آسمانو دا تسبیح واورېدله داسي یې وویل یا ربنا نسمع صوتا ضعيفا بارض غريبة؟ خدای پاک ورته ویل ذاک تسبیح یونس عصاني فحبسته في بطن الحوت. ملکو وویل چي هغه صالح بنده یونس چي د ده له خوا به هره ورځ د ېر عمل صالح تا ته پورته کېدی؟ قال نعم، نو ملکو یې د خدای ﷻ ته شفاعت وکړی، نو خدای پاک امر کړی ماهی چي یونس د دریاب پر غاړه قی کړه. کما قال الله تعالى فنبذناه بالعراء وهو سقيم.

فَٱسْتَجَبْنَا لَهُۥ وَنَجَّيْنَٰهُ مِنَ ٱلْغَمِّ ۚ وَكَذَٰلِكَ نُۨجِى ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٨٨﴾

نو قبلونه وکړه د خواست د یونس ؑ. او داغسي لکه یونس ؑ چي مو خلاص کړی له غم څخه مونږ نجات ورکوو نورو مؤمنانو ته له غمو څخه چي په اخلاص یونسي موږ ته خواست وکړي او موږ ته رجوع وکړي.

**سوال**: یونس ؑ کله د خلاصون خواست وکړی؟

**ځواب**: لا اله الا انت سبحانک آه. د ادب د لاري د نجات ضمني خواست دی، او موږ دی خلاص کړی له غم څخه د ګناه او له غم څخه د تېرېدلو د ماهي او له غمه څخه د ظلمات بتلک الکلمات یعني لا اله الا انت آه.

په حدیث صحیح کي چي روایت یې احمد او ترمذي کړی له حدیث څخه د سعد بن ابي وقاص رض قال رسول الله ﷺ دعوة ذی النون (یعني یونس ؑ) چي دعاء وکړه په نس کي د ماهي لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمین.لم یدع به رجل مسلم في شیئ (یعني په یو مشکل کي که یو ګناه وي او که مرض وي او که حبس وي او که فقر وي او که ناجوړي وي الی غیر ذالک) الا استجاب له. خدای ﷻ یې قبلوي.

**درویش وایي**: چي په دې باب کي ډېر حدیثونه نور هم سته، په دې کي اختلاف دی چي څو مده وروسته ماهي یونس ؑ پر مځکه قی کړی (۱) څلور ساعته وروسته (۲) دري ورځي وروسته (۳) اووه ورځي وروسته (۴) څلوېښت ورځي وروسته.

چون فرو آید بلا بی دافعی ......... جزع تضرع نبود دیگر شافعی

**درویش وایي**: وتمام قصة یونس ؑ في سورة والصافات.

وَزَكَرِيَّآ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥ رَبِّ لَا تَذَرْنِى فَرْدًا وَأَنتَ خَيْرُ ٱلْوَٰرِثِينَ ۝٨٩

او په یاد کړه او ذکر کړه قصه د زکریا ؑ هغه وخت چي ده خواست وکړی له خدای ﷻ څخه په دې ډول اې رب (اصله یا ربي) ته مه ګرځوه ما تنها یعني بېله زویه چي زما جای نشین او خلیفه وروسته تر مرګ زما وي، دا بیان د نداء دی، او ته خیر د وارثینو یې، یعني الباقي بعد فناء الخلق.

**پوه سه**: چي (وانت آه) حال دی له فاعل څخه د لاتذرني او مقصود له دې څخه ثناء د خدای ﷻ ده.

فَٱسْتَجَبْنَا لَهُۥ وَوَهَبْنَا لَهُۥ يَحْيَىٰ وَأَصْلَحْنَا لَهُۥ زَوْجَهُۥٓ ۚ

موږ یې دعاء قبوله کړه او ورو موبخښنه ده ته زوی یحیی ؑ.

**فائده**: وهبنا یې وو ایه لان یحیی کان هبة الله الی زکریا لان امرته کانت عقیمة

كمايدل عليه قوله تعالى (واصلحنا له زوجه) مور صالح وګرځول همسره دده د ولادت لپاره يعني وروسته تر دې چي وچه وه له ځوانۍ څخه تر سپين سرتوب تر وخته پورې.

**درويش وايي**: چي بعض ناپوهان وايي چي ماينه خو زوجة په تانيث د تا بولي او په قرآن کي زوجه په تذكير راغلى دا دده غلط توهم دى، ولي كه نر وي او كه ښځه چي يوازې وي فرد يې بولي چي بل ورسره ملګري سي كه نر اوي او كه ښځه زوج يې بولي يعني جفت، او په سورت بقره کي راغلي دي چي په قصه کي د آدم ؑ اخرج انت وزوجك الجنة.

## إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا

په تحقيق دغه انبياء مذكورين يعني ايوب، يونس وزكريا عليهم السلام دوى په چټكۍ او په رغبت سره كول د خير كارونه (من دعوة الناس الى توحيده تعالى والطاعات والصبر على اذى اقوامهم كما لايخفى من احوال الانبياء ؑ) او دوى زموږ عبادت كاوه يا يې خواست راته كاوه.

**پوه سه**: چي رغبا يا مفعول له اى لاجل الرغبة في التقرب الينا بالعبادت او لاجل قبول السوال بصفة جماله تعالى. او يا حال دى په حذف د مضاف اى ذوي رغبة او يا مصدر په معنى د فاعل دى اى راغبين في الطاعة كما قال رسول الله ﷺ جعلت قرة عيني فى الصلوة رواه احمد والنسائي من حديث انس ؓ او روح المعاني دا احتمال هم راوړى دى چي رغبا او رهبا دي حال وي او پر معنى مصدري دي پاته وي مبالغة كما في زيد عدل. او بعض مفسرين چي وايي چي رغبًا او رهبًا دي جمع د راغب او راهب وي لكه خدم او خادم انتهى.

**درويش وايي**: چي هغه سابق احتمالات د رغبًا په رهبًا كي هم جاري دي، اى لاجل الخوف لصنعه جلاله تعالى او ذوي خوف في عدم قبول الطاعة او السوال او المعصة او العقاب. او نفس الرهبة على المبالغة تامل.

**درويش وايي**: چي په مجمع البيان كي راغلي دي چي د دعاء د رغبة د ورغوي په غوړېدو سره كوي الى جانب السماء او د دعاء رهبة په ظهور د كف كوي لكن مشهوره دا ده چي د رغبت په سوال كي ورغوي خلاص نسي د آسمان وخواته مع



Scanned by CamScanner

ادنى فرجة بنها، او د رهبة په دعا. كي دي كوتي را پورته كړي د مخ و خواته او چي چاته ښرا كوي شا د ورغوي دي د آسمان و خواته وكرځوي اشارة الى نزول العذاب على المدعو عليه.

## وَكَانُوا لَنَا خٰشِعِينَ ﴿٩٠﴾

او دوى وه موږ لره ېېرېدونكى بندګان مجاهد وايي چي خشوع خوف لازم په زړه كي لاجل كمال معرفة عظمة الله جل شانه.

**سوال:** مشهوره دا ده چي خشوع د ظاهري اعضاو د بدن صفت ده او خضوع د زړه صفت ده؟

**ځواب:** حال د انبياء عليهم السلام اعلى دئ تر دې چي عجز د دوى دي محصور پر ظاهري اعضاء وي لانه يوجد في المرائي ايضا بل لهم خشوع كامل قلبا وقالبا قاله العلامة البروسي رحمه الله وكذالك غير الانبياء عليهم من اهل الله، بيت بر فلك بر تر بود اسرار او. شيئًا لله شيًا لله كار او. او د مرائي په حال كي دا بيت ډېر موزون دي، بيت بروي ريا خرقه سهلست دوخت. وگرباخدا در فروشي نكوست.

## وَالَّتِيٓ أَحۡصَنَتۡ فَرۡجَهَا

منصوب دى په اذكر مصدر سره والمراد بالموصول مريم بنت عمران او په ياد كړه ته هغه ښځه چي دې ساتلى ؤ خپل فرج د حلال او حرامه ځخه يعني د نكاح او د زنى ځخه روح المعاني وايي الفرج في الاصل هو الشق بين الشيئين، كالفرجة ومابين الرجلين للمرئة وكثر استعمال وصار كالصريح في ذالك وهو المراد ههنا اي سنعت فرجها من النكاح والسفاح (اى الزنى) كما سيئاتي من قولها :ولم يمسسني بشر ولم اك بغيا.

**مسئلة:** تبتيل يعني نكاح نه كول په هغه وخت كي مشروع وه نرو او ښځو ته. نو مريم عليها السلام هم ځان د تبتل په تناو تړلى ؤ.

## فَنَفَخۡنَا فِيهَا

يعني پو كړه جبرئيل په امر زموږ (فيها) اى في مريم والمراد نفخ في جيب درعها، په گريوان كي د قميص د دې، نو دا نفخه ورسېدل په امر د خداى و رحم ته

د دې. نو خدای په خپل قدرت سره د دې په رحم کې مسيح بن مريم عليه السلام.

**فائده**: بعض انسانان نه پلار لري او نه مور لکه آدم عليه السلام چې د ختو څخه خدای جل جلاله پیدا کړی، او بعض انسانان پلار لري مور نه لري لکه حوا چې د پوښتي څخه د آدم عليه السلام خدای پیدا کړه. نو آدم بمنزلة الاب للحوا. او بعض انسانان مور لري پلار نه لري لکه عيسى عليه السلام.

**پوښتنه**: جبرئيل چې د مريم په ګريوان کې پوه کړه خو په رنګ د سړي ؤ کما ورد فتمثل لها بشرا سويا، نو د دې يعني مريم څرنګه پوه کول؟

**ځواب**: ملکه شهوت نه لري که په صورت د نر وي او که د ښځې.

مِن رُّوحِنَا وَجَعَلْنٰهَا وَابْنَهَآ اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿٩١﴾

اى الروح الذي مخلوق بامرنا والاضافة تشريف المضاف او يا د روح څخه جبرئيل عليه السلام مراد دی کما في قوله تعالى تنزل الملائكة والروح. فالمضاف محذوف اى من جهة روحنا اى جبرئيل. او موږ وګرځول مريم او زوی د دې عيسى عليه السلام علامه او دليل د قدرة. لپاره د ټولو عالميانو.

**سوال**: مفعول اول د جعلنا خو مريم او زوی د دواړه وه، نو مفعول ثاني چې آية دی ولې مفرد راوړی مع ان المطابقة بين المفعولين لجعل لازمة؟

**ځواب**: مراد دلته جعلنا حالها او قصتها وهو مفرد فافهم. والمراد بالاية دليل القدرة الالهية على ما يشاء.

اِنَّ هٰذِهٖۤ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً ۖ

اى ملة التوحيد والايمان بجميع الانبياء بان لا نفرق بين احد منهم والسمع والطاعة لله ورسوله في كل وقت فهو اشارة الى جميع الملل الحقة او المراد منه ملة الاسلام.

**پوهه**: چې دا خطاب دی ټولو خلګو ته.

**سوال**: هذه اسم اشاره دی چې محسوس بالبصر ته کېږي او توحيد او اسلام خو امر معقول دی. نو څرنګه اشاره ورته صحيح ده؟

**ځواب**: دا اشارة د باب څخه د قول خضر د موسى عليه السلام. هذا فراق بيني وبينک. يعني تصور المشار اليه في الذهن واشير اليه ففيه مبالغة في امتياز

الامر المعقول حتى صار لغاية الامتياز كالامر المحسوس بالبصر، فافهم، والامة په قول د صاحب المطالع اصل يي هغه قوم دى چي پر دين واحد سره يو ځاى وي، بيا يې توسع پکښي وكړه چي نفس دين ته هم وايي واطلاقها على نفس الدين مجاز، وظاهر كلام الراغب رح انه حقيقة ايضًا وهو المراد ههنا، او مقصود په دي جمله خبريه سره الامر على المحافظة على تلك الملة ومراعات حقوقها، والمراد ان ملة الاسلام ملتكم التي يجب ان تحافظوا عليها وعلى حقوقها فافعلوا ذالک كذا قال العلامة البروسوي رح (امة واحدة) منصوب على الحال من امة والعامل فيها معنى اسم الاشارة چي په نحو كې عامل معنوي بولي كما في قوله تعالى (وهذا بعلي شيخًا) مراد له وحدت څخه دادى چي ټوله انبياء په دې ملت كي سره متحد دي لا اختلاف بينهم فيها ولا مشاركة لغيرها في صحة الاتباع قال الله تعالى ومن يتبع غير الاسلام دينًا فلن يقبل منه.

**پوهه:** چي اختلاف په منځ كي د انبياء عليهم السلام په اصولو كي د دين نشت يعني العقائد البتة په اختلاف د عصر او زمان په بعض فروع كي اختلاف سره لري كما هو ظاهر.

**وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاعْبُدُونِ ﴿٩٢﴾**

او زه مو رب يم زما څخه پرته بل رب نشته نو زما عبادت كوئ نه د بل چا من الاصنام والملائكة والكواكب وغيرها.

**پوهه:** چي اكثره قراء فاعبدون په حذف د يا اضافت وايي او كسره د نون پر دليل بولي، او بعض قراء يي په اثبات د يا، وايي لكن الحذف مناسب لرؤس الايات فافهم.

**وَتَقَطَّعُوٓا أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ**

**پوهه:** چي په دې آيت كي التفات دى له خطاب څخه و غيبت ته.

**فائده:** القطع: جلا كول د شي كه مدرك بالبصر وي لكه اجسام او كه مدرك په عقل وي لكه اشياء معقوله، او باب د تفعل دلته په معنى د تفعيل دى اى قطعوا وفرقوا كما في الشافية علمته الفقه فتعلم الفقه، والمراد بامرهم امر دينهم، والمعنى جعل الناس امر الدين قطعًا فصاروا بحيث يلعن بعضهم بعضًا وما كان لهم ينبغي ذالک، دا يوه لويه جريمه ده چي دوى وكړه چي هغه دين چي

تهوله انبياء پر متفق وه دوی ټول ټول وګرځاوه.

**درویش وايي:** چي دا تفریق له قدیم زمان څخه روان دی، په تاریخ قدیم کې راغلي دي چي امت ابراهیم ؑ وروسته تر ده اوویا ډلي سوه، حتی چي مشرکینو د مکې به هم ویل چي موږ پر امت ابراهیم یو. او امت د موسی ؑ وروسته تر ده یو اوویا ډلي سوه، او امت د عیسی ؑ وروسته تر ده دوا اوویا ډلي سوه، او امت د محمد ﷺ وروسته تر ده دروا اوویا ډلي سوي دي، وقد ورد في الحدیث الصحیح کلهم في النار الا الناجیة، ناجیه هغه ډله چي خدای او رسول دده چي هغه شی ښوولی وي په هغه یې نفساني، تعصبي، هوائي او ریاء کاري افعال نه وي ګډ کړي.

## كُلٌّ إِلَيْنَا رَاجِعُونَ

تنوین عوض له مضاف الیه څخه دی ای کل فرقة به موږ ته رجوع وکړي یعني موږ به هري ډلې ته موافق جزاء ورکړو من الجنة والنار.

## فَمَن يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ

هغه څوک چي عمل وکړي یو شی له اعمال صالحه وو څخه ولو کان مثقال ذرة او حال دا وی چي دده ایمان وي پر خدای ﷻ او پر رسولانو د خدای او پر ما جاوا به من الکتب والادیان، دا قید دد ې لپاره وویل سو چي ایمان شرط دی د ثواب پر اعمال صالحه وو، ولي چي مشرکانو د مکې هم خدمت د حجاجو کاوه او د زمزم آبیاري یې پر غاړه درلوده لکن چي ایمان نه وُ په مذکوره افعالو کي د خیر یې ثواب نسته في الآخرة وهکذا في العصر الحاضر د امریکایانو یا د نورو کفارو خیریه مؤسسات د کونډیانو، یتیمانو او مصیبت زده ګانو سره چي مرستي کوي لکن چي ایمان یې نسته ثواب یې هم نسته.

## فَلَا كُفْرَانَ لِسَعْيِهِ

**بوه سه:** چي لا لپاره د نفي جنس دی ای لابطلان ولا منع عن الثواب لعمله.

**دقیقه پوښتنه:** کفران په لغت کي ستر د نعمت او انکار ته د نعمت وايي، نو عمل صاحل د بندګانو څو نعمت پر خدای ﷻ نه دی لاستحالته الانعام علیه تعالی حتی چي منع د ثواب یې کفران سي.

**ځواب:** سلمنا ذالک لکن خدای ﷻ له منع ځخه د ثواب د سعي د بنده په کفران سره تعبير وکړی لبيان کمال نزاهته عن ذالک بتصويره بصورة المستحيل عليه تعالى من القبائح لپاره د مزيد اطمئنان د بندګانو په ورکړه کي د ثوابو دوی ته حتی چي ابراز د مشابه په معرض کي د امور واجبه وګرځاوه پر ځان ونفي بنفي الجنس اى لا كفران المفيد للعموم بدلالة لام نفي الجنس عليه، لکه عمل صالح د بنده څو نعمت پر خدای ﷻ نه دی حتی چي پر خدای ﷻ يې شکر واجب سي لکن بيا هم خدای ﷻ په قبول کي د عمل صالح د بنده وايي (ان ربنا لغفور شكور)

**درويش وايي:** چي دا سوال او ځواب حاصل دی د مافي روح المعاني وروح البيان والمظهري وتفسير الرازي وغيرها فتفكر فيه غاية التفكر.

## وَإِنَّا لَهُۥ كَٰتِبُونَ

او موږ دده عمل او سعي نوشته کوونکي يو په صحائف کي د اعمالو دده چي کرام کاتبين ملکي يې کوي، او نسبت د کتابت خدای ﷻ و ځان ته وکړی لان كتابة الملائكة الكرام عليهم السلام بامر تعالى ﷻ.

## وَحَرَٰمٌ عَلَىٰ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَٰهَآ أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ

**فائده:** قريه په اصطلاح د قرآن ومصر جامع ته وايي كما في القاموس او هغه ځای ته هم وايي چي د پر خلک پکښي جمع کيږي كما في المفردات.

**فائده:** مراد د قريه اهل قريه دی مجازًا او بحذف المضاف اى على اهل قرية.

**فائده:** حرام شرعي حرام ته وايي لکه زنی، لواطت وغيرهما، او عقلي حرام ته هم وايي کاجتماع النقيضين او ممنوع بالتسخير الهي ته هم وايي په دې آيت کي هم دغه معنی مراد ده كما في قوله تعالى في قصة موسى ؑ وحرمنا عليه المراضع.

**فائده:** بعض قراء لفظ د حرام حرم بكسر الحاء وسكون الراء بلا الف وايي، او جمهور قراء يې په فتح د (حاء) او (راء) بينهما الف وايي دا دواړه لغته دي معنی يې يوه ده مثل حل وحلال.

**فائده:** جمله د (انهم لا يرجعون) په تاويل د مفرد مرفوع محلا مبتدا ده او حرام يې خبر مقدم دی ابن حاجب رح په امالي کي وايي چي تقديم د خبر په ورته صورت کي واجب دی لما تقرر في النحو من ان الخبر عن ان يجب تقديمه.

**فائده**: په ان کي چي معنی د تحقیق او تاکید سته معتبر دی په نفي کي چي د حرام څخه و فهمېدی لا في المنفي ای ممتنع عدم رجوعهم الینا حتمًا والمعنی ممتنع غیر متصور الوجود پر اهل قریه باندي چي دوی دي موږ ته رجوع و نه کړي په آخرة کي بلکه حتمًا به یې کوي د مجازات د پاره.

**فائده**: د اهلکناها. معنی حکمنا باهلاکها کعاد و ثمود و غیرهما او یا په یې معنی دا ده وجدناها هالکًا ای کافرًا.

**پوه سه**: چي ابتدائیت د ان مع جملها روح المعاني او روح البیان او مظهري ټولو راوړي دي لکن مظهري داسي اعراب هم راوړی دی چي حرام علی قریة اهلکناها مبتدا. ده او خبر یې محذوف دی تقدیره حرام و ممتنع علیهم. ذاک (دا خبر دی) و معنی ذاک المذکور في الایة المتقدمة من عدم تضییع الحسنات ای تحبط اعمالهم او یا یې خبر دا دی ممتنع توبتهم علی تقدیر ترجمة اهلکناها باوجدناها هالکًا ای کافرًا او یا یې معنی دا ده رجوعهم الی الحیاة الدنیا او یا یې خبر دا دی عدم بعثهم للجزاء. مظهري رح وایي چي پر دې تقدیر د انهم لا یرجعون. معنی دا ده لانهم لا یرجعون بالتوبة والاخلاص الینا او لانهم لا یرجعون الی الدنیا حتی چي دوی ایمان راوړي. والکل تکلف بلا ضرورة فافهم..... تضرع:

ندارم توشه راه قیامت.......بجز شرمنده گي و روسیاهی
ندارم طاعت مقبول درگاه.......بجز اشک ندامت آه آهی

قال الله: قل لعبادي الذین اسرفوا علی انفسهم لا تقنطوا من رحمة الله ان الله یغفر الذنوب جمیعًا.

## حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتۡ يَأۡجُوجُ وَمَأۡجُوجُ

هغه وخت چي خلاص سي سد د یاجوج او ماجوج بحذف المضاف یعني سدهما وهما اسمان لقبیلتین من الانس.

**پوه سه**: چي حتی دلته نه حرف جر دی او نه حرف عطف دی بل حرف یبتدء بها الکلام او دا حرف غایة ده د ماقبل د پاره کانه قیل یستمرون علی ما علیهم من الهلاک حتی اذا اقامت القیامة ای قرب قیامها بفتح سد یاجوج و ماجوج یرجعون الینا و یقولون یا ویلنا آه.

**بوه سه:** چي قصه د ياجوج و ماجوج وبناء السد عليهما وفتحه في آخر الزمان د مخه تېره سوه په سوره كهف كي كذا في روح البيان وتفسيره على التمام في سورة الكهف في قوله تعالى هناک فاذا جاء وعد ربي جعله (اى السد) دكا، (په مځكه پوري متصل) وكان وعد ربي حقا.

وَهُمْ مِّنْ كُلِّ حَدَبٍ يَّنْسِلُوْنَ

يعني ياجوج وماجوج د هره لوړه ځای که غرونه وي او که غونډۍ په منډه منډه راځغلي.

**فائده:** تصريح په حدب سره چي وکړه لان مقرهم ما وراء الجبال، نو دوی تر غرورا اوړی په ځغاسته د حذيفه بن اليمان رض څخه روايت دی وقيل عن حذيفة بن الاسد الغفاري رض روايت دی چي عليه الصلوة والسلام مسجد نبوي ته تشريف فرما سو موږ بحث سره کاوه، نو عليه الصلوة والسلام پوښتنه را څخه وکړه چي په څه شي کي تاسي خبري سره کولې موږ ورته وويل د قيامت په باره کي عليه الصلوة والسلام وويل چي قيامت (يعني نفخ الصور الاول) نه قائمېږي تر هغه د مخه چي تاسي لس شيان (يعني خارق العادة) ونه ويني، نو عليه‌السلام ذکر کړی (۱) الدخان (يعني الخارج من الارض) (۲) والدجال (۳) والدابة (اى الدابة الارض) (۴) وطلوع الشمس من مغربها (۵) ونزول عيسى بن مريم عليه‌السلام (۶) وياجوج وماجوج (۷) وثلاث خسوف خسف بالمغرب (۸) وخسف بالمشرق (۹) وخسف بجزيرة العرب (۱۰) وآخر ذالک نار يخرج من اليمن تطرد الناس الى محشرهم (يعني البيت المقدس) رواه مسلم.

وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ فَاِذَا هِيَ شَاخِصَةٌ اَبْصَارُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

او نژدې سي هغه وعده چي حق ده يعني يوم القيامة ترکيب، وروسته تر حتی يعني اذا فتحت آه جمله شرطيه ده وقوله وهم من كل حدب آه حال ده د ياجوج او ماجوج څخه وقوله واقترب الوعد الحق عطف دی پر فتحت باندي او فراء نحوي رح واېي چي کلمه د واو په اقترب الحق کي زائده ده او دا جمله جزاء د شرط بولي، او مظهري رح قول د فراء رد کړی بان الواو لا تكون زائدة.

**درویش وایي:** چي فراء پر زیادة د واو دلیل ویلی دی بقوله تعالی في قصة ابراهیم و ابنه اسمعیل علیهما السلام. فلما اسلما وتله للجبین ونادیناه. آه یعني واو د نادیناه زائد و التقدیر فلما اسلما وتله للجبین نادیناه. نو څرنګه د مظهري قول چي واو زائد نه سي صحیح دی؟

**ځواب:** د مظهري مراد دا دی چي بېله ضرورته قول په زیادة مردود دی په هغه آیت چي فراء دلیل په ویلی دی بېله و نادیناه بله جزاء د شرط نسته، نو ځکه واو زائد دی او په مانحن فیه کي خو ضرورت نسته لان جزاء الشرط قوله تعالی فاذا هي آه.

**پوه سه:** چي هي ضمیر د قصة دی وشاخصة مبتداء قسم ثاني ده کما في الکافیه یعني الصفة المسندة الی فاعلها یعني الابصار فاعل لها. ویحتمل چي ابصار الذین کفروا دي مبتداء قسم اول وي او شاخصة دي خبر مقدم وي، وشاخصة مشتق من الشخوص یقال شخص بصره والمعنی فتح عینه یعني سترګي رډي ولاړي وي نه بي سي رپولای من شدة الهول والحر. لکن دا حال الذین کفروا دی. لان المؤمن وان کان عاصیاً جداً لایکون کذالک استدلالاً بهذه الآیة.

**سوال:** په نحو کي وایي چي اذا مفاجات کما في نحن فه قائم د فاء جزائیة کېدای سي کما في قوله تعالی اذاهم یقنطون، نو په موجود آیت کي چي هم فا سته او هم اذا مفاجات حکمت د اجتماع یې څه دی؟

**ځواب:** حکمت د اجتماع تاکید دی د اتصال د جزاء بالشرط المذکور، یعني چي د اقتراب د وعد الحق او د شخوص الابصار تر مابین اتصال په حیز کي د خفاء په نېز د عقل ؤ، نو ځکه یې تاکید ته ضرورت سته فافهم جداً.

يَٰوَيۡلَنَا قَدۡ كُنَّا فِي غَفۡلَةٖ مِّنۡ هَٰذَا بَلۡ كُنَّا ظَٰلِمِينَ ۝٩٧

**پوه سه:** چي په (یاویلنا) کي یا د نداء ده او ویل هلاک ته وایي او د ویل نداء مجاز ده علی عادت العرب عند الوقوع في الفزع العظیم والمهلکة. او دا جمله مقدر په یقولون سره ده (ای یقولون یا ویلنا) او مجموع جمله حال ده له (الذین کفروا) څخه.

ترجمه: په تحقیق موږ ؤ یعني په دنیا کي په غفلت عظیمه کي (نو تنوین د غفلة لپاره د تعظیم دی او د هذا څخه ورځ د قیامت او بعث بعد الموت ده چي

مشركين ځندي منكر وه او دا جمله كالتعليل لقولهم يا ويلنا) بلكه ږ موږ ظالمان پر خپلو ځانو چي د دې ځخه مو انكار په دنيا كي كاوه او يا مراد د ظلم ځخه وضع الشيئ في غير موضعه يعني چي حق د خداى ږ موږ د بتانو كاوه.

**اِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ**

تاسي اى مشركانو او هغه شيان چي تاسي عبادت كوئ ماسوى د خداى ځخه.

**پوه سه:** چي كلمه د ما پر مشهور باندي خاصه ده په غير ذوى العقول پوري او تحقيق دا دى كما هو المختار عند المحققين كا المحقق الجامي رح والمحقق البيضاوي رح. نو ما تعبدون شامل دى وما لا يعقل من الاجسام لكه بتان د مشركانو او ګيلګى (سخندر) د سامري. او ما يعقل من المعبودين ته هم شامل دى لكن چي په خپل معبوديت راضي وي لكه شيطانان او يا مدعي د الوهيت من الانس بالباطل لكه فرعون و نمرود وغيرهما چي د خدايي دعوه يې كړې وه.

**سوال:** د ملكو خو هم بعض كفره عبادت كوي، او د عيسى ع عبادت خو هم نصارى كوي؟

**ځواب:** دا معبودين په عبادت سره د خلګو نه دي راضي، نو دا معبودين خارج دي له آيت ځخه بالعقل والنقل قال الله تعالى ولا تزر وازرة وزر اخرى.

**درویش وايي:** چي د دې عموم تائيد هغه حديث هم كوي چي دا آيت چي نازل سو ابن الزبعري وويل چي دا خاص زموږ په خدايانو سره دى يعني بتان كه كل من عبد ته شامل دى من دون الله، عليه الصلوة والسلام ورته وويل لكل من عبد من دون الله الى اخير الحديث، او كه چېري كلمه د ما مختص په غير ذوى العقول سره سي كما هو المشهور فظاهر ان من لا يرضى بكونه معبوداً من العقلاء كالملائكة وعيسى غير داخل فيه.

**حَصَبُ جَهَنَّمَ**

يعني دوږخ ته به غور ځول كيږي او د دوږخ اور به په بلېږي لپاره د رسوايي د كفارو صرفًا لكه په بتانو جماداتو كي، او يا د تفضيح د عابدانو لپاره او لپاره د تعذيب د معبودينو عقلاً لكه فرعون، نمرود او شيطانان چي د دوى په دوږخ سره هم رسوايي د عابدانو د دوى ده او هم تعذيب خپله د دغو معبودينو دى.

**درویش وایې:** چې روح البیان د ماتعبدون څخه یوازې اصنام اخستې دي ددې لپاره چې و اخراج ته د عزیر، عیسی او د ملکو لاره همواره کړي، دلیل يې دا ویلی دی بشهادة ما لانها لما لایعقل انتهی وقد مران تخصیص د ما خلاف التحقیق دی فافهم. او روح المعاني په دې باره کې ډېرې اوږدې خبرې کړې دي فراجع.

## اَنْتُمْ لَهَا وٰرِدُوْنَ ﴿٩٨﴾

تاسي ای مشرکانو او ستاسي معبودان و دوږخ ته وارد یږئ.

**فائده:** انکم وما تعبدون الی اخیره التفات د غیبت څخه و خطاب ته لان الکلام السابق مع المشرکین علی الغیبة وفي هذه الآیة علی الخطاب.

**سوال:** صله د ورود خو علی راځي نحو وردت علیه، نو په آیت کې د لام د راوړلو حکمت څه دی؟

**ځواب:** کلمه د لام يې د اختصاص لپاره راوړه. یعني چې دا عذاب مختص په دوی پورې دی، او بل لپاره ددې چې دلالت پر سببیت وکړي.

**بوه سه:** چې دا توجیه بنا، پر دې ده چې اصل تعدی د ورود په علی سره کما اشار الیه في القاموس بتفسیره بالاشراف علی الماء، وهو في الاستعمال کثیر، او بعض مفسرین وایي چې ورود متعدي بنفسه دی کما في قوله تعالی وردها. فاللام لتقویة العمل لکون المعمول مقدمًا والعامل فرعي ای لیس بفعل فافهم.

## لَوْ كَانَ هٰٓؤُلَآءِ اٰلِهَةً مَّا وَرَدُوْهَا ؕ

که دغه شیان چې تاسي يې عبادت کوئ ایها الکفار خدایان وایي ای في الواقع کما تزعمونه، نو دوی به دوږخ ته نه وای داخل سوي لان شان الآله تخلیص العابد من النار.

**بوه سه:** چې دا جمله معترضه ده قول ورسره محذوف دی ای یقال لهم بعد دخولهم في النار توبیخًا وتفضیحًا لحال العابدین.

## وَكُلٌّ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٩٩﴾

او هر واحد د عابدین او معبودین به په دوږخ کې همېشه وي لا خلاص لهم عن النار ابدًا، دا جمله عطف ده علی انتم لها واردون.

لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ ۝

دوی لره به په دوږخ کې څګېروي وي او په زوره به ساه شړي او کاږي، او دوی په دوږخ کې یعني العابدين هيڅ شی نه اوري لشدة غليان النار، او یل په دې سبب چې کافران په تابتانو کې دا اوسیږي دي چې دا اوسپنې په مېخو ټينګې سوي وي کما روی عن ابن مسعود رض بروایة ابن جریر و ابن ابی حاتم وابن ابی الدنیا وغیرهم او دا تابوتان به في اسفل الجحيم کې وي.

**پوښتنه:** دا حال خو د عابدينو دی. معبودين چې بتان دي آيا د هغو دا حال نه دی؟

**ځواب:** په دې آيت اسناد د فعل د بعض دی چې عابدين دي و کل ته چې عابدين او معبودين بتان دواړه دي. او دا جمله حال ده له ضمير څخه په خالدون کې.

**شان نزول:** حاکم رح له ابن عباس رض څخه روایت کړی دی چې دا آيت چې نازل سو (انکم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم) مشرکانو د مکې وویل چې د ملکو او د عیسی او د عزیر ع خو هم عبادت من دون الله کړل سوی دی، نو هغه به هم حصب جهنم وي، نو که هغوی په جهنم کې وي. نو موږ د خپلو معبودانو پرواه نه کوو فنزلت هذه الآية.

إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا الْحُسْنَىٰ

په تحقيق هغه کسان چې د مخه دوی ته منزله حسنی د قرب الهي ورکړل سوې وي او یا خلعة حسنی ورکړه سوې وي چې عبارت له سعادت څخه دی یا توفیق د توحید او عبادت ورکړه سوی وي یا زېری د جنت ورکړل سوی وي، بغوي رح وايي چې رسول الله ﷺ او بعض مشران د قریشو د مشرکینو په حطیم کې سره یو ځای وه او پر شاو خوا د کعبې مبارکې (۳۶۰) بتان موجود وه. نو نضر بن الحارث د علیه الصلوة والسلام سره په بحث اخته سو حتی چې علیه الصلوة والسلام دی په دلائلو کې ملزم کړی. وروسته علیه الصلوة والسلام ورته وویل (انکم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم آه) بیا علیه الصلوة والسلام ځندي ولاړ سو عبدالله بن الزبعری قریشو ته ورغلی او د علیه الصلوة والسلام خبري یې ورته وکړې او ولید بن المغیرة یې هم په ماجری حال خبر کړی، نو ولید راغلی علیه

الصلوة والسلام ته يې وويل چي تا رشتيا دغه خبره كړې ده انكم وما تعبدون الآية
عليه الصلوة والسلام ورته وويل نعم! نو وليد بن المغيره ورته وويل اليست
اليهود تعبدون عزيرًا والنصارى تعبدون عيسى وبنوا المليح يعبدون الملائكة؟
عليه الصلوة والسلام ورته وويل بل هم يعبدون الشياطين (يعني شيطانان دوى
په دغه عبادت سره امر كوي) فانزل الله تعالى ان الذين سبقت الآية. او د ابن
الزبعرى په شان كي دا آيت نازل سو (ماضربوه لك الا جدلاً بل هم قوم خصمون)
ترجمه: دوى نه دي پېش كړى وتا ته يعني د بحث په دوران كي عيسى ؑ مگر نه
جدل يعني د ناحقه بحث په توګه، بلكې دوى يعني ابن الزبعرى او وليد بن
المغيرة واشباههم نه دي مگر خصومت جلب خلک دي.

**فائده:** مولانا ابو السعود ؒ وايي چي عليه الصلوة والسلام وابن الزبعرى ته
وويل (ما اجهلک بلسان قومک) يعني كلمه د ما خو ستا د قوم په ژبه كي د غير
ذوى العقول لپاره دى، نو عيسى، عزير او ملائكه څرنګه په ما كي داخلېږي آه؟
حافظ ابن حجر ؒ دا حديث موضوعي بولي، روح المعاني وايي چي ابن حجر
وامثاله معتمد عليه كسان دي په حديثو كي. ده زياته كړې ده فلا ينبغي
الاعتراض بذكر هذا الحديث في احكام الآمدي وشرح المواقف وفصول البدائع
للتفتازاني وغير ذالک انتهى. او مظهري ؒ فقط دومره قدر ويلي دي چي په
بعضي كتابو كي د اصول الفقه دغه خبره د عليه الصلوة والسلام و ابن زبعرى ته
ما اجهلک بلسان قومک آه راغلې ده لكن په كتابو كي د احاديثو نسته آه. ګويا
مظهري هم دا حديث موضوعي بولي.

أُولَٰٓئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ ﴿١٠١﴾

دغه كسان چي سبقت لهم منا الحسنى له جهنم څخه لېري ساتل كړه سوي دي
له جانبه څخه د خداى ؒ.

لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا ۖ وَهُمْ فِي مَا اشْتَهَتْ أَنفُسُهُمْ خَالِدُونَ ﴿١٠٢﴾

دوى نه اوري آواز خفي د دوزخ فضلاً عن انيكونوا فيها، او دغه كسان چي
سبقت لهم من الحسنى په هغه نعمتو كي چي د دوى زړه يې غواړي من نعيم

الجنان التي لا عين رئت ولا اذن سمعت ولاخطر على قلب بشر كما ورد في الحديث الصحيح همېشه به وي.

**بوه سه**: چي جمله د (لايسمعون حسيسها) بدل ده له (معبدون) څخه دا جمله لپاره د مبالغې را وړه سوه په لېري والي کې د الذين سبقت آه له دوږخ څخه.

**بوه سه**: چي جار و مجرور چي فيما اشتهت دی چي د مخه کړی تر متعلق چي خالدون دی لپاره د اختصاص او اهتمام.

لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ

او دوی به غم کي نه اچوي لويه بېره.

**بوه سه**: چي دا جمله سره د معطوفه پر دې خبر بعد الخبر دی لان في ان الذين سبقت آه.

**درويش وايي**: چي په تفسير کي د فزع الاكبر عظيم اختلاف دی (١) سعيد بن جبير او ضحاک رح وايي چي فزع اكبر هغه وخت ده چي له دوږخ څخه مجرمان د مؤمنانو را وېستل سي ورو سته سرپوښ د دوږخ پر كفارو دوږخيانو كېښېښول سي (٢) ابن جريج رح وايي چي مرګ په شكل د پسه را وستل سي او ذبح سي او پر جنتيانو ملكي زېری وكړي خلود بلا موت او پر دوږخيانو د غم ناره وكړي خلود بلا موت (٣) حسن رح وايي چي پر بنده كه مؤمن او كه كافر امر د دخول النار وكړل سي (۴) بغوي رح وايي چي ابن عباس رض وايي چي فزع اكبر نفخة اخيره يعني نفخة الاحياء بعد الموت بدليل قوله تعالى ونفخ في الصور ففزع من في السموٰت والارض، د دې روايت بعض مفسرانو داسي توجيه كړې ده چي مراد نفخة اخيره د دنيا ده لان نفخة الفزع هي النفخة حين يكون في السموٰت والارض الاحياء فيموتون بهذه النفخة.

**درويش وايي**: چي دا توجيه ضروري ده ولي په نفخة اخيره د قيامت خو نه په اسمانو كي او نه په مځكه كي څوک وي چي وبېرېږي (٥) مراد له نفخة الفزع څخه نفخة الصعق اى الموت ده وهذا والسابق الاخير متلازمان لانهم اذا فزعوا فزعًا شديدًا فيموتون لاجل الفزع وهذا ما اختاره القرطبي رح، دليل دا وايي چي په اكثرو احاديثو صرف دوې نفخة ذكر سوي دي نفخة الصعق اى ونفخة البعث فاذا

لم يصح النفخة. الثانية اى نفخة البعث بعد الموت لما مر فلابد ان يراد به نفخة الصعق اى الموت فافهم (۶) شيخ اكبر محي الدين ابن العربي قدس سره وايي چي نفخات درې دي (۱) نفخة الفزع (۲) نفخة الصعق اى الموت (۳) ونفخة القيام الى رب العالمين.

**درويش وايي:** چي مظهري هم دغه قول مختار کړی دی، او پر دې يې دليل حديث مرفوع د ابی هريره رض راوړی دی چي ابن جرير، طبراني، ابو يعلى، بيهقي، ابو موسى المدني، علي بن معيطا، عبد بن حميد او ابو الشيخ رحمهم الله په خپلو کتابو کي را نقل کړي دي چي ابو هريره رض وايي چي نفخ الصور درې واره ده (۱) نفخ الفزع چي د اسمان له خوا څخه يو سخت اواز پيدا سي چي وارپه وار به زروه کيږي حتى چي انس او جن ټول به د سختي بېري سره مخامخ سي او حتى چي اهل د قری وو خپل مواشي پسونه، مېږي، بزې، غوايي او نور ځای پر ځای پرېږدي او دوی ښارو ته نقل سي د بېري او جنيات و غروته.

**درويش وايي:** ويدل علي ذالک حديث البخاري چي عليه الصلوة والسلام وويل يو وخت له رمې څخه لېوه پسه حمله کړی شپانه پسي روان سو پسه يې څندي خلاص کړی. لېوه پر لوړ ځای ورته ودرېدی او داسي يې ورته وويل چي دا پسه خو تا را څخه خلاص کړی په هغه وخت کي به يې څوک را څخه خلاص کړي چي بې ما بل راعي نه لري اشارة الى نفخة الفزع. صحابه کرامو رض وويل سبحان الله ذئب يتكلم؟ عليه الصلوة والسلام انا اومن به وابوبكر وعمر وماهما ثم او کما قال رسول الله ﷺ. نو دا حديث تائيد کوي د نفخة الفزع چي موږ وويل چي خلک به خپل مواشي په قريو کي پرېږدي او دوی به وښارو ته نقل سي. نو ذئب او لېوه رښتيا وويل چي بېله ما بل راعي نه لري. او عليه الصلوة والسلام د لېوه د قول تائيد وکړی والله اعلم.

**درويش وايي:** چي تحقيق د دې مقام کما مر له خواصو څخه د تفسير ايوبي دی وقلما يوجد هذا التفصيل بجميعه في مطاوي التفاسير الكبار والله الموفق ولله الحمد والمنة.

وَتَتَلَقّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ هٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ

مخ او استقبال ته وروځي د دغو ان الذين لهم منا الحسنى الآية ملكي عند خروجهم عن القبور على ابواب الجنة زيرى كونكي په دي قول سره (هذا يومكم) دا ورځ د ثواب ستاسي چي ستاسي سره وعده كړل كيده په كتب سماويه كي پر ژبه د رسولانو. والجملة حال بتقدير القول اى قائلين هذا يومكم الآية.

يَوْمَ نَطْوِى السَّمَآءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ

**يوه سه:** چي يوم منصوب دى په اذكر مقدر سره، او يا ظرف دى د (لايحزنهم) او يا ظرف دى د (تتلقهم)

**فائده:** قرء شيبة بن نصاح بالياء والبناء للفاعل والضمير راجع الى الله ﷻ. وقرء ابو جعفر وغيره بالتاء الفوقية والبناء للمفعول ورفع السماء على انه مفعول مالم يسم فاعله، وجمهور القراء بالنون على البناء للفاعل ونصب السماء على المفعولية، والطي ضد النشر، والمراد بالطي الافناء والآزالة، او ابن قيم د افناء د اسمانو او اعدامها په عدام صرف منكر دى او دى دعوه كي چي نصوص دلالت پر دي كوي چي اسمانو نه تغيير او تبديل كوي له يوه حال څخه و بل حال ته.

(كطي السجل) لكه پيچل د سجل وهي الصفيحة كما اخرج ابن جرير وغيره عن مجاهد ونسبه في مجمع البيان الى ابن عباس رضي الله عنه وقتادة والكلبي ايضًا.

**فائده:** جار او مجرور صفت د مصدر محذوف دي اى طيًا كطي السجل، والسجل هو الطومار يعني اوږد كاغذ.

**درويش وايي:** چي ددې آيت په معنى كي عظيم اختلاف دى، روح المعاني وايي واللام للتعليل اى كما يطوى الطومار لاجل الكتابة يعني لوى كاغذ سره ويېچي او كښې يې ږدي چي يو وخت د كتابت ته ضرورت پيدا سي را وايې خلي او نوشته پر وكړي. فلا يرد ان المعهود نشر الطومار للكتابة لاطيه لها، او عبد بن حميد له حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چي سجل نوم دى د ملكي چي د هر انسان سره ستړه چي كرام كاتبين يې بولي، نو انسان چي مړ سي هغه عمل نامه دده وپېچي او پورته يې كړي تر عرش لاندي يې كښېږدي تر ورځي پوري د

قیامت. بیا چي انسان ژوندی سي هغه عمل نامه یې په راسته یا چپه لاس کي ور کړي. ويقال اقرا، کتابک کفی بنفسک علیک حسیبًا کما وقع في القرآن العزيز. وهذا المعنى هو الانسب عند الفقير والله اعلم. واللام في قوله للكتب متعلق علی طي. وقيل السجل كان اسمًا لكاتب الوحي للنبي ﷺ، وهذا ضعيف لانه لم يجئ في شئ من الآحاديث لفظ السجل في كتاب الوحي للنبي ﷺ.

**پوښتنه**: تا د ابن القيم الاندلسي رح قول د مخه را نقل کړی چي هغه د فناء او زوال د اسمانو بالكلية منكر دی بلکې په تغییر د احوالو د اسمانو قائل دی. آیا دا قول د اندلسي رح له دې آیتو څخه مخالف نه دی (اذا السماء انشقت الآية. اذا السماء انفطرت، وانشقت السماء فكانت وردة كالدهان) الى غير ذالک؟

**ځواب**: لا! ولي د انشقاق او انفطار معنی خو افناء بالكلية نه ده. وسيأتي تحقيق ذالک في تفسير السورة الواقعة هذه الآيات فيها ان ان شاء الله تعالی. اللهم وفقني لتفسير القرآن العزيز الى اخيره بالخير والصحة والسلامة انک علی كل شئ قدير وبالاجابة جدير وماذالک علیک بعزيز.

هو! په مذکوره آیتو کي رد دی پر فلاسفه وو باندي چي دوی وایي اسمانونه بصورها النوعية وهيئآتها الموجودة قديمة ابدية ولاشک في رد هذا القول بالآيات المتلوة.

**درويش وايي**: چي ما ډېر کوشش کړی دی په خپل حاشیه پر هداية الحكمة په ابطال کي د اقوالو د فلاسفه وو ان شئت فارجع الى تلک الحاشية وهي مطبوعة موجودة في جميع مكاتب كويته. فقير وايي چي داؤ تفسير ددې آيت مغلقه حسب المقدور والله اعلم بمراده في كتابه.

## كَمَا بَدَأْنَآ أَوَّلَ خَلْقٍ نُّعِيدُهُۥ

لکه چي موږ ابتداءً مخلوق د كتم د عدم پیدا کړي وه بیرته یې په ورځ د قیامت و دائرې ته د وجود راګرځوو یا په طور د ایجاد بعد العدم المحض كما في اول الخلق او يا په جمع د اجزاء متفرقه د هغو على حسب اختلاف القولين لان الابتداء ليس باهون من الاعادة بل الامر بالعكس نظرًا الى قدرة الناس وان كان البدء

والاعادة سيان بالنظر الى قدرة القادر العزيز فافهم.

**بوه سه:** چي كلمه د ما كافه ده مصدريه نه ده وكلمة اول مفعول د بدئنا دى،
والمعنى نعيد ما خلقناه مبدءً اعادةً مثل ابدائنا اياه. والمقصود په دې آيت كي
بيان د صحت د اعاده چي پر ابداء دې قياس كړي، ولې چي امكان ذاتي د مقدراتو
موجود دى اعادةً لكه چي موجود ؤ ابتداءً وذالك الامكان هو المصحح
المقدورية باجماع اهل الاسلام والفلاسفة او قدرة كاملة د قادر متعال هم تغيير
نه دى خوړلى فما للناس اى الكفرة ينكرون البعث بعد العدم، بخاري او مسلم
چي په شيخانو سره د علم حديث شهرت لري، او ترمذي له ابن عباس رض څخه
روايت كړى دى چي عليه الصلوة والسلام په مجمع كي د صحابه كرامو رض
ودريدى او وه يې ويل يا ايها الناس انكم تحشرون الى الله حفاة (لڅي پښې)
مشات (پياده) عرات (لغ لغړ) غزلاً (ناسنته) بيا عليه الصلوة والسلام دا آيت
استدلالاً پر ما قال وو ايه كما بدئنا اول خلق نعيد كمامر تفسيره، او زياته يې كړه
و اول من يكسى من الخلائق (اول سړى چي كالي يعني د جنت په اغوستل كيږي
په خلكو كي ابراهيم ع به وي.

**درويش وايي:** چي د دې اوليت وجه دا ده چي نمرود ابراهيم ع لغ و اور ته
غورځولى ؤ.

## وَعْدًا عَلَيْنَا ۚ إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ ﴿١٠٤﴾

(وعدًا) مفعول مطلق د فعل محذوف دى اى وعدنا وعدًا. نو دا كيد دى د
نعيده) په تحقيق سره موږ كونكي يو د دې كار يعني البعث بعد الموت، دا جمله
تاكيد بعد تاكيد ده.

## وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِن بَعْدِ الذِّكْرِ

لام جواب د قسم محذوف دى په تحقيق موږ نوشته كړي دي يعني ملكو زموږ
په امر زما.

**بوه سه:** چي سعيد بن جبير او مجاهد رح وايي چي له زبور څخه مراد ټوله كتب
منزله دي او مراد له ذكر څخه ام الكتاب دى چي لوح محفوظ دى چي په نيز د

خدای ﷻ دی یعني من بعد ما کتبنا ذالک في اللوح المحفوظ. او شعبي وايي چي له زبور څخه مراد کتاب دی د داوُد عليه السلام کما هو المتعارف او د ذکر څخه مراد تورات دی، او ابن عباس رضي الله عنه او الضحاک رحمه الله وايي چي مراد له زبور څخه تورات دي او له ذکر څخه مراد نور کتب منزله دی بعد التورات چي انجيل او قرآن کريم دي. او بعض مفسرين وايي چي مراد د زبور څخه کتاب داوُد عليه السلام دی او مراد له ذکر څخه قرآن مبارک دی، پر دې اخيرو دوو احتمالو من بعد په معنی د قبل دی.

**درويش وايي**: چي دا مجاز ډېر ناوړه دی. نو بناءً عليه دا دوه احتماله ډېر ضعيف دي فتدبر.

**پوه سه**: چي زبور د داوُد عليه السلام مقصور ؤ پر حکمت عقلي ولايتضمن شئ من الاحکام الشرعية وکانت الاحکام الشرعية بالوحي الخفي.

## أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ ﴿١٠٥﴾

بېشکه مځکه د جنت په ميراث وړي بندګان زما چي په دنيا کي صالحان وي يعني اوامر الهيه يې پر ځای کړي وي او له منهيات شرعيه وو څخه يې پرهېز کړی وي کما قال الله تعالی والعاقبة للمتقين.

**پوښتنه**: په عبادو کي د خدای خو فساق او فجار هم سته. نو هغو ته جنت نه ورکول کېږي؟

**ځواب**: فساق يا په عذاب سره د دوږخ له ګناه څخه پاکېږي يا په مغفرت الهي پاکېږي يا په شفاعت نبوي پاکېږي، نو دوی ملحق په صالحينو سره ګرځي او جنت ته وارد ېږي، او مجاهد رحمه الله وايي چي مراد له عبادي څخه امت د عليه الصلوة والسلام دی بدليل قوله تعالی (وقالوا الحمد لله الذي صدقنا وعده واورثنا الارض نتبوء من الجنة حيث نشاء) وفي رواية عن ابن عباس رضي الله عنه چي مراد له ارض څخه ټوله دنيا ده چي خدای رحمه الله مؤمنان پر غالبه کوي وهو قول الکلبي رحمه الله او دا قول يې په تائيد کي راوړی دی (ليستخلفنهم في الارض) واخرج مسلم والترمذي وابو داوُد عن ثوبان رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ان الله زویٰ لي الارض (ما ته خدای رحمه الله کشف کړه مځکه) فرئيت مشارقها ومغاربها وان امتي سيبلغ ملکها الی ما زویٰ لي منها (په تحقيق زما د امت سلطنت به ورسېږي و هغې مځکي ته چي ما ته کشف کړل

سوه. مفسرين رح وايي چي وعده د خداى جل جلاله له خوا څخه په اعزاز د دين د نبي ﷺ واعزاز اهله او په غلبه سره دده وي پر اكثره معموره مځكه باندي (يعني كه څه هم اوسېدونكي يې كافران وي او جزيه وركوي) لكن دا هغه معموره مځكه مراد ده چي ترده (يعني تګ راتګ د مسافرانو و هغې ته ډېر وي) والا فمن الارض مالم يطائها المؤمنون كالارض الشهيرة بالدنيا الجديدة (لكه ديار او ممالك د امريكايانو چي په زرو كلونه وروسته انګريزانو كشف او آباده كړه. يا مځكه د هند غربي) روح المعاني وايي كه چېري مراد غلبه د مؤمنانو پر ټوله نړۍ سي او ټوله په حوزه كي د مؤمنانو راسي كه جديده او كه قديمه وي هغه په ايام د مهدي رضي الله عنه ونزول عيسى عليه السلام. نو هغه مخنى توجيه ته ضرورت نسته فتدبر.

**پوښتنه:** په احاديثو شريفه وو كي راغلي دي چي په اخيره زمانه كي به كفار پر ټوله مځكه مستولي وګرځي؟

**ځواب:** وراثت د ټولي مځكي مسلمانانو ته د استيلاء د كفارو تاوان نه كوي. ولي چي استقلال د كفارو پر ټوله مځكه لږ زمانه به وي چي نفخ الصور به پر دوى وسي. نو دې لږ زماني ته د غلبه كفارو اعتبار نسته. لكه په حديث صحيح كي چي راغلي دي چي نفخ الصور تر هغو نه كېږي چي په مځكه كي الله الله ويونكي پاته وي.

## إِنَّ فِي هَٰذَا لَبَلَاغًا لِّقَوْمٍ عَابِدِينَ ﴿١٠٦﴾

يعني په دې كي چي په قرآن كريم كي ذكر سوه من اخبار الامم الماضية والمواعظ البليغة والمواعيد للمؤمنين الصالحين والمسرفين في الارض (لبلاغا) يعني كفايت سته لاجل دخول الجنة يعني څوك چي په دغو قرآني مواعظو عمل وكړي وجنت ته به ورسېږي (لقوم عابدين) حرف جر متعلق په بلاغا پوري دى اى للمؤمنين الذين يعبدون الله وحده بخلوص نية لان هذه عبادة مقبولة عند الله ثياب عليها بدخول الجنة دار القرار. ابن عباس رض د عابدين ترجمه په عالمين سره كړې ده.

**درويش وايي:** چي مراد له عالمينو څخه صرف په نامه عالمان نه دي بلكي مراد العاملين بما علموه دي فالمآل واحد. او كعب احبار وايي چي مراد څندي امت د عليه الصلوة والسلام اهل الصلوة الخمس وشهر رمضان. روح المعاني؛ وايي چي

ظاهره عموم عبادات دي او تخصيص د صلوات خمس و شهر رمضان نكته الاهتمام بهما لان الصلوة عماد الدين، كريمه (ان الصلوة تنهى عن الفحشاء والمنكر، وصيام شهر رمضان تكسر الشهوات الفاسدة) لكه په صحيح حديث كي د بخاري وغيره چي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام ځواني طبقې ته د ترانو داسي وويل كه طاقت او قدرت د نكاح لرئ (فليتزوج الى ان قال ومن لم يستطع فعليه بالصوم فانه له وجاء او كما قال عليه السلام. والوجاء نوع من الخصى) ترجمه: يعني كه قدرت د نكاح لرئ نو نكاح وكړئ، او كه قدرت د نكاح نه لرئ نو روژې نسئ.

## وَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا رَحۡمَةً لِّلۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۱۰۷﴾

او مونږ ته نه يې استولي يا محمد (ﷺ) مگر نه رحمت د ټولو عالميانو لپاره من الانس والجن لعموم رسالته وبقائها الى يوم القيامة.

**پوهه:** چي رحمةً منصوب دى علت د ارسال دى، والمراد ان ارسالک رحمة منا على الانس والجن ليهتدوا بک الى الحق، په حديث صحيح كي د ابو هريره رضي الله عنه چي حاكم يې روايت كړى دى عليه الصلوة والسلام وايي انما انا رحمة مهداة) زه رحمت يم چي خداى جل جلاله ستاسي د هدايت لپاره استولى يم، يا معنى دا چي تاسي ته يې هديه راستولى يم، والله اعلم، او بخاري په خپل تاريخ كي له ابو هريره رضي الله عنه څخه په روايت داسي وايي چي عليه الصلوة والسلام وويل انما بعثت رحمةً ولم ابعث عذابًا، ابن عباس رضي الله عنه وايي چي رسول الله ﷺ رحمت د كافرانو لپاره هم دى بتاخير العذاب عنهم ورفع (المسخ الى القردة والخنازير) يعني بيزوګان او سركوزان نه ګرځي) والخسف (او په مځكه نه ننوتل لكه قارون) والاستيصال (د يو مخه نه هلاكېدل)

**سپانه فائده:** په دې كي اختلاف دى چي په عالمين كي ملكي هم داخلي دي، او مبنى د اختلاف پر دې دى چي عموم د بعثت د عليه الصلوة والسلام ملكو ته هم شامل دى او كه نه فان قلنا بالعموم كما رجحه من الشافعية البازري وتقي الدين السبكي والجلال الدين المحلي رحمه الله ومن الحنابلة ابن تيمية وابن مفلح في كتاب الفروع ومن المالكية عبد الحق رحمه الله قلنا بشمول العالمين للملائكة عليهم السلام وكونه عليه الصلوة والسلام رحمة لهم لانه جاء عليه السلام ايضًا بما فيه تكليفهم بالاوامر والنواهي. كه څه هم مونږ ته يو خبر چي د ملكو او امر او منهيات نو څه شى

ؤ. ولا شک ان في امتثال المكلف ما كلف به نفعاء وسعادة له. وان قلنا بعدم شمول رياسته ﷺ للملائكة كما جزم به الحليمي والبيهقي والجلال المحلي في شرح جمع الجوامع وزين العراقي في نكتة على ابن الصلاح من الشافية ومحمود ابن حمزة في كتابه العجائب والغرائب من الحنيفية بل نقل البرهان النسفي رح والفخر الرازي رح في تفسيره الاجماع عليه. كه څه هم دا اجماع خو مسلم نه ده، ولي تا د اختلاف خبري واوريدلي قلنا بعدم شموله للملائكة واراد بالعالمين من سواهم.

**درويش وايي**: چي انصاف دادى چي ملائكه په عموم كي د عالمين داخلي دي كه څه هم عليه الصلوة والسلام مبعوث ودوى ته نه دى، ولي چي عالم ملائكه كرام ته په وساطت د رسالت د عليه الصلوة والسلام ډير علوم او اسراء عظيمة حاصل سوه مما اودع في كتابه المنزل عليه الصلوة والسلام من اخبار ماكان ومايكون عبارةً او اشارةً واى سعادة اعظم من التحلي بزينة العلم. وهذا رحمة لهم عليهم السلام فيكون هو ﷺ رحمةً لهم وان لم يكن مبعوثًا اليهم.

**درويش وايي**: چي علامه بغدادي رح نوري هم اوږدي خبري كړي دي.. بيت:

تاطبع نازكت نه بزيرد ملامتي ........ آن به كه نامه رابدعا مختصر كنم

اللهم اهدنا الى صراط مستقيم غير المغضوب عليهم ولا الضالين.

**قُلْ إِنَّمَا يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴿١٠٨﴾**

ته ووايه يا محمد (ﷺ) و كفارو ته د قريشو چي ماته وحي كړل سوي چي معبود بالحق اله يو دى.

**درويش وايي**: چي دواړه ځايه په انما د حصر معنى مرعي لره كه څه هم په ترجمه كي ما نه راوړه.

**پوه سه**: چي دا جمله مستانفه ده په ځواب كي د هغه سوال مقدر د عليه الصلوة والسلام ما اقول لهم حين بعثته رحمةً لهم (فهل انتم مسلمون) آيا تاسي مسلمانان نه كرځئ والاستفهام ههنا بمعنى الامر اى اسلموا واخلصوا العبادة لله واتركوا الاشراک على مقتضى الوحي المؤيد بالحجة. نو ځان مستعد د رحمت د خداى ﷻ وكرځوئ او د ما ارسلناك الا رحمةً للعلمين مصداق ځانونه جوړ كړئ.

**فَإِن تَوَلَّوْا فَقُلْ آذَنتُكُمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ ۖ**

كه دوى اعراض وكړي له اسلام څخه او له رحمت څخه د خداى ج بعد اتمام

الحجة عليهم عقلاً ونقلاً. نو تـه يا محمد (ﷺ) ووايه دوی تـه ماتاسي خبر کړلاست په ما ارسلت به اليکم، بعض مفسرين وايي اعلمتکم بالحرب وان لا صلح بيننا وبينکم (علی سواء) يعني حالکونکم مستوين في الاعـلام يعني ما اخفيت منکم شيئًا مما اوحي الي فانا وانتم مستويان في العلم بما اعلمتکم، او يا معنی داده چي زه تاسي ته اعلام د حرب او معـادات علی سواء انا وانتم يعني لا خداع من جانبي يعني زما له طرفه څخه چم نسته چي تاسي ناخبره ياست او زه پر تاسي حمله وکړم، نو تاسي هم و جنګ ته تيارسی اوسئ.

## وَإِنْ أَدْرِىٓ أَقَرِيبٌ أَم بَعِيدٌ مَّا تُوعَدُونَ ﴿١٠٩﴾

زه نه يم خبر چي آيا نژدې دی او که لېري دی هغـه چي د تاسي سره يې وعده کړې کبرې من غلبة المسلمين عليکم او عذاب يوم القيامة لکن کل واحد منهما متحقق لا محالة اذ لا خلف في وعده تعالی.

## إِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلْجَهْرَ مِنَ ٱلْقَوْلِ وَيَعْلَمُ مَا تَكْتُمُونَ ﴿١١٠﴾

پـه تحقيق خدای ج علم لري پر هغـه څه چي تاسي يې علانيه کوئ د خبرو من الطعن في القرآن وتکذيب النبي ؑ او هغه څه چي تاسي يې پټ ساتی يعني په سينو کي بغض او عداوت د مسلمانانو سره، يعني پر هر يوه به خدای ؑ جزاء ورکړي.

**پوهـه:** چي دا جمله معترضه ده په منځ کي د معطوف او معطوف عليه وهو قوله (وان ادري)

## وَإِنْ أَدْرِى لَعَلَّهُۥ فِتْنَةٌ لَّكُمْ وَمَتَـٰعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿١١١﴾

**پوهـه:** چي مفعـول د ادري محذوف دی ای لا ادري سبب لتاخير العذاب عنکم مع علم الله تعالی بجهرکم وسرکم بالسوء والمعادات للمسلمين.

**فائده:** چونکه په آيت فوق نفي د علم عليه الصلوة والسلام چي يقين ورته وايي له سبب څخه د تاخير د عذاب د کفارو لـه دي څخه دا توهم کېدی چي عليه الصلوة والسلام به ظن هم نه پر لري فدفع ذالک الوهم بقوله تعالی (لعله فتنة لکم) يعني شايد دا تـاخير د عـذاب ستاسي سبب به يې استدراج وي ستاسي يا

معنى دا فتنه امتحان ده يعني چي خداى جل‌جلاله ستاسي څخه امتحان اخلي چي تاسي له معادات څخه د نبي عليه‌السلام او د مؤمنانو رجوع كوئ او كه نه، والمعنى يعاملكم معاملة الممتحن والا هو تعالى بكل شئ عليم.

**پوه سه:** چي متاع مصدر د مجرد دى په معنى د تمتيع دى او تنوين د متاع او حين لپاره د تحقير دى يعني لږ تمتيع تر لږ وخت پوري د ركوي چي په قضاء الهي كي سته.

**پوښتنه:** دا (متاع الى حين) هم تر لعل د ترجي لاندي داخل دى او كه څرنگه؟

**ځواب:** متاع الى حين خو متيقن دى تر لعل نه دى لاندي، ولهذا قال جلال الدين المحلي رح هذا مقابل للفتنة المترجي بلعل وليس هذا محل الترجي انتهى يعني متاع الى حين خو قضاء مبرم ده خداى ج ده.

## قُلَ رَبِّ احْكُمْ بِالْحَقِّ ط

و وايه اې ربه حكم وكړې په حقه سره په منځ كي زموږ او د كفارو د مكې په عدل سره چي عذاب نازلول دي پر كافرانو د مكې او نجات وركول دي مؤمنانو ته.

**پوه سه:** چي حفص رح لفظ (قل) قال وايي په صيغه د ماضي چي ضمير يې راجع دى و عليه الصلوة والسلام، نو حكايت له حال څخه د عليه الصلوة والسلام دى او جمهور قراء يې په صيغه د امر وايي.

## وَرَبُّنَا الرَّحْمٰنُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ ﴿١١٢﴾

او زموږ رب كثير الرحمة دى پر خلكو (دا جمله مبتداء او خبر دى) چي دده څخه طلب د مرستي كول كېږي (المستعان) صفت د (الرحمن) دى يا خبر بعد الخبر دى د (ربنا) (على ما تصفون) چي تاسي يا اهل مكه توصيف كوئ د عليه الصلوة والسلام او د قرآن بالكذب والباطل او دده خبري د عليه الصلوة والسلام چي شوكت او غلبه د مسلمانانو په وياړ سي، او تاسي وايا ست چي بيرغ د اسلام به يو څو ورځي بلند وي بيا به سرنگون سي، او يا وايا ست چي د خداى ج عذاب كه حق واى، نو ولي نه نازلېږي مانع يې څه دي.

**فائده:** خداى جل‌جلاله دغه دعاء د عليه الصلوة والسلام قبوله كړه ونصر المسلمين او وه يې تكول كفار د مكې په قتل او اسر يعني بند سره په ورځ د بدر.

سُورَةُ الْحَجِّ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ ثَمَانٌ وَسَبْعُونَ آيَةً وَعَشْرُ رُكُوعَاتٍ

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

د سورة الحج اته اوويا آيتونه دي، اكثره مكيه دي او بعض مدني آيتونه هم پکښې دي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمْۚ إِنَّ زَلْزَلَةَ ٱلسَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ ﴿١﴾

اې خلکو وېرېږئ له عذاب څخه د مُربي او مالک د امورو ستاسي بالايمان والطاعة الذيان هما من اسباب دفع العذاب من ربكم.

**فائده:** دا خطاب عام دی للمكلفين عند نزول الآية، او هغو کسانو ته چي وروسته تر نزول د آيت په تناو کي د مکلفينو داخلېږي يعني الموجودين وقت النزول چي وه رتبې ته د تکليف نه وي رسېدلي يعني بسبب صغر السن، والموجودين بعد النزول الى يوم القيامة لابطريق الحقيقة عندنا بل بتغليب الحاضرين وقت النزول على الحادثين بعد ذالک، او يا حکم شامل دی ومن سيوجد ته بدليل خارجي وهو ان احکام الشريعة عامة للحاضرين و الغائبين بالاجماع القاطع لان نبوته ﷺ وشريعته باقية الى يوم القيامة، خلافًا للحنابلة وطائفة من المسلمين والفقهاء حيث ذهبوا الى تناوله الجميع حقيقة. ولا خلاف في دخول الاناث کما قال الامدي في نحو الناس مما يدل على الجمع ولم يكن فيه علامة التذکير والتانيث.

**پوه سه:** چي زلزله سخت ښورولو ته وايي بطريق التکرار کما يدل عليه تکرير حروفها لان زلزل مضاعف لزل والساعة عبارة عن القيامة لسرعه حسابها.

**فائده:** د علماؤ اختلاف دی په وخت کي د دې زلزلې، بعض وايي چي په دنيا کي واقع کېږي قبيل طلوع الشمس من مغربها فيكون وقت الذهول والوضع الاتيان في الآية اللاحقة على حقيقتها، او بعض مفسران وايي تكون تلك الزلزلة يوم القيامة. نو زهول والوضع محمول پر تمثيل ده. ولي په ورځ د قيامت نه حمل سته چي وضع سي او ارضاع سته. مظهري رح وايي ای تحريک الاشياء والاسناد الى الساعة مجاز آه (شئ عظيم) لوی شی دی چي د بيان او تفصيل امکان يې نسته لقصور العبارة عن بيانها.

**پوه سه:** چي (ان) مع صلتها په ځاى كي د تعليل د امر بالتقوى ده يعني د خلاصون لار دد ې زلزلې له هول څخه پوازې او پوازې د تقوى لباس اغوستل دي.

**درويش وايي:** ماقيل ان المراد بالناس في يا ايها الناس كفار د مكې دي فليس بشيئ لانه تبديل التحذير العام بالخاص بلا ضرورة.

**يَوۡمَ تَرَوۡنَهَا تَذۡهَلُ كُلُّ مُرۡضِعَةٍ عَمَّآ أَرۡضَعَتۡ**

هغه ورځ چي تاسي اې مخاطبينو وويني دا زلزله يا ساعت، غافله به سي پر هغه ښځه چي خپل د ولد په خوله يې تي ورکړى وي، دا ښځه به له ډېري ېري څخه د زلزلې بېهوشه سي، نو دا به غافله سي د خپل کوچني څخه او تى به د کوچني له خولې څخه وکاږي. وعلى هذا فكلمة ما موصولة او تذهل عن ارضاعها فعلى هذا كلمة ما مصدرية.

**پوه سه:** چي لفظ د يوم منصوب دى په وروسته فعل سره باتفاق المفسرين رح يعني تذهل. او مراد له رضاع څخه د صفت معنا وي اى من شانها ان ترضع، يقال مرضع بلا علامة التانيث مثل حائض وحامل لانه من الصفات الخاصة بالنسوة كالحامل والحائض. واذا ايد به فعل الارضاع حالاً يقال مرضعة بالتاء، فرقاً بين الوصفين.

**پوه سه:** چي جمله (عما اوضعت) خبر ثاني د ان ده، والرابط ضمير ترونها چي راجع دى و زلزلة ته. او يا دا جمله يعني يوم ترونها الخ علت دى لقوله شئ عظيم فافهم.

**وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمۡلٍ حَمۡلَهَا وَتَرَى ٱلنَّاسَ سُكَٰرَىٰ وَمَا هُم بِسُكَٰرَىٰ**

يعني اسقاط به وکړي له هول څخه دد ې زلزلې هره ښځه (چي اميدواره وي د خپل مافي الرحم د هر څو مياشتو چي وي) او ته به ويني اې مخاطب غير معين خلک چي پوه خوا او بله خوا ته به منډې وهي لکه دا خلک چي مست وي شراب يې څښلي وي نو په ځان نه پوهېږي. او دوى د شراب مست نه دي.

**پوه سه:** چي حمزه او کسائي رح آيت داسي وايي (سَكرى وماهم سَكرى) بغوي رح وايي چي سكارى او سكرى دوه لغته دي د جمع د سكران المذكر لپاره نه د مؤنث لپاره.

**پوښتنه:** د مخه يې ترونها خطاب د جمع راوړى او په ترى الناس كي خطاب د مفرد راوړى وجه يې څه ده؟

**ځواب**: زلزله خو ټوله خلک ویني لکونها امرًا مغایرًا للناس بخلاف الحالة القائمة من شبه السکر، ولي چي هر سړی خو خپل سُکر نه ویني بلکې د بل سړي سُکر ویني.

**پوه سه**: چي سکر یو حالت دی چي حائل وګرځي په منځ د سړي او د عقل او اکثره دا حالت د شرابو له څیښلو څخه پیښیږي لکن کاهي له ډېره عشقه څخه هم پیښیږي ...... ع: سکران سکر هوی سکران مدامة .... ای خمر والهوی العشق.

او کاهي له ډېره درد څخه هم پیښیږي ومنه سکرات الموت، حتی چي د زلزلة القیامة په اوله دوره کي چي رب جل کبریائه بساط د عز والجبروت وغوړوي او خېمه د کبریا، الهي پر ټوله محشر ووهل سي مجبور به سي انبیاء علیهم السلام او نعري به د نفسي نفسي وهي.... قال الشیرازي قدس سره:

دران روز کز فعل پرسند وقول ........ اولو العزم راتن بلرزد زهول
بجای که دهشت خورد انبیاء[۴] ........ تو عذر گناه را چه داری بیا

حسین کاشفي رح میګوید في تفسیر قوله تعالی وماهم بسکاری زیرا که زوال عقل از خوف وحیرت سکر نباشد اگر رای العین سکر نماید.

وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيدٌ ۝

لکن عذاب د خدای ج سخت دی فغشیهم هوله وطیر عقولهم وسلب تمییزهم.

**پوه سه**: چي لکن استدارک دی لپاره د دفع وتوهم ناشي عن نفي السکر چي کار لکه چي سپک دی.

**فائده**: یحیٰی بن معاذ الرازي رح وایي که خدای جل جلاله ما امر کړي چي زما عذاب پر خلګو تقسیم کړه، ماقسمت للعاشقین عذابًا لان عذاب العشق کاف لهم والمراد العشق الواقعي... حافظ شیرازي رح وایي:

هرچند غرق بحر گناه هم زصد جهت .... گر اشنای عشق شوم زاهل رحمتم

**درویش وایي**: چي بعض مفسرین وایي چي دا دوه آیته په غزاء کي د بني المصطلق د شپې نازل سوه، علیه الصلوة والسلام چي تلاوت وکړي ددي دوو آیتو راوي وایي چي نه دي لیدل سوي ژړونکي چي بالا دي وي ددغي شپې تر ژړېدونکو، شپه تېره سوه هیڅ چا د خپلو اوښانو یا آسانو څخه نه بار ونه نه خیین او نه ځل کښته

کړي او خپمي به هم نه دي درولي او نه به دېک باندي کړی ؤ وکانوا بين حزين وباک ومتفکر. نو عليه الصلوة والسلام دوی ته وويل چي تاسي خبر یاست چي دغه ورځ به کله وي؟ قالوا الله ورسوله اعلم. قال ۳ ذالک اليوم يوم القيامة چي آدم ؑ ته خدای ﷻ نداء وکړي يا آدم فيقول لبيک وسعديک والخير کله بيديک، خدای ﷻ ورته ووايي اخرج بعث النار فيقول من کل الناس کم بعث النار خدای پاک ورته ووايي من کل (۱۰۰۰) (۹۹۹) فذالک التقاول بين الله ﷻ وبين آدم ؑ حين يشيب الصغير وتضع ذات حمل حملها (اى على سبيل التمثيل. ولي په ورځ د قيامت خو حمل ښځه نه لري، او نه کوچنی سته چي سپين ږيری سي. نو دوارِه قوله کنايه ده له شدت هول څخه د دغي ورځي) وترى الناس سکاری (اى من الخوف والهول وماهم بسکاری اى من الخمر ولکن عذاب الله شديد) پر مسلمانانو دا خبره ډېره درنه پرېوتل ددوی دا خيال ؤ چي په مسلمانانو کي به په زرو کي نهه سوه نهه نيوي دوږخ ته ځي يو به جنت ته ځي، له دې جهته دوی وويل وايّنا ذالک الواحد؟ فقال عليه الصلوة والسلام ابشروا فان من ياجوج وماجوج الفًا ومنکم واحد، بيا عليه الصلوة والسلام وويل والذي نفسي بيده اني لارجو انتکونوا (تاسي به امت زما یاست) ثلث اهل الجنة فکبروا وحمدوا الله (نو صحابه کرامو له خوشاليه الله اکبر او الحمد لله وويل) ثم قال والذي نفسي بيده اني لارجوا انتکونوا نصف اهل الجنة فکبروا وحمدوا الله. ثم قال والذي نفسي بيده انتکونوا ثلثی اهل الجنة، او زيات به کړه چي اهل جنت به يو سل او شل (۱۲۰) صفه وي (درويش، والله اعلم بعدد کل صف) (۸۰) منها امتي و (۴۰) من الامم الاخر الى اخير الحديث.

**درويش وايي**: چي دا حديث طويل دی روی بعضه بخاري وبعضه ارباب السنن الاربعة، وکذا البغوي عن عمران بن حصين وابی سعيد الخدري رض واخرجه الترمذي وصححه ايضًا. وروى عن ابي سعيد الخدري وعمران بن حصين رض ان رسول الله ﷺ قال تدخل من امتي سبعون الفًا الجنة بغير حساب فقال عمر رض سبعون الفًا (يوه سه! چي قول د عمر رض په طريقه د استفهام دی بحذف حرف الاستفهام، وهذا الاستفهام والله اعلم کان للتعجب الى دخول هذا العدد الکثير الى الجنة بغير حساب، ولذا اجاب رسول الله ﷺ بما هو اعجب منه حيث قال،

نعم ومع كل واحد (د هر يوه د دغه سبعون الفا) سبعون الفا (يعني اوويا زره په اوويا زره كي ضرب كړئ بيخي عدد كثير څنډي جوړيږي كما لايخفى على اهل الحساب) الى اخير الحديث.

**درويش وايي:** چي دا ووړ د مذكوره دوو آيتو تفصيل على وجه التفصيل من الاحاديث الشريفة الصحيحة والله الموفق والمعين والحمد لله رب العالمين.

## وَمِنَ النَّاسِ مَن يُجَادِلُ فِى اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ

او بعض له خلكو څخه هغه څوك دي يعني من اهل مكة چي ناحقه بحث كوي په ذات او صفاتو كي او په احكامو كي د خداى ﷻ. بېله علمه يا نقلي يا عقلي، مفسرين وايي چي دا آيت په النضر بن الحارث كي نازل سوى دى چي كثير الجدال ؤ د عليه الصلوة والسلام سره، او ده به ويل چي ملائكه بنات الله دي او قرآن مبارك به يې اساطير الاولين باله يعني د دروغو قصې د پخواني خلكو، او دى د بعث بعد الموت څخه هم منكر ؤ او له احياء څخه د من صار ترابا كذا اخرج ابن ابى عن ابي مالک.

**درويش وايي:** چي د دې شان نزول كه څه هم النضر بن الحارث دى لكن اهل التفسير په يوه خوله وايي چي عبرت عموم لره د لفظ دى لا لخصوص المورد فيدخل في الآية امثال النضر بن الحارث من مشركي مكة المعتقدين لمثل عقيدته بل عموم المنكرين الى يوم القيامة كمشركي الهند وجابان وغير ذالک.

## وَيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطَٰنٍ مَّرِيدٍ ۝٣

او دى متابعت كوي په عمومي احوالو كي (ضمير راجع دى و من ته) د هر شيطان چي دده په زړه كي دا خبري وراچوي من الجن والانس.

**يوه سه:** چي مرِد خالي والي ته وايي ومنه الامرد يعني بې ږيري هلک لتجرده من الشعر، والمريد والمارد العاري من الخير المستمر في الشر.

**درويش وايي:** چي مريد تېوله رئيسان د كفر او ضلال دي چي اتباعو ته دعوت د شرک او كفر وركوي، او رئيس اعظم د دې ټولي ابليس دى عليهم اللعنة من الله وملائكته ومن الناس اجمعين.

## كُتِبَ عَلَيْهِ أَنَّهُ مَنْ تَوَلَّاهُ فَأَنَّهُ يُضِلُّهُ

كتب اى قضى الله في اللوح المحفوظ (عليه) اى على الشيطان في التاويلات النجمية اى كتب على كل شيطان من الانس والجن (انه) الضمير للشان (من تولاه) اى اتخذ الشيطان وليًا (فانه يضله) نو شيطان هغه تابع خپل گمراه کوي.

**بوه سه:** چي ان سره د جمله خبر د مبتداء محذوفي دى اى فشان الشيطان ان يضل من تولاه عن طريق الحق، وجمله فانه آه جزاء ده د من كه كلمه د من شرطيه وي. وخبره ان كانت موصولة فافهم تدرك.

## وَيَهْدِيهِ إِلَىٰ عَذَابِ السَّعِيرِ ۝

او شيطان ښوونه كوي و هغه تابع ته ولاري ته د اور يعني دوږخ. يعني شيطان باعثه كوي خپل تابع پر كولو د داسي افعالو من الشرك والمعاصي چي هغه افعال سرې دوږخ ته رسوي.

**فائده:** اضافت د (عذاب) و (سعير) ته چي نار الشديدة الاشتعال ته وايي بيانيه ده كعلم الفقه وشجرة الاراك، او حسن رح وايي چي سعير يو نوم دى له نومانو څخه د دوږخ.

**فائده:** جمله د ومن الناس في الله الآية حال ده له فاعل څخه د اتقوا، والتقدير يا ايها الناس اتقوا ومنكم من يجادل ولا يتق. او يا جمله معترضه ده.

**فائده:** شيطان جني خلک گمراه كوي چي په زړونو كي يې وسوسې وراچوي د كفر او د عصيان او په زړونو كي يې نوري شبهې ورځايوي مثلاً بعث بعد الموت نشته او او اصنام مستحق د عبادت دي او د نورو معاصيو تزيين ورته كوي لكه زنى لواطت وغيرهما. واعظم طريق النجاة من وساوس الشيطان التعوذ من تلک الوساوس الى جناب الباري جل وعلا يعني اعوذ بالله من الشيطان الرجيم ډېر ډېر مكرر ويل دي يعني هر وخت چي په زړه كي وسوسه د معاصي كولو پيدا سي درې واره أعوذ بالله و اياست خداى جلت قدرته به يې دفع كړي لكن حسن اعتقاد په كار دى.

علماء رح وايي چي شيطان انسي تر شيطان جني بد تر دی، ولي چي شيطان جني په اعوذ بالله من الشيطان الرجيم دفع کيږي او شيطان انسي په اعوذ بالله من الشيطان سره هم نه دفع کيږي.

**سوال**: څه دليل دی چي زموږ په اذهانو کي د يوه بد کار او معصيت کولو خيال را وګرځي چي دا د شيطان له خوا ده؟

**ځواب**: مولانا جلال الدين الرومي قدس سره ددې ځواب په ډېرو خوږو ابياتو راوړی دی چي حاصل يې دادی چي يو سړی چي په يوه وياله کي په ډېرو اوبو کي لمبيږي او په پښه د ننه په اوبو کي يو ځوزيا ډېره جګه سي چي دی خو يې په سترګو نه ويني لکن ژر پښې ته لاس وروړي هغه ځوزيا ډېره له پښې څخه لېري کړي، نو پر دې قياس وکړه چي په دماغ کي د ګناه او عصيان فکر پيدا سو چي دا ځوزيا شګه د شيطان لعين د خوا دی، نو چابک دا ځوز له دماغه وباسه په اعوذ بالله من الشيطان الرجيم سره. او دې فکر شيطاني ته دوام مه ورکوه چي نبايد و کولو ته د هغه کار مفضي نسي فافهم هداک الله. او شيطان انسي چي عبارت دی د اهل البدع والاهواء د رئيسانو څخه او يا د فلاسفه د يونان له مشرانو څخه چي هغه يو خو انکار د بعث بعد الموت کوي او د جنت او دوږخ څخه منکر دي او عالم قديم او ابدي بولي، نو د سړي سره په استدلالات عقليه وهميه سره دليل وايي او په هغو دلائلو فاسده سره سړی و خپلو عقائدو فاسده وو ته راجلب کړي. که ته ددې مصداق غوارې هداية الحکمت، صدرا، شمس بازغه او نور کتابونه د علم طبعيت ملاحظه کړه. او بعض رئيسان د معتزله او شيعه ګانو او د نورو ډلو لکه خوارج، روافض وغيرهم بيا خلګ په استدلالاتو فاسده وو سره خپلو مذهبو ته راجلبوي. ولهذا ورد في الحديث النبوي الصحيح ستفترق امتي ثلث وسبعون فرقة کلهم في النار الا الناجية، نو يو چا د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه چي ناجيه کومه ډله ده؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي هغه ډله ده چي په عقائدو کي پر هغه لار روان وي چي زه او زما اصحاب پر هغه روان يو.

**درويش وايي**: چي دې ډلې ته اهل السنة والجماعة وايي چي په فروعاتو کي د دين پر څلور مذهبه تقسيم دی، يعني الحنيفية اتباع ابی حنيفة رحمه الله، او

شافعية اتباع محمد بن ادريس الشافعي رحمه الله، او مالكيه اتباع مالک بن انس رحمه الله، او حنبلية اتباع احمد بن حنبل رحمه الله.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ

اې خلکو (په اکثر استعمال کې د قرآن عزیز له ناس څخه مراد مشرکان دي چې د بعث بعد الموت څخه منکر دي) که چېرې یاست تاسې په شک کې د بعث بعد الموت، یعنې له امکان څخه د هغه او له مقدوریت څخه د هغه. خدای ﷻ لره سوال د دې خلکو په باره کې خدای ﷻ د ان لفظ استعمال کړی چې پر محتمل شیانو داخلېږي مع ان هذه الفرق متيقن الوجود دي لکه مشرکان د مکې، او لفظ د شک یې استعمال کړی سره د دې چې سخت انکار کوي د بعث بعد الموت څخه. حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** تنبیه ده پر بعید والي د وجود د دغسې کسانو كما هو مورد ان الشرطية وبعد الانكار عنه فافهم.

فَإِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن تُرَابٍ

مونږ تاسې پیدا کړي یاست (شامل لمن ولد، او سیولد باعتبار العموم في لفظ الماضي. یعنې تاسې فکر وکړئ په ابتداء د خلق ستاسې تاچې شک په بعث بعد الموت کې به مو زائل سي) له خاورو څخه بخلق ابیکم آدم من تراب وهذا اظهر المعاني. وقيل معناه خلقناكم من الاغذية لکه غنم. اوربشې. انګور. انار وغیرهما چې مخکې یې شنه کوي او د هغو غذاء نطفه پیدا کېږي.

**درویش وایي:** چې القرآن لايحتاج الى مثل هذه التوجيهات البعيدة.

ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ

یعنې له منی څخه د پلار او مور چې په رحم کې د مور سره یو ځای سي (او عیسی مستثنی من هذا) بیا یوه تړېه کلکه وینه سي.

**فائده:** ان کنتم شرط او فانا خلقناكم یې جزاء نه ده، لان خلقهم مقدم على كونهم مرتابين. والقانون النحوي ان الجزاء يتعقب الشرط بلکې دا علت د جزاء محذوفي دی. والتقدير فانظروا الى مبداء خلقكم من كذا وكذا ليزول ريبكم في البعث بعد الموت لان من قدر على البداية قدر على الاعادة كما لايخفى.

**فائده:** په حديث صحيح نبوي كي راغلي دي (ان الله جعل الارض ذلولا تمشون في مناكبها و خلق بني آدم من تراب (بخلق ابيهم آدم من ذالك) ليذلهم بذالك (اى ليختار بنوا آدم الذلة والتواضع كالتراب) فابوا الا نخوة واستكبارا) نو اباء او منع وكړه بني آدم مگر نه د نخوة او تكبر څخه يعني په اعتبار د بعض افرادو وهم المشركون والكفرة الى اخير الحديث.

## ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَّغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ

بيا هغه ټوټه وينه لكه يوه گوله ژوولې غوښه وگرځي

قال ابن عباس رضي الله عنه تامة الخلق (اى الاعضاء) وغير تامة الخلق (اى الاعضاء) وقال مجاهد رحمه الله مصورة وغير مصورة وهو راجع الى تفسير ابن عباس رضي الله عنه، او بعض وايي چي مخلقه هغه ده چي ښځه پر خپل وخت لنگه سي، غير مخلقه داده چي نقصان وكړي بې روح شی څندي پيدا سي.

**تنبه:** اصلي وخت د زيږيدلو د طفل نهه مياشتي دي عند الحنيفية، لكن چي پر شپږ مياشتي پيدا سي بقاء يې ممكنه ده او په تجربه ثابته ده او د غه رنگه پر اووه مياشتي چي پيدا سي ممكن البقاء دى او بقا يې په تجربه ثابته ده او كه په اتمه مياشتي كي پيدا سي د هغه د بقاء اميد نسته، تاريخ وايي چي د اته مياشتي زيږيدلى له وخت څخه د آدم عليه السلام تر اوسه ژوندى نه دى پاته سوى. په آنحضرت صلى الله عليه وسلم كي بعض مؤرخين وايي چي په اته مياشتي كي پيدا سوى دى مگر خرق العادة يې بقاء كړې ده والله اعلم، او بعض علماء وايي چي مخلقة داده چي اعضاء يې ټوله سالم وي هيڅ نقصان او عيب نه وي پكښې، او غير مخلقه هغه ده چي يا يې يوه سترگه مورزاده ړنده وي، يا مورزاده په يوه پښه گوډ وي، يا مورزاده كوڼ وي چي په دې سبب يې ژبه هم گونگى كيږي الى غير ذالك من عيوب الاعضاء.

**يوه سه:** چي په حديث صحيح كي راغلي دي چي د مخه تر نفخ الروح يؤمر الملك المؤكل بالرحم باربع كلمات (اى بكتابة اربع قضايا وكل قضية سميت كلمة) كتب رزقه (اى غني او فقير) واجله (اى مدة حياته في الدنيا) وعمله، وشقي (وهو من وجبت له النار يعني الكفار) او سعيد (وهو من وجبت له الجنة. يعني ولو بعد حين كما في بعض عصات المؤمنين) وهذان هو الرابع.

**فائده:** قدم الشقي لان الاشقيا، وهم الكفار اكثروا وفر، ثم ينفخ فيه الروح الى اخير الحديث.

## لِنُبَيِّنَ لَكُمْ

چي موږ بيان كړو تاسي ته په دغه تدريج د خلق اول د انسان يعني حال د بعث بعد الموت يعني دا دليل وګرځوي پر دي چي قادر پر خلق اول د انسان بهذه الاطوار قادر على اعادته الى الحيوة الثانية يوم القيامة خصوصًا پيدا ئېښت د اول البشر چي آدم عليه السلام له خاورو څخه چي بوى د ژوند په خاورو كي نه وُ بيا هم انسان چي مع القوى البشرية څندي پيدا كړى، يو محقق شاعر وايي:

بعث انسان گرنشد نزدت عيان ....... اول خلقش نگر هذا بيان

هر كه بر ايجاد او قادر بود ....... قدرتش بر بعث او ظاهر شود

اوست خلاقى كه از بعد خزان ....... ميكند پيدا بهار بو ستان

## وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى

الواو للاستيناف مسوق لبيان حالهم بعد تمام خلقهم، او مظهري وايي عطف دى پر انا خلقناكم بتقدير ونحن نقر، تاچي معطوف او معطوف عليه دواړي جمله اسميه سي، ومعنى الآية موږ قرار وركوو دغه حمل ته په رحم كي يعني رحم يې نه غورځوي، دومره زمانه چي زموږ اراده وي د قرار تروخت معين پوري يعني د خروج من الرحم.

**مسئله:** ادنى مده د حمل د خروج شپږ مياشتي ده باتفاق الائمة الاربعة رح كمامر تفصيله، او نهايت مده د وضع الحمل دوه كاله ده عند الامام الاعظم رح واربع سنين عند الشافعي رح وخمس سنين عند مالك رح.

**درويش وايي:** چي هر امام چي مده د وضع الحمل يا څلور يا پينځه كاله بولي په واقعات نادره سره دليل وايي، موږ وايو چي دا نادر واقعات دي جدًا، ولا اعتبار للنادر، وتفصيل الدلائل في كتب الفروع.

## ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا

وروسته تر قرار په ارحام كي د امهات، او وروسته تر تكامل الخلق عند تمام الاجل المسمى رابا سي دى حال كو نه طفلاً فهو حال من الضمير المنصوب في نخرجكم.

**سوال**: ضمیر د کم خو جمع دی او طفلاً مفرد دی فکیف یصح الحالیة؟

**ځواب**: یا په تاویل د کل واحد په ذوالحال کې یا په اراده د جنس له طفل ځکه چې مفرد تثنیه جمع ګرد و ته شامل سي، وما قال المظهري چې طفل مصدر دی فهو یخالف لما قال المولی الفناري في تفسیر الفاتحة ان حد الطفل من اول مایولد یعني چې اوله بغاره وکړي چې د مور له نسه ځخه راووځي چې په عربي یې یستهل صارخا ورته وایي بیا تر شپږ کاله پوري انتهی. ولې له دې عبارت ځخه خو دا معلومېږي چې طفل مصدر نه دی.

**فائده**: طفل په غایت ضعف کې چې خپل مایحتاج الیه نسي پر ځای کولای ثم وثم الی مدة.

## ثُمَّ لِتَبْلُغُوٓا۟ أَشُدَّكُمْ ۖ

وروسته چې ژوندی وي لویېږي کرار کرار حتی چې غایت ته د قوت رسېږي په جسد او په عقل کې او په تمیز کې، په قاموس کې وایي چې د اشد ابتداء د اتلسو کالو ځخه تر دېرشو کالو پوري ده. والمشهور ان زمان الاشد فیما بین الثلثین الی اربعین.

## وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰٓ أَرْذَلِ ٱلْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنۢ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْـًٔا ۚ

او بعض له تاسي ځخه وفات سي بعد بلوغ الاشد او قبله والتوفی الموت. او ستاسي ځخه چې وکړځي یعني غایت سپین ږیری سي. او ارزل یې په دې ورته وویل چې دا ردي عمر دی. والعمر مدة عمارة البدن بالحیاة.

**پوهسه**: چې حرف جر متعلق دی په (یرد) پوري واللام للعاقبة کما قوله لدوا للموت وابنوا للخراب یعني حتی یعود الی الهالة الاولی من الطفولیة من سخافة العقل وقلة الفهم والحفظ حتی ینسی ما علمه وینکر ما عرفه، عکرمه رح وایي ځوک چې قرآن وایي او علم القرآن ورته حاصل وي ارزل العمر نه پر راځي که هر څو ډېر کلان سال سي.

**درېش وایي**: چې الحمدلله زما عمر د (۹۶) کالو په شاو خوا کې دی لکن بیا هم د تفسیر په لیکنه بخت یم.

**حکایت**: حجاج بن یوسف یو ډېر کلان سال سپین ږیري ته وویل چي کاکا یا بابا ولاړ او ناسته دي څرنګه ده؟ هغه ورته وویل چي ولاړېږم زه چي وایم په مځکه پوري ګنډلی یم. او چي کښېنم مځکه دومره لېري سي زه چي وایم له یا منه را کښته کېږم. حجاج ورته وویل چي خوب دي څرنګه دی؟ هغه ورته وویل چي په ځای کي پرېوځم خوب نه راځي او چي په مجلس کي کښېنم بیده سم.

**فائده**: په دې لفظ قرآني کي شیئًا مبالغه ده په کم والي کي د علم دده والا فهو یعلم بعض الاشیاء کالطفل. شیخ سعدي قدس سره وایي:

طرب نوجوانی زپیری مجوی ....... که دګر نیاید آب رفته بجوی

زرع را چون رسد وقت درو ...... نخرامد چنانچه سبزه نو

وقال في مواضع آخر

چو دوران عمر از چهل درګشت ...... مزن دست وپا که آب از سر ګزشت

بسبزی کجا تازه ګردد دلم ....... که سبزی نخواهد دمید از ګلم

تفرج کنان در هوا و هوس ....... ګذشتیم بر خاک بسیار کس

دریغا که فصل جوانی ګذشت ....... بلهو و لعب زندګانی ګذشت

**فائده**: په دې آیت کي دوهم استدلال پر امکان د بعث بعد الموت په دې سره چي پر انسان احوال مختلفه او احوال متضاده راځي په اعتبار د مرور د زمانې د عمر دده کما مر فمن قدر علی ذالک قدر علی البعث بعد الموت ایضًا.

## وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً

او ته وینې اې مخاطب غیر معینه. نو (هامدة) یې حال دی په هر صورت له (ارض) څخه. او یا معنی داده چي ته علم لرې پر مځکه. نو (هامدة) یې مفعول ثاني دی. معنی د هامدة میتة یابسة من النباتات. یقال همدت النار اذا صارت رماداً.

## فَإِذَا أَنزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنبَتَتْ مِن كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ ۝

چي مونږ نازل وو یعني له اسمانو څخه پر هغه مځکه. نو مځکه وښورو یعني یو تخم پکښې را پورته کېږي. نو دا هم حرکت وکړي. او وپړسېږي. نو مځکه راشین کړي هر صنف د نباتاتو (کلمه د من زائده ده او نسبت د انبات و مځکي ته مجاز دی باعتبار

الظاهر والا فالفاعل الحقيقي للانبات هو الله (بهيج) حسن او زیبا، په قاموس کي وايي چي بهجت سرور ته وايي. نو دغو نباتو په ليدلو خلک خوشاله کېږي.

**فائده**: جمله (وتری آه) عطف ده پر (انا خلقنا کم آه) نو دا دریيم دليل دی پر امکان د بعث بعد الموت. او دا دليل خدای جل جلاله په قرآن کريم کي مکرر ځايونه راوړی دی لظهوره وکونه مشاهدًا.

**ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ**

(ذالک، په تاويل د مذکور اشاره ده الی ماذکر من خلق الانسان في اطوار مختلفة چي يو د بله سره ضد دی او و احيا. ته محکي بالنباتات بعد موتها ويبسها) چي خدای ثابت موجود او واجب الوجود خالق کل شئ دی که خدای ج نه وای ممکن له کتم څخه د عدم وعرصه ته وجود نسوای راتلای.

**يو سه**: چي ذالک مبتداء ده خبر يې (بان الله هو الحق) دی.

**وَأَنَّهُ يُحْيِ الْمَوْتٰى وَأَنَّهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝٦**

او خدای ج ژوندي کوي مړي يعني معدوم شيان لکه انسان له نطفې څخه او نباتات له ارض الموات څخه. او په تحقيق خدای جل جلاله پر هر شي قادر دی.

**فائده**: مراد له شي څخه ممکن بالامکان دی فيخرج منه المستحيلات بالذات کشريک الباري واجتماع النقيضين وارتفاعها الی غير ذالک. وايضًا خرج منه واجب الوجود لانه تعالی ليس خالقًا لنفسه کما هو المقرر في کتب علم الکلام.

**تفريع**: خدای پاک چي بعض اموات ته ژوند ورکوي. نو ټولو ته يې هم ورکولای سي وذالک هو البعث. نو ولي کفار مکه وايي من يحی العظام وهي رميم. او ولي يې په محسوس شيانو کي فکر نه دی وهلی لکه دوی ټوله چي د سړي له نطفې څخه خدای ج پيدا کړي دي. کريمه وفي انفسکم افلا تعقلون.

**وَأَنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا**

او په تحقيق سره د خراب د دنيا وخت راتلونکی دی. هيڅ شک نسته په راتلو کي. يعني لمن القی السمع وهو شهيد والا فالمنکرين للساعة او فر کالفلاسفة. نو په دې آيت کي رد دی پر فلاسفه وو چي دوی وايي عالم دنيا ابدي ده.

وَأَنَّ اللهَ يَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُورِ ۝

او خدای ج ژوندي کي هغه څوک چي په قبرو کي دي يعني عند النفخة الثانية.

**فائده:** تخصيص د من في القبور مبني دی پر عرف د عربو چي دوی مړي په قبرو کي ښخوي لکه يهود او نصاری هم داغسي کوي، والا فان الله يحي موتی الهنود الذين يحرقون موتاهم في الدنيا بالنار وكذالک يحي من اكله الذياب وغيرها وحوش البر. وايضا يحي من اكله السماک بعد غرق السفائن.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُجَادِلُ فِي اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتٰبٍ مُّنِيرٍ ۝

او بعض له خلکو څخه هغه څوک دي چي ناحقه بحث کوي په خدای ج کي يعني په صفاتو کي د خدای ج كالقدرة على احياء الموتى.

**پوه سه:** چي روح البيان وايي چي مراد له يجادل څخه ابوجهل دی، دا تخصيص مبني پر دې دی چي ابو جهل ډېر سر سخت دښمن د دين اسلام، قرآن او د عليه الصلوة والسلام ؤ، والا فكفار مكة في وقت نزول هذه السورة كلهم يجادلون في الله.

**فائده:** (من يجادل) مبتداء ده او (من الناس) خبر مقدم دی.

**سوال:** نحات وايي چي محط ده فائده په جمله اسميه کي خو خبر وي. نو په دې اخبار کي څه فائده چي من يجادل في الله د انسان له قسمه دی اذ هو ظاهر لايخفى على احد؟

**ځواب:** ان الفائدة في ذالک الاخبار ان المجادل في الله صرف او صرف د انسانانو له نوع څخه نور پرته تر هغه هيڅ کمال د کمالاتو انسانيه وو نسته پکښي. او علامه تفتازاني رح وايي چي کلمه د من په معنی د بعض ده وهو مبتداء ومن يجادل يې خبر دی وح ء ففائدة الاخبار بالخبر المذكور ظاهرة.

**درويش وايي:** چي علامه تفتازاني رح اول محقق دی چي کلمه د من تبعيضي يې په تاويل د بعض مبتداء ګڼلې ده وقد حققنا ذالک في تفسير سورة البقرة في تفسير قوله تعالى ومن الناس من يقول امنا بالله الآية.

(بغير علم) مراد له علم څخه علم بديهي دی کالواحد نصف الاثنين والكل اعظم من الجزء. (ولا هدًى) له هدًى څخه مراد علم استدلالي نظري دی چي سړي ته

هدایت کوي (ینتجي على الوجه الکامل) کقول المتکلمین، العالم متغیر وکل متغیر حادث فالعالم حادث (ولا کتاب منیر) او نه یو کتاب لري چي مظهر د حق وي له باطله څخه او منزل من جانب الله وي پر هر یوه د مجادلینو.

**بوه سه:** چي د انسان د علم اسباب منحصر دي په دغو درو شیانو کي، وما وراء تلک کقول کفار مکة فهو مکابرة محضة ومجادلة خالصة وعناد وتکبر وتقلید الاباء.

## ثَانِىَ عِطْفِهٖ

حال اخرى من فاعل یجادل (عطف) و جانب ته وایي او انسان لره دوه جانبه دي الیمین والشمال وهو الموضع الذي یعطف (یعني کږیږي او میل کوي انسان په نېږده اعراض له شي څخه، وحاصل المعنى چي دا انسان کافر روی گردانی کوي د مایدعى الیه من التوحید والقرآن والایمان برسالة محمد علیه السلام تکبرًا او د خیاله) کذا قال ابن عطیه وابن زید وابن جریج رحمهم الله.

## لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

غرض دده دا وي چي نور کسان گمراهان کړي له لاري څخه د خدای جل جلاله وهو التوحید والایمان به علیه الصلوة والسلام (لیضل) على صیغة المعلوم من باب الافعال والفاعل هو من یجادل والمفعول محذوف اى غیره واللام للغرض.

## لَهٗ فِى الدُّنْيَا خِزْىٌ

دغه کافر لره په دنیا کي عذاب دی د رسوایي چي یا قتل دی یا حبس، نو د بدر په غزاء کي نضر بن الحارث او عقبه بن ابی معیط ووژل سوه، صبرًا یعني ژوندي یې ونیول او بیا یې قتل کړه، او اوویا کسه د جنګ په حالت کي ووژل سوه، او اوویا کسه یې بندیان سوه. جلال الدین المحلي رح وایي هذه الآیة في ابی جهل حیث قتل في بدر.

**درویش وایي:** چي محلي رح چي د ابو جهل د قتل تخصیص کړی دی لانه اعدى عدو الاسلام فتدبر.

## وَّنُذِيْقُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿٩﴾

او دده به ورکوو (ولیس من ذوق الفم) په ورځ د قیامت العذاب المحرق چي اور د دوږخ دی.

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدٰكَ

**پوښتنه:** چي ذالک په نېز د مظهري رح عذاب د دوږخ دی. او په نېز د روح البيان ذالک اشاره و خزی الدنيا او عذاب النار دواړو ته دی وعلى كل تقدير الآية بتقدير يقال لهم من جانب الملائكة چي دا عذاب په سبب د هغه دی چي دمخه يعني په دنيا کي ستا لاسونو کړي من الكفر والمعاصي.

**فائده:** په عربي ژبه کي لاسونه کنايه ده له ذات څخه د سړي وتخصيص اليدين بالكناية عن ذات الشخص لان اكثر الاعمال الدنياوية يزاول بالايدي، او په پښتو کي هم ورته کنايه سته. يو سړی وايي فلانی کار ماته د خپلو لاسو راپيښ سو.

**فائده:** په يداک کي التفات دی له غيبت څخه و خطاب ته.

وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿١٠﴾

او نه دی خدای ج ظلم کوونکی پر بندګانو چي بې موجب دې په عذاب کړي.

**پوښتنه:** ظلام خو صيغه د مبالغې ده ای الظلم الكثير، او علماء وايي چي نفي چي پر مقيد داخلي سي نفي د قيد کوي، نحو ماجائني زيد راكبًا. نو آيا خدای ج نعوذ بالله يو څه ظلم کوي؟

**ځواب:** مظهري رح وايي چي صيغه د مبالغې يې له جهته څخه د کثرت د عبادو راوړه. يعني چونکه بندګان ډېر دي. نو که خدای ج پر هر يوه ظلم وکړي. نو ظلام به وګرځي. او روح البيان هم ورته توجيه د صيغې د مبالغې کړې ده. لکن محمود آلوسي رح وايي چي له صيغې څخه د مبالغې خو توهم د محال على الله كبري وهو نفس الظلم. او بعض مفسرين وايي چي نفي دي پر ظلم داخل فرض کړل سي او مبالغه دي وروسته تر نفي لحاظ کړل سي فيكون مفاد الكلام المبالغة في النفي لانفي المبالغة حتى يتوهم ومما ذكر. لکن علامه بغداد رح دا توجيه رد کړې ده چي دا تقدم (مثل ان يقال لايظلم الله ابدًا) او تاخر خو علماؤ په قيودو منفصله وو کي روا بللی دی، او صيغه د ظلام د هغه قسم څخه نه ده. لکن روح المعاني او بعض نور مفسرين وايي چي ظلام صيغه د مبالغې نه ده بلکي صيغه د نسبت ای ليس بذي ظلم. او ده زياته کړې ده چي صيغه د نسبت په فاعل وزن پوري خاص نه ده

لکه لابن او تامر. او دا مصرع یې شاهد راوړي ده... ع:
ولیست بذی رمح ولست بنبال .... ای ذی نبل، فتدبر هداک الله.

**وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ**

او بعض له خلکو څخه داسي کسان دي چي عبادت د خدای ﷻ کوي یعني ایمان یې راوړی وي على حرف ای على شک، یعني له اول الامر څخه یې زړه مطمئن بالایمان نه وي.

**پوهسه:** چي حرف په اصل کي طرف ته وایي کحرف الوادي ای طرفه. فالشاک في الدین والمنافق على طرف من المؤمنین المخلصین والکافرین المجاهرین قد یمیل الى هؤلاء وقد یمیل الى هؤلاء، نو دوی لکه هغه څوک چي په وخت کي د جنګ د مسلمانانو د کفارو سره د مسلمانانو د لښکر پر یو طرف ولاړ وي، که په دې پوه سو چي بری د مسلمانانو په برخه دی (قر) نو ثابت ولاړ وي والا فر، یعني چي د مسلمانانو شکست احساس کړي د هغه مخه وتښتي.

**شان نزول:** له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي یو سړی چي به مدیني ته راغلی اسلام به یې راوړی، نو که به یې ماینې نر هلک راوړی او اسپه به یې هم لنګه سوه. نو ده به ویل هذا دین صالح او اسلام ښه دین دی. نو زړه به یې پر اسلام قرار ونیوی، وان لم تلد زوجته ولم تنتج خیله یقول هذا دین سوء. بیرته به ولاړی اسلام به یې پرېښو. فانزل الله تعالى الآیة المتلوة. او بغوي رح وایي چي دا آیت نزل دی په یو قوم کي د اعرابو د بادیه، یعني له صحراء څخه به یې مدیني ته هجرت وکړی ثم ذکر مثل ما قال ابن عباس رضي الله عنهما بزیادة فصح بها جسمه وکثر ماله الى اخیر حدیث ابن عباس رض وهذا معنى قوله تعالى.

**فَاِنْ اَصَابَهٗ خَيْرُ ٱطْمَاَنَّ بِهٖ ۚ وَاِنْ اَصَابَتْهُ فِتْنَةُ ٱنْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهٖ**

نو که به ده ته خیر ورسېدی یعني ما ذکر في حدیث ابن عباس رض نو دی به مطمئن په عبادت د خدای ﷻ او په دین اسلام ؤ، او که به ده ته ورسېدل فتنه یعني ناجوړي یا قلة المال یا به یې ماینې لور راوړه وامثال ذالک، نو به ده د ځان سره ویل یا به یې بل ملګري ته ویل ما اصبت منذ دخلت في هذا الدین الا شراً (زه نه یم رسېدلی چي په

دې دين کې داخل سوی يم مګر نه وشر ته) نو به يې دين پرېښو، کما قال الله تعالى (انقلب على وجهه) پر خپل مخ به وګرځي يعني کفر سابق ته به رد سو.

خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةَ ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۱﴾

تاوان وکړی دغه سړي چي له دين اسلام څخه مرتد سو هم د دنيا تاوان ولي هغه بلا چي وده ته رسېدلې ده هغه خو په ارتداد سره نه دفع کېږي، او دغه رنګه په اسلام سره چي وينه دده او مال دده معصوم او محفوظ و هغه يې هم له لاسه ورکړه او په اخيرت کي يې خلود في النار په نصيب سو. دغه دی ښکاره تاوان، نه هغه تاوان چي تاجران يې په تجارت کي وکړي.

يَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّهٗ وَمَا لَا يَنْفَعُهٗ

دی عبادت کوي (ضمير د يدعوا راجع دی و من ته في قوله تعالى ومن الناس من يجادل آه) د ماسوی له خدای څخه د هغه شي چي عبارت د بتانو څخه دی چي ضرر نه سي رسولای که يې عبادت ونه کړي او نه نفع ور رسولای سي که يې عبادت وکړي.

ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ ﴿۱۲﴾

دغه عبادت د غير الله دی ضلال بعيد له حق څخه چي عبادت د خدای ﷻ دی، دا ضلال مستعار دی من ضل في التية (بيابان) چي سړی به لېري سو د صراط مستقيم څخه.

يَدْعُوْا لَمَنْ ضَرُّهٗٓ اَقْرَبُ مِنْ نَّفْعِهٖ

دی عبادت کوي د هغه چا (پوه سه: چي کلمه د لام زائده ده لان يدعوا متعدي بنفسه دی، او راوړل د الف د يدعوا سره متابعت دی د مصحف عثماني کما لايخفى، والمراد ضر عبادته چي خلود في النار دی يوم القيامة) نژدې ده تر نفع د عبادت د هغه.

**سوال:** په عبادت کي د غير الله خو هيڅ نفع نسته لافي الدنيا ولا في الآخرة فما معنى قرب نفعه؟

**ځواب:** له نفع څخه هغه نفع مراد ده چي تو هم يې عابدين کاوه په عبادت کې د هغه چي تو هم د کافر مشرک دا و چي ددې بتانو په عبادت سره به مونږ و خداى ته وصل سو. کريمه: لانعبدهم الا ليقربنا الى الله: يا تو هم د شفاعت ددوى يې کاو: هؤلاء شفعائنا الى الله. او يا معنى د عبارت داده چي ضره يې اقرب دى تر نفع يعني نفع يې بعيد ده. وهذا على عادت العرب فانهم يقولون لما لايکون موجود اصلاً هذا شيئ بعيد. نو حاصل دادى چي نفع د عبادت بعيد ده يعني موجود اصلاً نه ده کما في قوله ذالک رجع بعيد اذ لا رجع اصلاً. ولما کان نفع صنم بعيد بمعنى انه لانفع فيه اصلاً قيل ضره اقرب من نفعه لان الضر کائن لا محالة والنفع لا احتمال له.

لَبِئْسَ الْمَوْلٰى وَلَبِئْسَ الْعَشِيْرُ ﴿۱۳﴾

هرآئينه بد دى ناصر دده. يعني دده په وهم کي ناصر ګڼل کېدى. وهو المعبود (ولبئس العشير) يعني مصاحب ده وهو الوثن. او يا عشير په معنى د مخالط دى. والعرب يسمى الزوجة عشير الرجل اى المخالطة له وهو الوثن ايضاً.

**پوهسه:** چي لام په دواړه ځايه کي ځواب د قسم مقدر دى. وکلمة اللام جوابية وجملة وجوابه خبر من يعني کافر او مشرک به وايي په ورځ د قيامت برفع صوته وصراخه هغه وخت چي دى خپل ضرر يعني دخول النار په سبب د معبود دده وهو الوثن وويني ولايرى منه اثر مما يتوقعه من المعبود من النفع بالشفاعة او التقرب الى الله. داسي به وايي (والله لبئس الذي اتخذه ناصراً ولبئس الذي يخالطه وهو الوثن لانه ضرر محض. خالي عن النفع باکلية وفي هذا تقبيح جداً ومبالغة في تقبيح حال الصنم والامعان في ذمه.

**درويش وايي:** وهذ الوجه مما اختاره السجاوندي رح وقد اختاره الزمخشري رح ايضاً واختاره صاحب روح المعاني. وقال والمعنى على هذا مما لا اشکال فيه. روح المعاني وروسته نور تاويلات هم راوړي دي او تر تنقيد لاندي يې راوستلي دي. او امام مظهري رح دغه مذکوره احتمال خو يې راوړى دى لکن په قيل قيل سره يې داسي احتمالات راوړي دي چي متعلم لره لوى سبب د اضطراب ګرځي په معنى کي د آيت والله اعلم.



Scanned by CamScanner

**درويش والي:** چي په قرآن كريم كي چي خداى ﷻ سره حال د كافرانو بيان كړي لپاره د انذار د دوى په وروسته كي حال حسن د مؤمنانو بيانوي للبشارة لهم، نو واورئ بنه حال د مؤمنانو.

إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

په تحقيق خداى ﷻ داخلوي هغه كسان چي ايمان يي راوړى وي (يعني بالتوحيد والرسالة والقرآن) او صالحات عملونه يي كړي وي (من المالية والبدنية مطابق د شريعت غراء سره من الفرائض والواجبات وغيرها) جنتو ته چي بهيږي به لاندي تر هغو يعني لاندي تر اشجارو او د قصورو د جنت ويالي. يعني د شيدو خالصو او د اوبو او د عسلو منقى او د شرابو لاغول فيها ولاهم عنها ينزفون كما جاء في موضع آخر من القرآن الكريم.

**بوه سه:** چي د اعمال صالحه په كولو كي پرهيز د منهياتو هم داخل دى. كريمه ان الصلوة تنهى عن الفحشاء والمنكر.

إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ ﴿١٤﴾

په تحقيق الله ج كوي هغه كار چي اراده يي ورته وسي يعني لكه ثواب وركول ومؤمنانو ته چي اهل الصلاح وي، او عقاب وركوي ومشركانو ته او عمومي كافرانو ته لانه تعالى لا دافع ولا مانع لقضائه ولما اراده.

مَن كَانَ يَظُنُّ أَن لَّن يَنصُرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ

كه څوك ګمان لري چي هرګز به خداى ج مرسته نه وكړي د عليه الصلوة والسلام سره.

**سوال:** عليه الصلوة والسلام خو قبلاً نه دى ذكر سوى. نو دا ضمير (به) اضمار قبل الذكر نه دى؟

**ځواب:** عليه الصلوة والسلام له سياق څخه د كلام اظهر من الشمس فهميږي.

**بوه سه:** چي ارجاع د ضمير و عليه الصلوة والسلام ته مذهب دى د ابن عباس رض، كلبي، مقاتل او ضحاك رحمهم الله له تابعينو څخه، او د قتاده، ابن زيد، والسدي واختاره من النحات الفراء والزجاج رح، او دليل سياق د كلام بللى دى كما مر.

**بوه سه:** چي ظن پر خپل ظاهر دی يعني الطرف الغالب المقتضى للمفعولين فالجملة بعده قائم مفعوليه. او بعضي مفسرينو چي ويلي دي الظن بمعنى الوهم فيقتضي مفعولاً واحدًا وهو ان مع صلتها آه فوهم. لان الوهم بعيد عن شان الكافرين لانهم يظنون بل يعتقدون ان دين رسول الله ﷺ ذاهب. ولي چي دوی رسول الله ﷺ رسول د خدای ﷻ نه باله.

(في الدنيا) باعلاء كلمته واظهار دينه ونصره على الاعداء (والآخرة) باعلاء درجته وادخال من صدقه وقبل دينه جنات تجري من تحتها الانهار. او انتقام به خدای پاک واخلي په اخرت کي ممن كذبه بعذاب الحريق ابدًا.

**درويش وايي:** چي بعضي مفسرينو ويلي دي هذا كلام فيه اختصار وبين التقدير بكلام لايحتاج كلام الله اليه فافهم. وراجع الى التفسير المظهري.

## فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ إِلَى السَّمَآءِ ثُمَّ لْيَقْطَعْ

نو دي راوځړوي يوه رسۍ له بامه څخه د خوني. لان كل من علاك فهو سماء. كذا اخرج عبد حميد وابن المنذر عن الضحاك من التابعين (ثم ليقطع) يعني ځان دي خفه کړي چي رسۍ زندۍ کړي وغاړي ته يې واچوي او تر پښو چي شی لاندي کړي هغه پړي وهي چي خفه سي. فسره بذالک ابن عباس ﵄.

**بوه سه:** چي اقطع مشتق دی د قطع څخه اصل يې قطع نفسه بفتحين ثم ترک المفعول يعني نفسه نسيًا منسيًا فصار بمعنى اختنق لازم خنق. ذكر العلماء ان قطع النفس كناية عن الاختناق. او بعض مفسرين وايي ليقطع الحبل بعد الاختناق يعني وروسته تر خپه والي دي رسۍ پړې کړي.

**بوه سه:** چي دا فعل اوس هم بعض کسان کوي چي غم وغصه غلبه پر وکړي.

**فائده:** دا امر تعجيز دی كما يقال للحاسد ان لم ترض فاختنق ومت غيظًا لکه د درويش چي يو حاسد په کتاب فروشانو کي سته چي د درويش پر روان کاروان د علم يې حسد کېږي و هغه ته زه وايم فاختنق ومت غيظًا ان لم ترضى بحال الفقير.

**فائده:** وهذا الامر للتعجيز لان اعداء النبي ﷺ وحساده لم يستطيعوا ان يفعلوا ذالک الاختناق.

**بوه سه**: چي ابن زيد رح وايي چي مراد له سماء څخه سماء الدنيا دی نو معنی داده چي څوک چي په نصرت د خدای ﷻ او په وحي د عليه الصلوة والسلام نه وي راضي هغه رسی کش کړي و اول اسمان ته او د وحي دروازه دي بنده کړي.

**درويش وايي**: چي بغوي رح په خپل سند سره وايي چي دا آيت په قبيله کي د اسد او د غطفان نازل سوی دی چي ددې دوو قبيلو او د يهودانو تر منځ حلف او قرارداد د مرستي ؤ، نو دوی چي عليه الصلوة والسلام و اسلام ته راوبلل، نو دوی په خپل منځ کي مشوره سره وکړه چي موږ بايد وېرېږو چي که موږ اسلام راوړو د محمد ﷺ نصرا و کومک به خدای ﷻ ونه کړي او په سبب د اسلام به زموږ او د يهودو معاهده قطع سي. نو زموږ څخه به غنم او نور خوراکي مواد قطع کړي او د لين دين لار به وتړل سي. فنزلت هذه الآية.

**درويش وايي**: چي مظهري او روح المعاني نور احتمالات هم بيان کړي دي چي د متعلمينو د حال په نظر نيولو سره هغه احتمالات فقير نه راوړل.

**فَلۡيَنظُرۡ هَلۡ يُذۡهِبَنَّ كَيۡدُهُۥ مَا يَغِيظُ**

نو دی دي وګوري چي هغه مذکوره کارونه که دی وکړي غيظ دده به دفع سي، والاستفهام للانکار يعني غيظ يې نه دفع کېږي.

**بوه سه**: چي جمله من کان يظن تر اخيره پوري تاکيد دی لقوله تعالی ان الله يفعل مايريد. وجه التاکيد ان غيظ الحاسد لايدفع ما اراد الله تعالی من نصر رسوله والمؤمنين في الدنيا والآخرة لايدفع احد شيئاً مما ارد الله تعالی فافهم.

**پوښتنه**: څوک چي ځان خفه کړي او مړ سي، نو هغه ته څرنګه ويل کېدای سي فلينظر آه.

**ځواب**: (۱) دا امر تقديري دی يعني دی دي د غسي فرض کړي که زړه دا سي هم وکړم زما غيظ به دفع سي (۲) دی دي د مخه تر اختناق فکر وکړي چي که زه د غسي وکړم زما غيظ به دفع سي. وهذا الجواب والجواب الاول کانهما متحدان والتفاوت بينهما في العبارة فتامل، او روح المعاني وايي چي مامور په نظر سره بل څوک دی چي صالح د نظر وي يعني غير المختنق آه.

**درويش وايي:** چي نو ځرنګه دا صحيح ده چي فاعل د فليبنظر دي غير له فاعل ځخه د فليقطع چي په معنى د مختنق ؤ سره جلا وي والله اعلم بمراده في كتابه.

**وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يُّرِيْدُ ﴿١٦﴾**

اى انزالا مثل ذالک الانزال (يعني مثل انزالنا الآيات الدالة على امكان البعث وحقيقة التوحيد وصدق رسوله العزيز والوعد نبصره كمامر بيانها) (انزلناه) يعني توله قرآن (ايات بينات) اى واضحات الدلالة على صدق الرسول ؑ في جميع مايقول. او خداى ﷻ هدايت كوي هغه چاته چي اراده يې ورته وسي.

**پوه سه:** چي دا جمله محلاً مجرور ده په لام جر سره او عطف ده پر محذوف باندي چي هغه محذوف متعلق دى بقوله انزلناه وتقدير الكلام انزلناه لمصالح جمة ولان يهدى به من يريد. او يثبت الله على الهدى من يريد ثباته على الهدى دائما الى وقت الموت.

**• اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِـِٕيْنَ وَالنَّصٰرٰى وَالْمَجُوْسَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا ۖ اِنَّ اللّٰهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ**

په تحقيق هغه كسان چي ايمان راوړي يعني المؤمنين او هغه كسان چي دين د يهوديت يې مختاره كړي وي او هغه كسان چي د صائبينو په نامه يادېږي.

**پوه سه:** چي د صائبين په باره کي ابن جرير له قتاده رح ځخه روايت كړى دى چي يو قوم دى چي عبادت د ملكو كوي او لمونځونه و كعبې ته كوي او زبور داؤد ؑ خپل كتاب بولي، او په قاموس كي وايي هم قوم يزعمون انهم على دين نوح ؑ او قبله ددوى د شمال طرف ته ده وفي كتاب الملل والنحل للفاضل عبد الكريم الشهرستاني ان الصائبة كانوا على عهد ابراهيم ؑ وكانوا يقولون انا نحتاج في معرفة الله تعالى ومعرفة طاعته وامره وانهيه واحكامه جل شانه الى متوسط روحاني لاجسماني كالرسل الى غير ذالک من خرافاتهم. او نصارى چي تابعان د دين د عيسى ؑ ځان بولي او كتاب يې انجيل دى، او مجوس دا هم يو قوم دى چي عبادت د لمر او د سپوږمۍ او د اور كوي، او بعض وايي چي فقط عبادت د لمر او سپوږمۍ كوي او بعض وايي چي فقط عبادت د اور كوي وهو الاشهر

ويدل عليه ان بيوت النيران للمجوس كثيرة فاول بيت بناه افريدون، بيت فارِ بطوس وآخر بمدينة بخاری باسم بردسون. او بهمن بن اسفنديار يوه خونه د اور په سجستان کي جوړه کړې وه چي اوس دا وطن سيستان بولي او دديٰ خوني نوم کُرکرۀ. او دوی يوه بله خونه د اور لري چي نوم يې کونشه ده په منځ کي د فارس او اصفهان چي کيخسرو جوړه کړې ده الی غير ذالک من بيوت النار، وفي الهند والصين ای چين ايضًا بيوت نار يعبدون فيها النار.

**فائده:** مجوس چي تعظيم او عبادت د اور کوي لوجوه (۱) اور جوهر شريف دی تر ټولو کراتو د عناصر لوړ دی (۲) د اور تعظيم او عبادت دوی له عذاب څخه د اور خلاصوي په ورځ د قيامت. او په دې دوی نه پوهېږي چي دغه عبادت لوی سبب دی د عذاب د جهنم يوم القيامة. او هغه کسان چي خدای ﷻ ته شريک من الاوثان کمشرکی مکة، په تحقيق خدای ج فيصله وکړي په منځ کي د دوی په ورځ د قيامت او محق او مبطل به سره جلا کړي بالجزاء لکل واحد بما يليق به فالمحق يدخله الجنة والمبطل يدخله النار.

إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿١٧﴾

په تحقيق خدای پاک عالم په عواقبو د احوالو د دغو فرقو دی ولايجوز بمقتضى عدله تعالى ان يجعل المسلمين كالمجرمين ولا المحق بمنزلة المبطل مع كمال علمه تعالى بظواهر احوال الكل وبواطنها.

**درويش وايي:** چي دا ؤ بيان د دغو مذكوره ډلو په آيت کي.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَسْجُدُ لَهُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ

آيا ته علم نه لرې (ايها المخاطب يعني النبي ﷺ. وقيل المخاطب كل من يعلم ذالک) دا چي سجده کوي ده لره هغه څوک چي په اسمانو کي دي (يعني ملائکې) او هغه څوک چي په مځکه کي دي، ای الانس والجن يعني المؤمنون منهم.

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير له سجود څخه معنی شرعي مراد ده يعني وضع الجبهة والانف على الارض لقصد العبادة.

**پوښتنه:** کلمه د من خو عام ده مؤمن او کافر دواړو ته شامل دی فما وجه التخصيص بالمؤمن؟

**خواب**: هو ! لكن كافر ځندي خارج دی بكلام مستقل وهو قوله تعالى وكثير حق عليهم العذاب كما سيئاتي.

# وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُومُ وَالْجِبَالُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَآبُّ

او لمر او سپوږمۍ، او ستوري او غرونه او درختي او چارپايان، نو چونكه دا معطوفات د غير ذوى العقول ځنځه وه او حقيقت د عطف خو دا دى چې معطوف او معطوف عليه به سره غير وي، نو له هم دې سببه ځنځه د من في الارض ځنځه ذوى العقول مراد سوه اى المؤمنون منهم كما مر آنفا، او بيضاوي وايي چې كلمه د من يجوز ان تعم ذوى العقل وغيرهم او على التغليب نو پر دې تقدير معطوفات مذكوره هم تر لاندې سوه. فعلى تقدير اراده العموم عطف قوله والشمس آه من قبيل الخاص على العام.

**فائده**: ذكر د شمس او قمر آه مع دخولها تحت كلمة من د دې لپاره دی چې دا مشهور شيان وه او سجده كول يې د دوى بعيده توهم كېدل.

**درويش وايي**: چې پر دې تقدير له سجدې ځنځه معنى متعارف نه ده مراد لانها لاتتصور في المعطوفات المذكورة بلكې مراد ځندې اطاعت اختياري دى محدثين او علماء متقدمين وايي چې جمادات لكه لمر، سپوږمۍ، ستوري، غرونه او حيوانات لاتعقل چې دواب دي كه ځه هم جمادات او اموات دي او لايعقل دي زموږ په عقيده لكن ذوى حيوة ما او پوهنه لري وهي مطيعة طاعة اختيارته لله تعالى، كريمه :قالتا آتينا طائعين، كريمه في وصف الحجارة: وان منها لما يهبط من خشية الله، كريمه وان من شيئ الا يسبح بحمده ولكن لاتفقهون تسبيحهم، وروى الطبراني من حديث ابن مسعود ﷺ قال رسول الله ﷺ ان الجبل ينادى الجبل يا فلان هل مر بك احد يذكر الله، بغوي شافعي المذهب وايي وهذا مذهب حسن موافق لقول اهل السنة، او روح المعاني د عقول متوسطه د حال سره برابر تفسير داسي كړى دى. والمراد بالسجود دخول الاشياء تحت تسخيره تعالى وارادته سبحانه تعالى وقابليتها لما يحدث الله ﷻ فيها چې دې ته سجود تكويني وايي وظاهر كلام الامدي رح انه معنى حقيقي ده للسجود وفي مفردات الراغب السجود في الاصل التطامن والتذلل وجعل ذالک عبارة عن التذلل لله

وعبادته وهو عام في الانسان والحيوان والجماد، او دا سجده دوه قسمه ده سجود بالاختيار ويكون للانسان وبه يستحق الثواب، وسجود بتسخير وتكوين يكون للانسان وغيره من الحيوانات والنباتات والجمادات او په شريعت کي بالركن المعروف من الصلوة وماجرى مجراه من سجود التلاوة وسجود الشكر انتهى قول الراغب. او روح المعاني وجه د تخصيص د شمس او قمر آه داسي بيان کړي ده چي دد غو شيانو عبادت کړل سوي دي يا په اعتبار د شخص يا په اعتبار د نوع من دون الله، نو د لمر عبادت د حمير قبيلې کړي دي او د سپوږمۍ عبادت د کنانه قبيلې کړي دي، او د دبران د ستوري چي د ثوابتو ستورو له جنس څخه دی، او د المرزم ستوري عبادت ربيعه قبيلې کړي دي، او اکثرو عربو د هغو بتانو عبادت کړي دي چي په غرو کي به دوی جوړ کړه په اشکال مختلفه وو سره، او بعض مشرکانو د عربو د بعض درختو عبادت کړي دی، او بعض مشرکانو د بقر (غوايي) عبادت کړي دی.

**درویش وايي:** چي حاصل د کلام دادی چي په دې آيت (والشمس الخ) اشاره ده چي د کفارو معبودات چي ذکر سوه د خدای ﷻ تر تسخير لاندي دي، فکيف تکون معبودات من دون الله بل ثبت بالبرهان المذكور ان من يستحق العبادة بالحق هو الله تعالى كما هو معنى كلمة التوحيد لا اله الا الله.

وَكَثِيرٌ مِّنَ النَّاسِ ۖ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ ۗ

او ډېر له خلکو څخه (دا مبتداء ده موصوف ده يعني په من الناس سره) کثير، تکرار د اول دی لپاره د تاکيد او مبالغه في الكثرة، (حق) پر صيغه د ماضي او د (عليه) ضمير راجع دی و کثير اول ته او دا جمله خبر ده د کثير، ولي چي دوی په ساجدين بالاختيار کي ځانونه نه وه داخل کړي.

**فائده:** دا جمله مخصص د کلمه من ده چي کافران يې څنډي ويستل.

**پوه سه:** چي پر تقدير د اراده له سجدې څخه سجده د تسخير او د تذليل کما اراد الله کثير من الناس مبتدا، خبر يې محذوف دی يعني حق لهم الثواب دل على هذا الخبر خبر قسيمه يعني حق له العذاب لاختيارهم سجود الطاعة بوضع الجبهة على الارض کثير من الناس، نو دا جمله مستانفه ده، وقوله و کثير حق عليه آه

مستانفه اخرى ده يعني لاجل ابائهم عن سجود الطاعة بسبب كفرهم.

**وَمَن يُهِنِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِن مُّكْرِمٍ ۚ إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ ۩ (١٨)**

من مبتدا، ده متضمن معنى لره د شرط ده، او خبريه چي په هغه کي معنى د جزا، هم سته فما له من مكرم دى او عائد و من ته محذوف دى والمعنى من يهنه بالشقاوة اى سپكاوى لايكرمه احد بالسعادة وهذه الجملة الاسمية معطوفة على الاسمية السابقة. ان الله يفعل ما يشاء من الاكرام والاهانة. يعني ان السعادة والشقاوة مختصان بمشية الله تعالى لا احد للتصرف فيهما ابداً.

**هَٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ ۖ**

بيان وتعيين لطرفى الخصام وتحرير لمحله. نو مراد له هذان څخه فريق المؤمنين. وفريق الكفرة چي پنځه قسمه دي كما بينها الله تعالى في الآية السابقة. يعني (١) الذين هادوا (٢) والصائبين (٣) والنصارى (۴) والمجوس (۵) والذين اشركوا. قال العلامة البغدادي رح وروى عن ابن عباس رض ومجاهد، وعطا بن ابى رباح. والحسن. وعاصم، وكلبي رحمهم الله ما يؤيد ذالك.

(اختصموا) په صيغه د جمع چي يې راوړه له دې سببه چي كفار پنځه ډلي دي او د مؤمنانو د ډلي سره شپږ كرځي، او ابن عبلة رح اختصام په صيغه د تثنيه يعني اختصما وايي مراعاة للفظ خصمان، وكلاهما جائز (في ربهم) چي د دوى خصومت دى په شان كي د خداى جل جلاله وقيل في دينه وقيل في ذاته وصفاته وجميع شيونه. او هره فريقه د مؤمنانو او د پنځو فرقو د كافرانو وايي چي زما مذهب حق دى او د مقابل طرف مذهب باطل دى. بخاري او مسلم له ابو ذر رض څخه روايت كړى دى چي دا آيت يعني خصمان اختصموا في ربهم په حمزه، عبيده او علي بن ابى طالب رض كي. او په عتبه، شيبه او وليد بن عتبه من مشركى مكة چي په ورځ د بدر ميدان ته د جنګ راووتل. او قيس رح وايي چي دا آيت په دغو شپږو كسانو كي نازل سوى دى، محمد بن اسحاق صاحب المغازي وايي چي په ورځ د بدر عتبه بن ربيعه واخيه شيبه بن ربيعه وابنه الوليد بن عتبه و ميدان ته د جنګ راوداڅل او پر عليه الصلوة والسلام يې ږغ وكړى چي زموږ د جنګ ميدان ته څوك راواستوه، نو د مؤمنانو له

خوا درې څوانان د انصارو د قبیلې میدان ته ورغله یعني عوف، معاذ و معوذ ﷺ چې زامن وه د حارث او مورېې عفرا، نو مېدله چې دا دوه ورونه وروسته قاتلان د ابو جهل وګرځېدل په دغه غزاء کې د بدر، نو مشرکانو د میدان ورته وویل چې تاسي څوک یاست؟ هغو ورته وویل رهط من الانصار حین انتسبوا اکفاء کرام. کافرانو د میدان ورنارې کړې یا محمد اخرج الینا اکفائنا من قومنا (یعني هغه کسان راولېږه چې زموږ مثل وي زموږ له قوم څخه یعني قریش) فقال رسول الله ﷺ قم یا حمزة بن عبد المطلب قم یا عبیدة بن الحارث و یا علي بن ابي طالب ﷺ، دوی چې میدان ته ورغله مشرکانو ورته وویل چې تاسي څوک یاست، دوی چې خپل ځان ورته معرفي کړی هغو ورته وویل نعم اکفاء کرام عبیده ﷺ چې کلان سال د قوم ؤ د عتبه سره په مبارزه سو او حمزه ﷺ د شیبه سره او علي ﷺ د ولید بن عتبه سره، نو حمزه او علي ﷺ خپل دوه مقابله بلا مهلته قتل کړه او د عبیده ﷺ او د عتبه تر منځ دوه سخت د توري واري یو پر بل وسوه، د عبیده ﷺ پښه پرې سوه او ماغزه څنډي بهېدل، نو حمزه او علي ﷺ چابک په دواړو عتبه قتل کړی، او عبیده ﷺ چې تر اوسه لاژوندی ؤ و علیه الصلوة والسلام ته یې ورساوه، عبیده ﷺ ورته وویل الست شهیدًا، قال ﷺ بلی ثم مات وهو اول شهداء بدر چې تعداد یې و څورلس و ته ورسېدی په وروسته کې.

**سوال:** دا اختصام د بدر څو په ذات کې د خدای ﷻ نه ؤ؟

**څواب:** منشاء د دې جنګ د بدر اختصام په ذات کې د خدای ﷻ ؤ چې مؤمنانو خدای ﷻ واحد لاشریک بالله او مشرکان خپل بتان د خدای ﷻ شریکان بلل فافهم ولا تغفل.

ابن جریر ؒ له ابن عباس ؓ او عبد بن حمید او ابن المنذر او ابن ابي حاتم له قتاده ؒ څخه روایت کړی دی چې دا آیت په مسلمانانو او اهل الکتاب کې نازل دی او مراد له اهل کتابو څخه یهودان دي کما في روایت روح المعاني تخاصمت المؤمنون والیهود، نو یهودانو وویل نحن اولی بالله تعالی ای اقرب الی الله تعالی واقدم منکم کتابًا ونبینا قبل نبیکم، او مؤمنانو به وویل نحن احق بالله تعالی امنا بمحمد ﷺ وآمنا نبیکم وبما انزل الله من کتاب، او تاسي زموږ کتاب او زموږ نبي

پېژني يعني د تورات د لاري يا موږ پرې ايښى دى او منكر ياست عناداً و تكبراً. مظهري رح دا روايت راوړى دى نور هيڅ يې نه دي ويلي. لكن آلوسي رح اعتراض پر كړى دى چي دا خو خصام في الله نه دى بلکي ان ايهما اقرب منه عزوجل. وكم ترى من فرق بين هذا وذالك كالفرق بين المشرق والمغرب. او مجاهد، عطاء بن رباح او كلبي رحمهم الله وايي هم المؤمنون والكافرون من اى ملة كانوا. او بعض اهل تفسير وايي چي اديان شپږ دي في قوله تعالى ان الذين آمنوا الآية. نو پنځه يې د اور برخه ده و واحد للجنة فقوله تعالى هذان خصمان ينصرف الى هؤلاء. فالمؤمنون خصم وباقي الخمسة خصم لان الكفر ملة واحد.

**درويش وايي:** چي مظهري رح په روايت د عكرمه رح داسي هم ويلي دي چي له خصمان څخه مراد جنت او دوږخ دي. وروسته يې حديث د بخاري او مسلم په دي باره كي رانقل كړى دى. لكن روح المعاني وايي: واما ماقيل ان المراد بهذين الخصمين الجنة والنار فلا ينبغي ان يختلف في عدم قبوله خصمان. او ينتطح فيه كبشان انتهى.

## فَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّنْ نَّارٍ ؕ

نو هغه كسان چي كفر يې وكړى (پوه سه: چي دا فيصله ده د اخصتام ددوى كما قال الله تعالى ان الله بينهم يوم القيامة. درويش وايي چي د تعجب خبره داده چي دا آيت په سبب د كلمه د فاء التفريح على ماقبله يعني هذان خصمان آه عطف ده. نو څرنګه به يې مظهري تطبيق كړي پر خصومت د جنت او نار. يعني هغه كسان چي كافران وي يعني الفرق الخمسة) دوى ته به بېل بېل وركړل سي (چي په پښتو وايي وبه بښكستل سي) كالي د اور پر اندازه د قد او قامت ددوى.

**پوښتنه:** اور خو كالي نه دي نو ثياب څرنګه وويل سو؟

**ځواب:** تشبيهًا بالثياب يعني لكه ثياب (كالي) چي پر بدن احاطه كوي دغه رنګه به د اور لمبې په دوږخ كي ددوى پر بدنو احاطه وكړي، سعيد بن جبير رح وايي چي دا جامې د ويلي سوو ميسو څخه دي چي نحاس يې بولي، او تر ټولو معدني شيان چي ګرم كړل سي تر ميسو اشد حرارة نسته.

**فائده:** احمد رح له جويرية رضي الله عنها څخه روايت كړى دى قالت قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من لبس الحرير في الدنيا (يعني من الرجال لان لبس الحرير جائز للنساء) البسه

الله تعالى يوم القيامة ثوبًا من نار. له وهب بن منبه رح څخه روايت چي په اهل نار باندي چي کالي د اور واغوندي لګ والى ددوى لپاره خير. او ژوند ورکړي مرګ ددوى لپاره خير وُ.

**بوه سه:** چي مظهري رح ويلي دي چي البزار او ابن ابى حاتم په صحيح سند سره له انس رض څخه روايت کړى دى قال قال رسول الله ﷺ اول من يكسى حلة من النار ابليس (اول تر ټولو چي په اغوستل کېږي جامه د اور ابليس به وي) چي دا جامه يې تر وروځو پوري وي د سر له خوا او د کښې له خوا پسي کشېږي او اولاد يې ټول له په پسې دي او ابليس نارې وهي يا ثبوراه (اې هلاکه چېرې يې راسه چي دا دي وخت دى) او اولاد يې نارې وهي يا ثبورهم حتى يقفوا على النار، نو خزنه د جهنم ورته وايي لاتدعوا ثبورًا واحدًا وادعوا ثبورًا كثيرًا، يعني د ثبور نارې فائده نه ورته کوي که يې هر څو واره ووايا ست.

## يُصَبُّ مِنْ فَوْقِ رُءُوسِهِمُ الْحَمِيمُ ﴿١٩﴾

تويول کېږي سر بېره پر سرو ددوى حميم چي هغه اوبه ته وايي چي په نهايته درجه کي د حرارت وي.

**بوه سه:** چي دا جمله يا خبر ثاني د (فالذين آه) ده يا حال ده له ضمير څخه د لهم يا جمله مستانفه ده.

## يُصْهَرُ بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ وَالْجُلُودُ ﴿٢٠﴾

چي ويلېږي به په هغه حميم سره چي فوق رؤس يې ورتوى کړي هغه څه چي په نس کي ددوى دي يعني وازګي يا کلمې (والجلود) او پوستکي ددوى يعني په باطن او ظاهر دواړو کي سوخت پيدا سي، وهذه الجملة حال من الحميم.

**پوښتنه:** چي باطن او ظاهر يې دواړه ويلي سي، نو څو مره به سي فيستريح من العذاب؟

**ځواب:** بېرته د غه ټول له شيان وربدلوي هر ګړى، کريمه: كلما نضجت جلودهم، بدلناهم جلودًا غيرها، وهكذا حال ما في بطونهم ان الله على كل شئ قدير.

**سوال**: جلود خو مرفوع دی عطف دی پر ما چي مرفوع محلاً ؤ مفعول مالم يسم فاعله د يصهر ؤ. او د صهر ترجمه ولېدل ده. او سره د دې چي پوستکي خو نه ولېږي په اور سره بلکې کونجلک کېږي کما يدل عليه التجربة؟

**خواب**: بعض مفسرين وايي چي د جلود سره يحرق مقدر دی چي عطف پر يصهر دی. او په تفسير بحر العلوم کي وايي چي دا آيت نه قبيلې څخه د علفتها تبنًا وماءً باردًا يعني اشربتها ماءً باردًا.

**درويش وايي**: و مآل هذا الى الجواب الاول. او بعض مفسرين وايي چي دې تاويلو ته ضرورت نشته، ولې چي احوال د اخيرت بل ډول دي عقل لار نه ورته لري.

**سوال**: او به چي پر سر ور توی کړي خو اول پر پوستکي تو يږي وروسته به يې تاثير و باطن ته رسيږي، نو جلود يې ولې وروسته راوړه؟

**خواب**: قيل لرعاية الفواصل. وقيل التاثير في الظاهر غنى عن البيان وانما ذكر اشارة الى تساويهما وقدم الباطل لانه المقصود الاهم.

## وَلَهُمْ مَّقَامِعُ مِنْ حَدِيْدٍ ﴿٢١﴾

او دوږخيانو لره يعني ددوی د ټکولو لپاره مقامع شته.

**پوهه**: چي مقامع جمع د مقمعة ده. هغه آلې ته د اوسپني وايي چي بل شی سخت په ټکول کېږي چي په عربي يې جرز بولي او په فارسي يې گرز بولي او په پښتو يې سندان يا مارتوږ بولي، په حديث کي د احمد، ابو يعلى، ابن ابی حاتم او حاکم له ابي سعيد الخدري رض څخه په روايت چي رسول الله ﷺ وويل که يوه مقمع د اسپني پر مځکه کښېښول سي او انس او جن پر جمع سي له مځکي به يې نه کړي پورته. او که يو غر په يوه مقمع ووهل سي ټوک ټوک به سي.

**فائده**: قوله (لهم) په حذف د مضاف ای لتعذيبهم. او بعض مفسرين کلمه لام په معنى د على بولي ای عليهم مقامع. ابن ابی حاتم له ابن عباس رض څخه روايت کړی دی په تفسير کي د دې آيت يضربون بالمقامع. نو هر اندام يې جلا جلا واقع سي.

## كُلَّمَآ اَرَادُوْٓا اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ اُعِيْدُوْا فِيْهَا

هر وخت چي اراده وکړي چي له دوږخه ځان وباسي له ډېره غمه او کړيه څخه چي په سبب د سخت اور دوی ته رسيږي.

او دوی ده هم وزي بيرته يي ملكي راوګرځوي لان الاعادة لايكون الا بعد الخروج. والجملة الشرطية اعني كلما ارادوا الى اخيرها، صفت دی للمقامع.

وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ ﴿٢٢﴾

**پوه سه:** چي دا جمله معطوف ده پر اعيدوا بتقدير قيل لهم ذوقوا الخ.

**پوه سه:** چي (حريق) په معنی د نار محرقة البالغة في الاحراق الى غايته. فعيل دی په معنی د فاعل لکه اليم چي په معنی د مولم دی.

**فائده:** زجاج ؒ وايي چي دغه کسان چي ذکر يې تېر سو په وړاندي آيتو کي احد الخصمين ؤ، وقال الله تعالى في بيان الخصم الآخر.

إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

په تحقيق خدای ؒ داخلوي هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي او عمل د صالحات يې کړی وي (يعني موافق د شريعت سره) و جنتو ته چي لاندي تر دوی (يعني تر قصورو د دوی) به بهيږي ويالې يعني ځلور الماء، واللبن، والعسل والخمر.

**فائده:** سوق د کلام د مؤمنانو په باره کي تغيير ورکړی وسوق نسبت د کلام د خصم آخر چي کافران وه، ولي د هغو په باره کي يې داسي وويل (فالذين كفروا آه) او د مؤمنانو په باره کي جمله مؤکد په ان سره راوړه او نسبت د ادخال د دوی خدای پاک ځان ته وکړی لپاره د تعظيم د شان د مؤمنانو.

يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا ۖ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ﴿٢٣﴾

چي دوی ته زېور په لاسو کېږي (دا جمله حال ده له موصول څخه يعني الذين) په جنتو کي د بنګړو له قسم څخه.

**پوه سه:** چي اساور جمع د اسورة ده، او اسور جمع د سوار ده. نو اساور پر صيغه د منتهى الجموع ده، په علم نحو کي وايي چي دا صيغه قائم مقام ده د دوو سببو د عدم انصراف ده، نو ځکه اساور سره د دخول د من جاره په فتح ويل کېږي لان غير المنصرف لايقبل الجر كما تقرر في النحو.

**فائده:** (سوار) په پښتو بنګړي بولي او په فارسي دست برنجن بولي او په اردو يې کنګن بولي.

**پوهه:** چې من اساور صفت د معفول محذوف دی، والتقدير حليًا كائنًا من اساور (من ذهب ولؤلؤًا) دا بيان دی د اساور يعني د سرو زرو.

**فائده:** (لؤلؤًا) په نصب سره عطف دی پر محل د اساور چې محلاً منصوب دی كما هو القانون النحوي من ان الجار والمجرور مفعول بالواسطة وهو قرائة نافع رح وعاصم رح. او نور قاريان لوله لؤلؤ په جر سره وايي عطفًا على ذهب، لكن كتابت د الف په اخير كې تائيد كوي د قرائت د نصب، ولې نحات وايي چې الف په پای كې د اسم منصوب نوشته كېږي لا المرفوع والمجرور كما في رئيت زيدًا لا في جائني زيد ومررت بزيد. قرطبي رح په خپل تفسير كې وايي چې قال المفسرون ليس احد من اهل الجنة الا وفي يده ثلث اسورة. سوار من ذهب وسوار من فضة وسوار من لؤلؤ.

**فائده:** الف د نصب چې په اخير كې لؤلؤًا نوشته دی د علماء اختلاف دی چې په امام كې چې مصحف د عثمان رضي الله عنه هم موجود ؤ او كه نه، فقال الجحدري رح نعم وقال الاصمعي رح لا.

(ولباسهم فيها حرير) عطف دی پر يحلون باندې من عطف الجملة الاسمية على الفعلية كما جوزه اكثر النحاة ومن منع ذالك فعنده هذه الجملة حال من فاعل يحلون. ترجمه: كالي د جنتيانو سر ترپايه په جنت كې ورېښم وي يعني د خالص ورېښمو ځكه به جوړ سوي وي چې په دنيا كې يې اغوستل ونرو ته حرام دي.

الاحاديث الشريفة في باب لبس الحرير: بخاري او مسلم له عمر رضي الله عنه څخه روايت كړی دی قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من لبس الحرير في الدنيا لم يلبسه في الآخرة. وجاء مثله من حديث انس والزبير رضي الله عنهما. او نسائي او حاكم له ابي هريره رح څخه روايت كړی دی چې نبي عليه السلام وويل كه چا واغوستل ورېښم (يعني ورېښمينه جامه) په دنيا كې، لم يلبسه في الآخرة (اى في الجنة) او كه چا شراب وڅښل په دنيا كې لم يشربه في الآخرة يعني في الجنة.

**درويش وايي:** چې دا حديث والسابق واللاحق محمول على عدم التوبة منها والا فالتائب من الذنب كمن لاذنب له، حديث صحيح قريب الى حد الشهرة، ومن

شرب في آنية الذهب والفضة لم يشرب بها في الآخرة، او بخاري او مسلم له حذيفه ﷺ څخه روايت کړی دی. قال سمعت رسول الله ﷺ لاتلبسوا الحرير ولا الديباج. ولاتشربوا في آنية الذهب والفضة ولا تاكلوا في صحافهما (په پياله کي) فانها لهم (اى للكفار) في الدنيا ولكم في الآخرة.

**مسئله**: د ورېښميني جامې اغوستل په دريو ځايه کي روا دي (۱) په غزاء کي ولي چي توره يې ژر نه پرې کوي (۲) چي د سري بدن جرب وي يعني خارش کوي ولي چي ورېښمين کالي دفع د جرب کوي (۳) چي د سړي بدن سپږي کوي، ولي چي ورېښمين کالي سپږي نه کوي. كما ثبت كل ذالک في الاحاديث الصحيحة.

**مسئله**: که د چا پر گرېوان يا لستوڼي يا پر چپنه د ورېښمو کار سوی وي چي عرض يې درې گوتي وي يا کم روا دی، او طول ته يې اعتبار نسته.

**مسئله**: که د چا پر قميص يا چپنه متفرق ځايونه د ورېښمو کار سوی وي چي هريو جلا جلا درې گوتي نه وُ دا متفرقات نه سره جمع کېږي.

**مسئله**: ملبوس عام دی که قميص وي او که لنګ او که لنگوټه وي، ټول ورېښمين حرام دي د نرو لپاره.

**پوښتنه**: د لباس په بيان کي يې جمله اسميه راوړه. داسي يې نه وويل ويلبسون فيها حريرًا. او د حلي په باره کي يې جمله فعليه راوړه يعني يحلون آه، سرو نکته يې څه شي دی؟

**ځواب**: لان ثبوت اللباس امر محقق اذ لايمكن العراء عنه حتى في الدنيا، بلکي حاجت ورته دی چي لباس د جنتيانو د کوم نوع لباس څخه دی. ولهذا جعل اللباس مبتداء وحرير خبره لان محط الفائدة هو الخبر كما تقرر في النحو، بخلاف التحلية يعني زېور پوشيدن فانها ليست من اللوازم الضرورية لاهل الجنة فلهذا جعل بيان الحلية مقصودًا بالذات في قوله تعالى ويحلون فيها آه، او دا هم نکته ده په تقديم بيان د تحليه پر بيان د حال د لباس. اوس هم په بيان کي د حال د اهل جنت د کالو. عن كعب بن مالک ؓ لو ان ثوبًا من ثياب اهل الجنة لبس في الدنيا لصعق (بېهوشه به سي) من ينظر اليه، وما حملته ابصارهم (ستر کي يې تحمل د ليدلو نسي کولای) واخرج مسلم عن ابي هريرة ؓ عن النبي ﷺ قال من

يدخل الجنة فنعم فيها لايبأس ولا تبلى ثيابه ولا يفنى شبابه.

**وَهُدُوٓا إِلَى ٱلطَّيِّبِ مِنَ ٱلْقَوْلِ**

او دوی یعني جنتیانو ته به هدایت وکړل سي یعني الهام به ورکړل سي په جنت کي د یو طیب او پاکیزه قول ته وهو قولهم الحمد لله الذي صدقنا وعده واورثنا الجنة، وهذا هو المروي عن ابن عباس رض. او بعض علماء وايي چي داغه کلمات خو دي نوري د جنتیانو تر منځ چي خبري اتري کېږي هم به طیب وي.

**سوال**: د جنت طیب قول خو تر اوسه نه دی واقع سوی، او هدوا ماضي صیغه ده؟

**ځواب**: بعض مفسران وايي چي ماضي په معنی د مستقبل ده.

**درویش وايي**: چي دا ځواب ضعیف دی لانه یقطع الاحتمالات الآخر کما سیأتي بل الحق ان الامر المستقبل المتیقن الوقوع کالماضي، او بعض مفسران ماضي پر خپل حال بولي او دا هدایت په دنیا کي بولي، نو طیب قول د دنیا لا اله الا الله دی، وفي بعض الروايات ذالک مع زیادة والحمد لله وفي رواية ابن زيد والله اكبر ايضاً. او سدي رح وايي چي طیب قول قرآن مبارک دی و حکی الماوردي هو الامر بالمعروف والنهي عن المنكر دی. وقیل مایعم ذالک وسائر الاذکار والله اعلم.

**الاعراب**: هدوا چونکه ماضي ده او په قانون نحوي ماضي چي حال واقع کېږي لفظ د قد یا مذکور یا مقدر غواړي، نو دا جمله په تقدیر د قد حال ده له هغه موصول څخه چي مفعول یدخل ؤ في قوله تعالی ان الله یدخل الذین آمنوا.

**وَهُدُوٓا إِلَىٰ صِرَٰطِ ٱلْحَمِيدِ ﴿٢٤﴾**

که د دنیا حال بیانول وي، نو معنی د آیت داسي ده قد هدوا في الدنیا ولاري ته د حمید چي د خدای ﷻ نوم دی چي د هغه لارد اسلام لار ده، والمعنی الحمید المستحق للحمد لذاته وان لم یحمده احد، او که چېري مراد په آیت کي حال د جنتیانو وي، نو معنی د آیت داسي ده چي دوی ته هدایت وکړل سوی دی و جنت ته یعني مرد له صراط څخه جنت دی.

**سوال**: جنت ته لار څرنګه وويل سول؟

**ځواب**: له دې سببه چي جنت لار ده د فوز بما لاعین رئت ولا اذن سمعت ولا

خطر على قلب بشر كما جاء في الحديث النبوي. او مراد له حميد ځخه پر دې تقدير هم خداى پاک دی. ولي چي جنت د خداى ﷻ جوړ كړې كور دى د مؤمنانو لپاره. او يا اضافت د موصوف وصفت ته دى يعني هغه جنت چي محمود دى يعني مقام محمود دى.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

په تحقيق هغه كسان چي كفر كوي او منع كوي له لاري ځخه د خداى ﷻ (يعني له اسلام ځخه او مفعول محذوف دى يعني هر څوک چي وي تنبيهًا على العموم)

**پوښتنه**: يصدون څو معطوف دى پر كفروا چي ماضي ده، او يصدون مضارع ده. وفي هذا العطف بشاعة عند النحاة؟

**ځواب**: مراد له مضارع ځخه نه حال دى او نه استقبال بلكې استمرار د صد دى فيشمل الماضي ايضًا فحسن العطف المذكور ونظيره فلان يعطى ويمنع اى هذا عادته المستمرة (والمسجد الحرام) عطف دى پر (عن سبيل الله) باندي والمعنى يمنع الناس عن المسجد الحرام.

**پوښتنه**: چي مراد له مسجد حرام ځخه المسجد خاصة دى عند الشافعي رح، وعند الامام الاعظم رح الحرم كله، وحدود الحرم ممتد من كل جانب الى اميال فالمسجد بعض الحرم، والدليل عليه قوله تعالى (سبحان الذي اسرى بعبده ليلاً من المسجد الحرام مع ان الاسراء ليلة المعراج من بيت ام هاني بن ابى طالب، و بيت هاني خارجة عن المسجد، نعم هو داخل في الحرم، فهذا الاطلاق من قبيل ذكر الجزء وارادة الكل، ووجه ذالک ان الغرض من تعمير مكة اقامة الصلوة كما قال الله تعالى حكاية عن قول ابراهيم ؑ رَّبَّنَآ إِنِّىٓ أَسْكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِى (يعني اسماعيل ؑ مع امه هاجرة) بِوَادٍ غَيْرِ ذِى زَرْعٍ (اى وادي مكة) عِندَ بَيْتِكَ ٱلْمُحَرَّمِ (اى قريبًا منه) رَبَّنَا لِيُقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ﴿٣٧﴾ الآية، ومعلوم ان الصلوة تكون بالمسجد، مفسرين وايي چي امام شافعي رح د خپل قول سابق ځخه رجوع كړې ده حيث قال في تفسير قوله تعالى (انما المشركون نجس فلا يقربوا المسجد

الحرام بعد عامهم هذا الخ، چې مراد دادی چې کفار ممنوع الدخول دي د ټولو داخل حدود الحرم څخه مطلقًا لاعن دخول المسجد فقط فافهم، وهذه الآية على ماروى عن ابن عباس رض نزلت في ابى سفيان والمشركين من اهل مكة، ولې چې دوی منع کړی علیه الصلوة والسلام واصحابه رض چې څورلس سوه یا پنځلس سوه کسه وه چې په نیت د عمرې احرام بنده روان وه د حدیبیه په مقام کې له دخول څخه د مکې، او علیه الصلوة والسلام دا نه غوښتل چې ددوی سره دې جنګ وکړي لکونه واصحابه محرمين بالعمرة، اخير الامر يې صلح پر دې وکړه چې سږ کال به تاسي بيرته ځی حتی پر ائينده کال به موږ تاسي ته د دخول د مکې اجازت د ذوالقعدة په مياشتې کې درې ورځي درکوو، نو مجبوراً علیه الصلوة والسلام او صحابه کرامو رض ځانونه په حديبيه کې حلال کړل او د مدينې پر خوا رهي سول.

## الَّذِي جَعَلْنٰهُ لِلنَّاسِ سَوَآءً ۨالْعَاكِفُ فِيْهِ وَالْبَادِ ۚ

الذي صفت دی د مسجد حرام يعني هسې مسجد حرام چې ګرځولی دی موږ د خلکو لپاره چې برابر دی په هغه کې مقيم او مسافر.

**الاعراب:** (سواء) په رفع سره خبر دی، او مبتداء يې (العاكف) ده، قدم الخبر عليه، او يا سواء من قبيل الصفة اى مستو مبتداء قسم ثاني ده او عاكف يې فاعل دی كما تقرر في علم النحو يعني المبتداء قسمان وتفصيله في الكافية وشروحها، والجملة مفعول ثاني ده د جعلناه، او للناس حال دی له ضمير څخه د جعلناه يعني من الهاء، والتقدير جعلناه كائنا للناس.

**درويش وايي:** چې دا آيت دليل ددې دی چې مراد له مسجد حرام څخه ټوله مکه ده لان الاقامة لاتكون في نفس المسجد بل في الدور.

**معذرة:** ددې آيت په تفصيل کې مظهري، روح المعاني، تفسير كبير بلکې تقريبًا ټولو مفسرينو ډېر طويل بحث پر لار اچولی دی او اختلافات د ائمة الاربعة يې ذکر کړي دي په باره کې د ځمکو د مکې مکرمې چې بيع يې روا ده او که نه، او يا يې اجاره روا ده او که نه، په دې باره کې احاديث د هر مذهب ذکر کړي دي لکن چونکه دا مسئله په کتابو کې د فقه په تفصيل سره ذکر سوې ده، او د تفسير ايوبي د متعلمينو لپاره بېله حيرت او درد سره هيڅ فائده نه لري، نو ځکه مو له طويل

بحث څخه لمن د بحث راټوله کړه. او که څوک تفصيل د فوق الذکر مسئلې غواړي کتابونه د فروع دې مطالعه کړي. والعذر مقبول عند کرام الناس.

## وَمَنْ يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ بِظُلْمٍ

که څوک اراده وکړي په مسجد حرام کې. سواء کان المراد منه المسجد او الحرم کله على اختلاف القولين کما مر.

**بوه سه:** چې بعض مفسرين وايي چې (الحاد) منصوب دی محلاً وان کان مجرور لفظًا. والباء زائدة. نو الحاد مفعول به د يرد دی. روح المعاني او مظهري پر زيادت د با دا قول د اعمش دليل ګرځولی دی .. ع: ضمنت برزق عيالنا ارماحنا فالباء زائدة. والتقدير ضمنت رزق عيالنا لان ضمنت متعدي بنفسه دی. او فاعل د ضمنت ارماحنا دی چې جمع د رمح ده په معنی د نېزې ده. يعني زامن د رزق د عيال زموږ نېزې دي. او بظلم ظرف لغو متعلق په يرد پورې دی. يا ظرف مستقر دی صفت د الحاد دی. الحادًا متلبسًا بظلم. روح المعاني وايي د يرد مفعول يې نه راوړی ليتناول کل متناول اى من يرد فيه شيئًا ما او مرادًا ما. او ابن عطيه وايي چې مفعول يې ناس دی اى من يرد فيه الناس. ومعنى الالحاد العدول عن القصد والطريق المستقيم. والمعنى ارتکب فيه منهيًا عنه ولو شتم خادم. نو بالحاد او بظلم حالان مترادفان او الثاني بدل من الاول من الثاني باعادة الجار اى يلحد بسبب الظلم. کالاشراک واقتراف الآثام قولاً کان او فعلاً. کذا في روح المعاني والمظهري.

## نُذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢٥﴾

موږ به په ده وڅکو يعني وربه کړو عذاب مؤلم يعني درد دهنده. وفي حديث البخاري عن ابن عباس رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ابغض الناس الى الله ثلثة. ملحد في الحرم. ومتبع في الاسلام سنة الجاهلية. ومطلب دم امرء بغير حق ليريقه.

**بوه سه:** چې له دې حديث څخه دا معلومه سوه چې الحاد په حرم کې حرام دی که مسجد وي او که غير له مسجد څخه. مجاهد رح وايي تضاعف السيئات بمکة کما تضاعف الحسنات فيها. او عطاء رح وايي چې مراد د الحاد في الحرم کې دخول د حرم دی بېله احرامه وارتکاب شئ من محظورات الاحرام من قتل صيد او قطع شجرة.

**درويش وايي**: والتعميم في الالحاد اولى بالارادة ليشمل الكل من السيئات

حدود الحرم:

وللحرم التحديد من ارض طيبة ...... ثلاثة اميال اذا رمت اتقانه
وسبعة اميال عراق وطائف ..... وجدة عشر ثم تسع جعرانة
ومن يمن سبع بتقديم سينه ..... وقد كملت فاشكر لربك احسانه

روى ان الامام الاعظم رحمه الله كان ياتي من بغداد مع بعض اصحابه كل عام للحج حتى تم له حجج كثيرة او هر وار چي ده به اركان د حج يعني افعال د حج من الفرائض والواجبات والسنن پر ځای کړه، شاګردانو ته به يې وويل چي درځی چي خو وطن ته، شاګردانو به ورته وويل چي ځو ورځو به نوري تېري کړو نفلي طوافونه او نفلي عمرې به وکړو، امام اعظم رح به ورته وويل، نوافل د مکې که مضاعف دي اما سيئات ولو كانت صغيرة يې هم مضاعف کبېري انتهى قوله الشريف.

**درويش وايي**: چي ددې تائيد کوي هغه قول د علماؤ چي په ماسوى كه د حرم كه سړى قصد د ګناه وکړي تر هغو نه نيول کېږي چي عمل يې ونه کړي. او كه يو سړى چي په حرم کي وي قصد د وژلو د يو چا وکړي چي هغه په عدن کي وي يا په بل لېري وطن کي اذاقه الله بعذاب اليم (يعني الا ان يتوب كما قال السدي رح)

## وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ

(واذ) اى اذكر لهؤلاء الكفرة اى مشركى مكة الذين يصدون عن سبيل الله والمسجد الحرام) وقت جعلنا مكان البيت مباءة اى مرجعًا لجدهم ابراهيم يرجع اليه للعمارة والعبادة او مظهري رح وايي اى عيناله. او زجاج رح وايي اى بيناله مكان البيت ليبينه ويكون مباءة يعني ځاى د رجوع له ولعقبه (يعني پس مانده ګانو ته) يرجعون اليه ويحجونه. والاول مروي عن ابن عباس رض.

**سوال**: د ذکر له وخت څخه اصل مراد خو هغه حوادث دي چي په دې دنيا کي رونما سوي وي. نو ذکر د وخت يې څه فائده؟

**ځواب**: چونکه وخت ظرف دى د حوادثو، نو ذکر او پيادول د وخت يادولو لره د هغو حوادثو مستلزم دى، اصل لغوي معنى د بيت چي انسان د شپې هغه ځاى ته ورځي وروسته اعتبار دليل څخه ساقط سو او جمع د بيت ابيات او بيوت

راځي لکن په عرف کي البيوت په مسکن پوري خاص دي. والابيات بالاشعار.

**بوه سه**: چي بيت د ډبرو يا د اومو خښتو يا د لوټو يا د پسو د وريو يا د اوښ د وريو يا د بزو د اجغونو وي، نو مراد له بيت څخه په دې آيت کي بيت الله ﷻ ده يعني الكعبة المكرمة.

**بوه سه**: چي تاريخ قديم وايي چي كعبة مباركه پنځه واره جوړه سوې ده (۱) بناء د ملائكو عليهم السلام قبل آدم ؑ وكانت من ياقوتة حمراء، بيا دا بناء په وخت كي د طوفان نوح و اسمان ته پورته سوه (۲) بناء د ابراهيم عليه السلام. راويان وايي چي خداى چي ابراهيم ؑ امر كړى په بناء د بيت الله الشريف، ابراهيم ؑ ته نه معلومېدل چي چېري يې جوړه كړم، نو خداى پاک يو باد پيدا كړى چي د حجوج په نامه يادېږي چي پر مكان كعبة الله سره ځرخېدى او خاوري يې پاشلي يوې او بلي خوا ته حتى چي هغه قديم تاداى يعني اساس يې ښكاره كړى، پر هغه تاداى ابراهيم ؑ د كعبة الله الشريف بناء وكړه (۳) بناء د قريشو په جاهليت كي هغه وخت چي دوى چنده جمع كړې وه پر اساس ابراهيم ؑ كعبة الله نه پوره كېدل، نو دوى د حطيم پر خوا شپږ ګزه كعبه كمه كړه او دېوال يې تېر كړى، نو د حطيم معنى محطوم ده يعني چي د كعبې څخه قطع سوى دى او نور دري دېوالونه د كعبې يې پر اساس ابراهيمي بناء كړه، لهذا مسئله داده كه سړى په طواف كي په حطيم كي تېر سي طواف يې نه دى صحيح بلكي وراء الحطيم به تېرېږي.

**فائده**: علماء وايي چي كه څوک اراده لري چي په بيت الله كي نفل وكړم متصل له دېوال سره د كعبې مباركې دې نفل وكړي ولي چي دا ځاى جزء د كعبې ؤ.

**پوښتنه**: د حطيم شكل بايد مربع واى ☐ او سره ددې چي د حطيم شكل داسې ◯ دى؟

**ځواب**: چونكه شپږ ګزه وه هاخوا ته بعض قبرونه وه، والله اعلم لمن كانت تلک القبور، نو قريشو هغه قبور هم پكښې داخل كړه، نو شكل د حطيم كمان وګرځېدى، او هم دا سر دى چي د كعبې په يو كونج كي چي حجر اسود دى خلک يې مسح كوي، او په بل كونج كي چي ركن يماني دى بعض اهل مذهب والايې مسح كوي، او د حطيم و خوا ته كونجيان هيڅ څوک نه مسح كوي، ولي چي دا

کونجان اصلي کونجان د مکې نه دي کمامر. د قریشو د بناء په وخت کي علیه الصلوة والسلام هم شامل او حاضرؤ، ځوان ؤ پنځلس کاله تر بعثت دمخه ؤ.

**فائده**: قریشو چي کعبه جوړول حجر اسود یې یو ځای خوندي ایښې وه، ځو وخت چي کبعه تکمیل سوه او د حجر اسود غار پاته ؤ، نو چي نوبت د حجر اسود د راخستلو او په خپل ځای کي د ایښودلو ورسېدی. د قریشو د قبائلو په دې کي نزاع سوه چي کومه قبیله حجر اسود په خپل ځای کي ایږدي حتی چي نژدې ودې ته سوه چي قتل وقتال شروع کړي، اخیر مشرانو د قبائلو پر دې اتفاق وکړی چي هر سړی چي پر باب سلام راغلی د هري قبیلې څخه چي وي حجر اسود به په خپل ځای کي ایږدي، نو ناګاه سرور کائنات محمد مصطفی ﷺ اول سړی چي پر دروازه د باب سلام وارد حرم سو د خلګو چکچکي سوې چي خیر سوه امین مکه راغلی، چي خلګو د مکې دمخه تر نبوت علیه الصلوة والسلام په دغه پاک نامه باله، خلګو موضوع و علیه الصلوة والسلام ته وړاندي کړه. د علیه الصلوة والسلام عقل نوراني وویل چي تاسي یو شړی، چي مرط یې بلل راوړی او اواره یې کړه د حجر اسود د ځای سره او د ټولو قبائلو یو یو نفر دي پر دې شړی سره راجمع سي یعني چي ټوله قبائل حصه پکښي واخلي. قریشو همداغسي وکړه او ډېر خوشاله هم سوه. علیه الصلوة والسلام حجر اسود پر شړی کېښېښول خلګو ته یې وویل چي دروایه خلی، علیه الصلوة والسلام پیاده ورسره روان ؤ چي د حجر اسود ځای ته ورسېدل صرف علیه الصلوة والسلام حجر اسود له شړی څخه پر خپل ځای کېښېښول او قبائل د قریشو یې په خوشالی سره له جنګ وجدال خلاص کړه.

**درویش وایي**: چي دا ؤ کامل عقل د آنحضرت ﷺ، د تعجب وړ خبره خو دا ده چي تر وړمخه پوري د رسالت د دعوې قریشو علیه الصلوة والسلام امین مکه باله یعني د محمد په نامه یې نه باله، څه وخت چي د څلوېښتو کالو پر عمر علیه الصلوة والسلام نبي سو او وحي پر نازلي سوې او د لا اله الا الله محمد رسول الله اعلان یې وکړی، هغه قبائل وه چي علیه الصلوة والسلام به یې کاهي کاهن باله کاهي شاعر او کاهي مفتر یعلمه البشر باله. او کاهي به یې مجنون باله او په قسم قسم ازار د علیه الصلوة والسلام یې لاسونه پوري کړه (ومن یضلل الله فما له من هاد)

(۴) او څلورم وار بناء د کعبة الله عبدالله بن الزبير ﷺ چي د ابوبکر صدیق ﷺ د لور بي بي اسماء ﷺ چي د ام المؤمنین عائشة ﷺ خور وه زوی ؤ.

**پوښتنه**: د دې بناء سبب څه ؤ؟

**ځواب**: د بخاري د روایت سره سم څه وخت چي علیه الصلوة والسلام مکه مکرمه فتح کړه، نو سیدتنا عائشة ﷺ ته یې وویل که ستا قوم له کفر څخه تازه مسلمان سوی نه وای ما به مکه یعني کعبه نړولې وای او دوې دروازې به مې ورکړي وای یوه شرقي او بله غربي چي په یوه زائرین ورننوتلای او پر بله راوتلای او دروازه به مې په مځکه پوري کړې وای.

**نکته**: دا خبره علیه الصلوة والسلام د دې لپاره وکړه چي که زه دا غسي وکړم دا نو مسلم قریش به مرتد سي. وایي به چي زموږ د پلرو او نیکه ګانو خونه یې راونړول. او علیه الصلوة والسلام وویل چي شپږ ګزه حطیم به مې هم په کعبه کي داخل کړی وای، بي بي عائشي ﷺ دا خبره خپل خوریي عبدالله بن زبیر ﷺ ته وکړه. نو څه وخت چي دوره د خلفاء راشدینو ﷺ و پای ته ورسېدل او د معاویه ﷺ دوره د خلافت هم پر پوره کېدو وه، ده خپل زوی یزید خپل جای نشین وګرځاوه چي اهل عراق او شام وغیره هم ټولو بیعت ورسره وکړی الا اهل مکة، اهل مکه د عبدالله بن الزبیر ﷺ سره بعیت وکړی، عبدالله بن الزبیر ﷺ په اولین خلافت کي کعبه مبارکه ونړول او پر هغه نقشه چي علیه الصلوة والسلام یې تمنّٰی درلوده جوړه کړه کمامر

(۵) پنځمه بناء یې د حجاج بن یوسف ده، وهو الموجود الیوم.

**پوښتنه**: د دې بناء سبب څه ؤ؟

**ځواب**: یزید پلید چي خبر سو چي اهل مکه د عبدالله بن الزبیر ﷺ سره بیعت وکړی، نو درانه فوجونه د شام، مصر، عراق وغیره څخه په مشری د حجاج بن یوسف اظلم عباد الله د مکې وخوا ته راهي ګړل. فوجونه چي مکې ته رانژدې سوه او اهل مکه یې د مقابلې توان او طاقت نه درلودی، ټوله د مکې ښار یې خالي کړی په نژدې او لیري غرو کي یې پناه ونیول او عبدالله بن الزبیر ﷺ په حرم شریف کي پناه ونیول. حجاج بن یوسف چي راغلی پر جبل ابی قبیس یې منجنیق ورته ودراوه او عسکر یې امر کړه چي کعبة الله په منجنیق ولئ، عسکرو منع وکړه، نو

حجاج په خپله لیښي راوغبنتلې او په منجنیق یې کعبه مبارکه ویشتل هر وار چې به یې کعبه مبارکه وویشتل اور به یې تر اسمانه ورسېدی لکن ده غلیظ القلب باک نه په کاوه خو چې کعبه مبارکه یې له بېخه ونړول او خلګ یعني مسلمانان چې په حرم کې یې پناه اخستې وه هغو هم ځان پټ کړی. حجاج بن یوسف مسجد الحرام ته ورداخل سو او عبدالله بن الزبیر ﷺ یې ګرفتار کړی او حکم یې وکړی چې د زمزم د څاه د غاړې سره په چاړه قتل سي. راویان وایي چې په دغه وخت کې د عبدالله بن الزبیر ﷺ مور بي بي اسماء ﷺ ژوندۍ وه چې عمر یې تخمیناً سل کاله ته رسېدی دا چې خبره سوه چې زوی مې نن حلالېږي. لکړه یې راواخستل د حرم و خواته را روانه سوه دا چې را غله زوی یې وچاړې ته لاس ترلی پروت ؤ. څه وخت چې ذابح دده پر غاړه چاړه کش کړه او د وینو تویدل یې مور ولیدل. نو سمدستي حیض هم ورغلی او تر تیو یې شیدې وبهېدلې. نو دې دا قدر وویل چې زویه هغه چې ته اولاً پکښې ژوندی سوی یې (تعني الرحم) هغه دړیسي وژړل. او هغه تیو چې تا شیدې خندې رودلې هغو هم دړیسي وژړل. زه نو نه دړیسي ژاړم. انا لله وانا الیه راجعون یې ووایه کور ته راهي سوه. وروسته چې حجاج بن یوسف د عبدالله بن الزبیر ﷺ جوړه کړې کعبه رنګه کړه، نو یې بیرته د جاهلیت پر نقشه جوړه کړه چې دا اوس هم ولاړه کعبه بناء د حجاج بن یوسف ده.

**سوال:** جواب طلب سوال: وروسته خو نور عادلان صالحان بادشاهان راغلي دي. نو په هغو کې ولې د عبدالله بن الزبیر ﷺ نقشه چې د علیه الصلوة والسلام تمنّی هم وه نه کړه تجدید؟

**ځواب:** راویان وایي چې عمر بن عبدالعزیز ﷺ چې د مرواني قبیلې پر سر قدرت سو چې ضرب المثل ؤ په عدالت کې. نو ده دا وغوښتل چې کعبه د عبدالله بن الزبیر ﷺ پر نقشه جوړه کړي. نو علماء یې د مشورې لپاره راغونډ کړه. علماؤ ورته وویل چې د خدای ﷻ بیته د سیاست هدف مه ګرځوئ چې یو به یې پر یو دول بناء کوي بل سلطان چې راسي هغه به یې پر بل هیئت جوړوي. پرېږده پر داغه هیئت د حجاج بن یوسف. ولې چې بیت الله خپله شرافت ذاتي دی په باني پورې تعلق نه لري. نو پر هغه بناء د حجاج بن یوسف تر اوسه پاته ده.

**فائده:** فقير وويل چې حجاج بن يوسف په ظلم کې ضرب المثل ؤ، او عمر بن عبد العزيز رحمه الله په عدالت کې ضرب المثل دی. دليل يې دادی چې عرب وايي کله تولي نړی د ظالمانو ظلم په ورځ د قيامت په يوه پله کې د ترازو کښېښول شي او د حجاج بن يوسف ظلم په بله پله کې. نو دده ظلم پر دروند دی. او د عمر بن عبد العزيز رحمه الله په عدالت کې وايي. که د دنيا د عادلانو عدل په يوه پله کې کښېښول شي او د عمر بن عبد العزيز رحمه الله عدل په بله پله کې. نو دده عدل به پر راجح وي.

**درويش وايي:** چې دا خبره مبالغه ده په ظلم کې د حجاج بن يوسف او د عدالت د عمر بن عبد العزيز رحمه الله. حتی چې بعض علماء وايي چې خلفاء راشدين پنځه دي، يعني عمر بن عبد العزيز رحمه الله هم په خلفاء راشدينو کې شمار دی.

تاريخ قديم د کعبې مبارکې وايي چې ارتفاع د کعبې د اسمان پر خوا (۲۷) گزه ده چې هر گز يې (۲۵) مضمومه گوتې دي، او طول د کعبې پر مخکه له رکن يماني څخه تر حجر اسود پورې (۲۵) گزه دی. وکذا مابين الرکن اليماني والرکن الغربي (۲۵) گزه دی. او عرض يې له رکن يماني څخه نيولې تر حجر اسود پورې شل گزه دی. او د کعبې د دروازې طول شپږ گزه او لس گوتې دی او عرض يې څلور گزه دی. او دروازه د کعبې په شرقي ديوال کې د کعبې ده. د کعبې دروازه د ساج د لرگي څخه ده چې يو قيمتي لرگی دی د سپينو زرو صفائحو پر ميخ سوي دي، او د دروازې د چارچوب ارتفاع د مځکې څخه څلور گزه او درې گوتې ده. او ميزاب الرحمة په منځ کې د ديوال د حطيم له خوا څخه ده، او عرض د ملتزم شريف يعني په منځ کې د دروازې تر حجر اسود پورې څلور گزه ده. او ارتفاع د حجر اسود له مځکې څخه درې گزه لوړه ده په سبع گز کم.

## اَنْ لَّا تُشْرِكْ بِیْ شَیْـًٔا وَّطَهِّرْ بَیْتِیَ لِلطَّآئِفِیْنَ

متعلق بمحذوف اي عهدنا الی ابراهيم ان لاتشرک. وقوله بي اي بعبادتي هيڅ شی له بتانو څخه (وطهر بيتي) او پاکه ساته زما بيته په داخل او خارج کې له بتانو او له مردارو شيانو او قاذوراتو څخه.

**بوه سه:** چې اضافت د بيت چې خدای ﷻ و ځان ته وکړی لپاره د تشريف د مضاف. وبهذا المناسبة يسمی کل مسجد بيت الله يعني بيت عبادت الله وذالک

لعدم المكان لله عزوجل (للطائفين) لپاره د هغو کسانو چي پر بيت الله باندې طواف کوي (الجار والمجرور متعلق بطهرآه).

## وَالْقَآئِمِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ

(والقائمين) جمع د قائم ده (الركع) جمع د راكع ده او سجود جمع د ساجد ده.

**پوه سه:** چي مراد له درو سره وو څخه لمونځ دی تعبيرًا عن الصلوة باركانها من القيام والركوع والسجود لان هذه الثلثة لم يعرف في الشرع عبادةً بدون الصلوة. روافض وايي چي طهارت په لمانځه کي يوازي د تندي د ځای شرط دی لاغيره. او په نيز د اهل السنة والجماعة هر عضو د مصلي چي پر ځمکه لګيږي ولو في القعدة د ځای طهارت شرط دی فافهم.

## وَأَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ

او اعلان او نداء وکړه په خلکو کي په حج کولو سره. ابن شيبه رح په خپل کتاب کي. او ابن جرير او ابن المنذر والحاكم او ده دا حديث صحيح هم بللی دی، او بيهقي رح په خپل کتاب سنن کي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي روايت کړی دی چي ابراهيم ع چي د بناء البيت څخه فارغ سو. نو يې وويل (رب قد فرغت) خدای جل جلاله ورته وويل اذن في الناس بالحج. ابراهيم ع وويل يا رب څوک به زما اواز خلکو ته ورسوي. خدای پاک ورته وويل پر تا اعلان دی او پر ما يې رسول دي. ابراهيم ع وويل څرنګه ووايم. قال عزوجل قل يا ايها الناس كتب عليكم الحج الى البيت العتيق، فسمعه اهل السماء والارض. او په بل روايت کي داسي راغلي دي چي ابراهيم د ابی قبيس غره ته وختی او ګوتي يې په غوږو کي ورکړې ورو سته يې ناره کړه يا ايها الناس ان الله تعالى كتب عليكم الحج فاجيبوه. نو خلکو يعني مؤمنانو تر قيامته په لبيک سره ځواب ورکړی من اصلاب الرجال وارحام النساء. واول من اجاب اهل اليمن. ولهذا اهل اليمن اكثر حجًا من غيرهم. راوي د مذکوره کتابونو وايي چي هيڅ څوک حج نسي کولای تر ورځي پوري د قيامت مګر نه هغه څوک چي په ورځ د نداء ابراهيم يې ځواب په لبيک سره ويلی وي (که يې يو وار ويلی وي يو حج به کوي که يې لبيک دوه واره ويلی وي دوه حجه به کوي وعلى هذا فقس)

**پوه سه:** چي مجاهد رح وايي چي ابراهيم ع د صفا پر غره ودرېدی نداء يې وکړه. او په بعض روايتو کي راغلي دي چي ابراهيم ع پر مقام ابراهيم ودرېدی او هغه کرار کرار راپورته کېدی تر لوړ غره لوړ سو، نو ابراهيم ع نداء وکړه. علامه آلوسي د دې روایاتو جمع داسي کړې ده ويمكن الجمع بتكرر النداء انتهى. حاصل دا دی چي دا نداء ابراهيم ع څو ورځي کړې ده ګاهي يو ځای ګاهي بل ځای وهكذا.

**پوه سه:** چي ظاهر دا دی چي واذن في الناس عطف دی پر طهر بيتي آه. يعني مامور په دې نداء سره.

**درویش وايي:** چي مظهري له بغوي رح څخه روايت کړی دی چي حسن رح وايي چي واذن في الناس كلام مستانف دی يعني كلمه د واو د عطف لپاره نه ده او مخاطب په ناد في الناس آه عليه الصلوة والسلام دی. بيا مظهري هغه حديث چي د حجة الوداع په وخت کي عليه الصلوة والسلام يوه خطبه وويل او خلګ يې امر کړه په حج سره، روح المعاني وايي وهو خلاف الظاهر جدًا (ولي چي سوق د كلام من قوله واذ بوئنا آه. تر قوله د ابراهيم ع سره دی. دی وايي ولاقرينة عليه) انتهى قول روح المعاني، والله اعلم بالصواب.

## يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ

دوی به راځي تاته يا ابراهيم ع (رجالاً) جمع د راجل ده يعني پياده. لكه قيام جمع د قائم ده او نيام جمع د نائم) او پر ډنګر اوښ باندي چي د لېري والي د سفره ډنګر سوی وي.

**فائده:** ياتوک مجزوم دی جواب دی د امر يعني واذن في الناس.

**سوال:** حجاج خو د حج لپاره بيت الله الشريف ته ځي. د ابراهيم ع لپاره خو نه راځي؟

**ځواب:** چونكه ابراهيم ع د بيت الله باني ؤ، نو معنی د (ياتوک) دا ده ياتو بيتک الذي بنيته.

**مسئله:** د امام ابو حنيفه رح په نيز په پياده تګ حج كول افضل دی د هغه چا لپاره چي پر پياده تګ قادر وي، لان الله قدم الاتيان راجلاً على الاتيان راكبًا او بل چي مشقت په مشي کي ډېر دی او خشوع او خضوع په پياده تګ کي ډېره ده، او په دې باره کي يو حديث مرفوع هم سته، ابن سعد او ابن مردويه رح وغيرهما له ابن عباس رض

څخه روایت کړی دی قال سمعت رسول الله ﷺ یقول ان للحاج الراکب (په هر قدم کې د داپې دده. او ویا نیکی ښته) وللماشي بکل قدم سبعمائة حسنة. او ابن ابی شیبة له مجاهد رح څخه روایت کړی دی ان ابراهیم و اسماعیل علیهما السلام حجا ماشیین.

**درویش وايي**: چي په اوسنی زمانه کي چي استراحت د خلګو ډېر سو. او لوی او کوچني موټران هم ډېر سوه. شاذ او نادر سری به حج پیاده کوي الا ان یکون في غاية القرب من مكة المكرمة بلکې د اوښانو سپاره هم په اوسنی زمانه کي نادر دي. لکن شعر:

بقدر الكد تكتسب المعالي .......... ومن طلب العلى سهر الليالي
تروم العز ثم تنام ليلا .......... يغوص البحر من طلب اللآلي

## يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ۝

(ياتين) صفة للضامر. والمعنى على كل تقدير ياتوک على كل ضامر ياتين الى مكة لان يحج. روح المعاني وايي والمشهور جعل ضمير ياتين راجع الى رجالاً وركباناً. فلاحاجة الى توجيه الجمعية فافهم (من كل فج عميق) د هري لاري څخه چي بعيده وي.

**سوال**: ياتين صيغه د جمع ده او ضامر مفرد دی؟

**خواب**: چونکه پر ضامر لفظ د کل داخل دی، نو هغه هم جمع دی. معنی او یا صفت د کل دی، او تانیث نظر و معنی ته دی.

## لِّيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ

حرف جر متعلق دی باذن او بیاتوک. والثاني اقرب لفظاً ومعنًى. تا چي دوی په دې سفر کي حاضرين وي منافع ديني او دنيوي ته.

**بوه سه**: چي محمد بن علي بن الحسين بن علي الباقر رحمه الله او سعيد بن المسيب رحمه الله وايي چي مراد عفو او مغفرت دی.

**درویش وايي**: چي دا يوازي تفسير د منافع دينيه وو دی. وعن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من حج لله فلم يرفث (بېکاره خبري) ولم يفسق (مراد مطلق فسق دی. الشامل لجميع انواعه) رجع كيوم ولدته امه (يعني د صغائرو او

کبائرو گنهو څخه پاک) متفق علیه. او سعید بن جبیر ؒ وایي چي له منافع دنیویه څخه مراد تجارت دی په موسم حج کي.

**فائده**: منافع چي یې نکره راوړه که څه هم تنوین نسته بالدي لپاره د تعظیم او تکثیر دی. وخص مجاهد ؒ المنافع الدنیویة بالتجارة فهي جائز للحاج بلا کراهة اذا لم تکن التجارة مقصود بالذات والحج بالتبع.

**مسئله**: علماء وایي چي که د سړي مقصود بالذات حج وي. لکن تبعًا یې بعض شیان ورسره یوړه لکه قالین وغیره چي په مکه مکرمه کي څه ګټه راوکړي. یا یې له مکې څخه بعض شیان رانیول چي په وطن کي به ګټه راوکړي، او که دغه تجارت نه وای هم دی حج ته راتلی. نو داسي تجارت مکروه نه دی، او که سړي د مکې په تلو سره ډېر تجارتي اموال ورسره وړل یا یې د مکې له خوا راوړل، که دغه تجارت نه وای دی نه تلی یعني نفلي حج یې وي، نو دې سړي ته د حج کولو هیڅ ثواب نسته، او که فرضي حج وي سره د تجارت مذکوره د فرض غاړي یې خلاصیږي لکن ثوابونه یې نسته. وعلی هذا انعقد الاجماع.

**وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ**

ذکر د اسم الله کنایه ده له ذبح څخه د غنم او بقر یا نحر د ابل. ولي چي ذکر د اسم الله په ذبائح کي شرط دی، او بل په ذکر د اسم الله اشاره ده ودې ته چي مقصود په دغه ذبح او نحر کي التقرب الی الله تعالی دی (في ایام معلومات) په معلومو او مخصوصو ورځو کي. وهي ایام النحر کما ذهب الیه جماعة منهم ابو یوسف ؒ ومحمد ؒ.

**یوه سه**: چي ایام نحر درې دي. یوم العید و یومان بعده عند الحنفیة وعند الثوري وسعید بن جبیر وابن المسیب ؒ لما روی عن علي وعمر وابن عمر وابن عباس وانس وابی هریرة ؓ قالوا ایام النحر ثلاثة افضلها اولها ولاشک انهم قالوا ذالک سماعًا عن رسول الله ﷺ. ولي چي عقل و تقدیر ته د شرعي مقادیرلار نه لري، موږ وایو چي اخبار وارده په دې باره کي متعارض دي فاخذنا بالمتقین وهو الثلاثة، او امام شافعي، والحسن بن الفضل او عطاء ؒ وایي چي وایي چي ایام نحر څلور ورځي دي یوه د لوی اختر ورځ او درې ورځي وروسته

استدلالاً بقوله عليه الصلوة والسلام ايام التشريق كلها ايام ذبح، ولاشک ان ايام التشريق اربع. او امام نخعي رحمه الله وايي ايام النحر يومان فقط يوم العيد ويوم بعده، وعند ابن سيرين رحمه الله يوم واحد.

**درويش وايي:** چي دا دوه مذهبه له لفظ څخه د قرآن يعني في ايام معلومات بصيغة الجمع ليرې دي، وعند ابی سلمة وسليمان بن يسار رحمه الله ايام النحر ممتدة الى المحرم او په ذکر سره د لفظ د ايام دليل ويل سوی دی پر دې چي ذبح ليلاً نه ده روا. قال ابو حيان رحمه الله وهو مذهب مالک رحمه الله. او ابو حيان چي نسبت د عدم جواز د ذبح ليلاً و حنيفيانو ته کړی دی غلط دی، نعم يکره عند الاحناف ليلاً لاحتمال الغلط في ظلمة الليل.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله د ايام معلومات ترجمه په لس ورځي د ذوالحجة کړې ده وقال وهو مذهب اکثر المفسرين انتهى والله اعلم بالصواب.

**سوال:** ذبح او نحر خو د مخه تر اختر نه روا دی. فکيف ذهب اکثر المفسرين بقول المظهري الى انه عشر ذی الحجة؟

**ځواب:** مراد له ذکر څخه د اسم الله پر دې تقدير نفس حمد او شکر تکبير دی، او پر اولو اقوالو د ذکر اسم الله څخه مراد قول د ذابح دی، بسم الله والله اکبر اللهم منک واليک عن فلان.

**درويش وايي:** چي په تفصيل سره هغه غوټه هم خلاصه سوه چي د ابو حنيفه رحمه الله مذهب په بعض کتابو کي هم عشر ذی الحجة ذکر سوی دی. وروی عن ابن عباس رضي الله عنه والحسن وابراهيم وقتاده رحمه الله وليکن ماقلنا من التفصيل ودفع الاشکال علی ذکر منک لعلک لاتجده في غير التفسير الايوبي والتوفيق من الله والعلم عند الله.

**درويش وايي:** چي علامه زمخشري په تفسير کشاف کي د هغه قول چي وايي ايام معلومات عشرة ذی الحجة دی داسي توجيه کړې په اعتبار د دې عشر ذی الحجة دی چي يوم النحر جزء د هغو ده. وهذا توجيه حسن.

## عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ فَكُلُوْا مِنْهَا

چي خدای ﷻ دوی ته په رزق ورکړي من بهيمة الانعام، نو تاسي خوراک د دغه بهيمة الانعام څخه کوئ يعني د غوښو څخه چي ذبح او نحر يې وسي.

**پوه سه:** چي انعام اوښ، غويي، بزې او پسه ته وايي، او اضافت د بهيمة

الانعام بيانيه دي، المراد منها الهدايا. والضحايا واجبة كانت او مستحبة لاطلاق النص. وتفصيل الواجب والمستحب يطلب من كتب الفقه.

**مسئله**: امر د خوراک استحبابًا دی وليس للوجوب اجماعًا.

**مسئله**: اتفق العلماء چي هديه که تطوع وه هديه کونکو ته يې خوړک د غوښو روا دی په دليل د هغه حديث طويل چي جابر بن عبد الله ﷛ يې روايت کړی دی په قصه کي د حجة الوداع د آنحضرت ﷺ چي د هغه په يوه برخه کي داسي راغلي دی، وقدم علي ﷛ ببدن من اليمن او عليه الصلوة والسلام د ځان سره سل اوښان راوستلي وه، نو عليه الصلوة والسلام په خپل مبارک لاس (۶۳) اوښان نحر کړه، بيا يې چاړه علي ﷛ ته په لاس ورکړه ما بقي علي ﷛ نحر کړه. او عليه الصلوة والسلام علي ﷛ په ټولو هداياوو کي شريک وګرځاوه. بيا عليه الصلوة والسلام امر وکړی چي د هر اوښ څخه يوه يوه ټوټه غوښي پرې کړئ او په ديګ يا کټوي کي يې يو ځای پخي کړئ. نو غوښي چي پخي سوې آنحضرت ﷺ او علي ﷛ څه څه غوښي وخوړلې او ښوروا يې پسي غړپ کړه، رواه مسلم بطوله.

**مسئله**: دا حديث دليل دی پر استحباب د اکل من الهدی له دې جهته که چېري مقصود په دې خوړلو کي سد الجوع وای، نو د يوې هدی څخه به يې کټو يخ کړي وای. نو ولي عليه الصلوة والسلام امر کاوه چي له هري هدي څخه لږ لږ غوښي پرې کړئ او په کټو کي يې پخي کړئ. او روح المعاني وايي چي دا امر د اباحت دی، ولي چي په اصول الفقه کي وايي چي هر فعل چي قبلاً منهي عنه وي او بيا امر په وسي هغه ليپاره د اباحت دی، ويدل على سبق النهي قوله عليه الصلوة والسلام كنت نهيتكم عن اكل لحوم الاضاحي فكلوا منها وادخروا.

**درويش وايي**: چي په قول کي د روح المعاني نظر دی، ولي چي د اصول الفقه مسئله په هغه فعل کي ده چي قبلاً مطلق منهي عنه وي بيا امر په وکړل سي، او په هغه حديث کي چي روح المعاني يو جمله د هغه حديث يې نه ده راوړې لان اصل الحديث كما في كتب الصحاح كنت نهيتكم عن اكل الحوم الاضاحي (فوق ثلث) دا هغه ټوټه متروکه ده كما يدل عليها مابعد الحديث فكلوا منها وادخروا فافهم. مطلب دا چي دا نهي خو مقيد په فوق الثلاث سره دی، نو د اصول الفقه مسئله پر دې نه تطبيقېږي فالاستحباب هو الاولى بالقبول والله اعلم.

وَأَطْعِمُوا الْبَآئِسَ الْفَقِيرَ ﴿٢٨﴾

او ورکوئ دا اضحیه د غوښو څخه د خوراک لپاره و ډېر سخت فقیر ته والفقیر بدل عن البائس او عطف بیان له. او بعض علماء وايي چي فقیر تعمیم بعد التخصیص دی لان الفقیر اعم من البائس کما یظهر من تفسیر البائس فافهم.

ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ

وروسته دي زائل کي او لېري دي کړي خيري خپل. يعني سر دي وخريي برېتونه دي سم کړي. نوکان دي پرې کړي زېر ناف دي وخريي د بغل وېښتان دي وکاږي.

**پوه سه:** چي دا احلال اول دی دمخه تر طواف زیارت محرم ته هر ممنوع منه شیان روا سوه. یو نزدیکت (جماع) د مايني چي دمخه تر طواف زيارت نه دی ورته روا.

**فائده:** امر د (واطعموا) لپاره د ندب دی عند الامام. وهذا ماقاله الخفاجي مذهب ابي حنيفه رحمه الله.

**فائده:** يستحب كما في الهداية ان لاينقص في الاضحية مايطعم الفقير من الثلث. ولي چي جهات درې دي (۱) الاكل بنفسه (۲) واعطاء البائس الفقير (۳) والادخار.

**فائده:** اول وخت د رمي او حلق من طلوع الفجر الثاني يوم النحر عند الحنيفية رح وعند الاكثر بعيد نصف الليل. والدلائل مذكورة في الفقه.

وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴿٢٩﴾

او وفى دي وكړي په نذرو سره. او طواف وكړئ پر بيت الله شريف باندي.

**پوه سه:** چي بعض اهل التفسير وايي چي مراد له نذر څخه ما اوجب الانسان على نفسه مما ليس بواجب عليه قوليًا كان بدنيًا او ماليًا. نذر پر دوه قسمه دی. منجز يعني بالفعل لكه چي وايي لله علي ركعتين. او اتصدق بدرهمين او اختم القرآن في شهر مثلاً. ومعلق بامر ثم المعلق بالشرط ان كان مرضيًا للناذر لكه چي ووايي چي زما مسافر زوی وغيره كه له سفره په سلامتيا راسي. يا كه زما فلانی زوي خدای ﷻ راجوړ كړي فعلي ان اصوم يومًا او يومين مثلاً او اذبح بشاة. او اصلي عشر ركعات. فضلاً دي ته نذر تردد وايي. او كه چېري شرط مكروه ؤ لكه چي ووايي كه د ورور سره مثلاً ما خبري وكړې پر ما ايي روژه نذر الى غير ذالك. دي ته نذر لجاج وايي.

**مسئله**: که منذور مکروه ؤ په هغه نذر نه لازمیږي.

**درویش وايي**: چي د نذر ډېر صورتونه او احکام دي چي په کتابو کي د فروع او فقه مذکور دي. فلاحاجة الى تسويد اوراق التفسير ببيانها كما فعلها المظهري فراجع اليه.

**فائده**: کعبه شریفي ته چي عتیق وايي سبب يې دا دی. ابن عباس، ابن الزبیر، مجاهد او قتاده ﷺ وايي چي دا کعبه مبارکه خدای ﷻ ازاده ساتلې ده د جبابره وو الذين قصدوا تخريبها كما يشهد عليه سورة الفيل. أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِأَصْحَابِ الْفِيلِ ۝ الى اخير السورة كماسيأتي قصته في تفسير سورة الفيل من هذا التفسير ان شاء الله ﷻ. او بعض مفسرین وايي اعتقه من الغرق في ايام الطوفان فانه رفع الى السماء، كمامر قريبًا فتذكر، او ابن زيد او الحسن ﷺ وايي چي دا اوله او قدیمه خونه ده چي پر مځکه جوړه سوې ده، نو عتیق په معنی د قدیم دی. کریمه ان اول بيت وضع للناس الذي ببكة الى اخير الآية، او بعض مفسرین وايي چي عتیق په معنی د کریم دی، لانه کریم عند الله الکریم.

عرب و ښو آسانو ته کرام الخيل وايي، او سفیان بن عیینه ﷺ وايي چي عتیق په معنی د ازاد ده لانه غیر مملوک لبشر بل لم يملك ماحوله من الحرم.

**فائده**: طواف بالبیت عبادت معقولة مقصودة كالصلوة، بعض طوافونه فرض دي او رکن دي د حج او عمرې. او بعض واجب دي عند بعض الائمة وسنة عندنا لکه طواف قدوم او طواف وداع. او پرته له دغو اقسامو څخه تطوع دي. مراد دلته له طواف څخه طواف زیارت دی چي اخیر د حج دی او طواف افاضه يې هم بولي.

ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ حُرُمَاتِ اللَّهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ عِندَ رَبِّهِ ۗ

او که هغه څوک چي تعظیم وکړي د محرماتو د خدای ﷻ یعني المعاصي. تعظیم د معاصیو دادی چي پر سرې يې کول ډېر سخت پرېوځي. په حدیث صحیح کي راغلي دي چي مؤمن ته گناه چي له ده څخه صادره سي داسي ښکاري لکه تر غره لاندي چي ناست وي او بېرېږي چي راباندي را ایله به سي، او منافق ته گناه داسي ښکاري لکه مچ چي يې پر پزه کښيني دی لاس ورته وښوروي هغه ولاړ

سي، او ابو الليث سمرقندي رحمه الله وايي چي مراد له حرمات څخه اوامر او نواهي د خدای ﷻ دي چي څوک به یې انتهاک نه کوي. او بعض علماء په قرینه د مقام د حرمات الله څخه مناسک د حج مراد بولي. او ابن زید رحمه الله وايي چي مراد له حرمات الله څخه البلد الحرام والبيت الحرام والشهر الحرام دي (فهو خيرله) نو دغه تعظيم د حرمات الله خير دی ده لره په نيز د رب دده از روی ثواب.

وَأُحِلَّتْ لَكُمُ الْأَنْعَامُ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ

او تاسي ته حلال کړل سوي دي يعني له جانبه څخه د خدای ﷻ الانعام يعني لحوم الانعام (ای الابل والبقر والضان والمعز) مګر هغه حيوانات چي پر تاسي تلاوت کړل کيږي يعني في قوله تعالى (حرمت عليكم الميتة والدم ولحم الخنزير وما احل لغير الله به الآية) يعني تاسي ولي حرامي بولي غوښي د بحيره او د سائبه او د وصيله او حام (وقد مر تفسير هذه الأسامي) يعني دا خو په محرماتو کي د خدای ﷻ نسته. پوه سه! چي احلت لكم جمله معترضه ده.

فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ ﴿٣٠﴾

تاسي پرهېز وکړئ له مردار شي څخه چي هغه اوثان يعني بتان دي، او ځان ساتئ له ويلو څخه د درواغو. والمراد بقول الزور قولهم ان الملائكة بنات الله والاصنام شركاء الله وشفعائنا عند الله الى غير ذالك من اقوالهم المكذوبة.

**پوښتنه**: بتان خو ډېري دي، نو مرداريې څرنګه وبلل؟

**ځواب**: چونکه عقول له سليمه والطباع المستقيمة ددوی له عبادت څخه نفرت کوي، نو دوی لکه قاذورات داسي دي.

**فائده**: وفيه غاية المبالغة في النهي عن تعظيمها. او بعض مفسرين وايي چي رجس عذاب ته وايي. وسمى الاصنام رجسًا لان عبادتها سبب للعذاب المؤبد.

**فائده**: لفظ د زور عام دی ټولو انواعو ته د درواغو في الحكايات والمعاملات.

**پوښتنه**: په آيت سابقه کي مايتلى عليكم په صيغه د مضارع راغلی دی او سره ددې چي آيت د حرمت عليكم الميتة الآية خو دمخه تېر سوی دی؟

**ځواب**: تعبير په مستقبل سره لپاره د احضار د صورة ماضية لمزيد الاعتناء به.

**پوه سه**: چي زور په لغت کي انحراف ته وايي. او درواغ هم منحرف له واقع څخه دي ويدخل فيه شهادة الزور.

**درويش وايي:** چي مظهري د احمد، ابو داؤد، ابن ماجه، طبراني او ابن المنذر رحمهم الله چي هغو د خريم بن فاتک ؓ څخه روايت کړی دی هغه وايي چي يوه ورځ عليه الصلوة والسلام د سهار لمونځ وکړی فلما انصرف قام قائمًا او داسي يې وويل عدلت شهادة الزور بالاشراک بالله، دري واره يې دا خبره مکرره کړه او بيا يې دا آيت تلاوت کړی (فاجتنبوا الرجس من الاوثان واجتنبوا قول الزور الى اخير الآية. روح المعاني وايي چي په دې حديث کي خو دلالت پر دې نسته چي مراد په آيت کي له قول الزور څخه شهادة الزور دی کما هو مطلب المظهري رح. ولي چي روا ده چي آيت يعني قول الزور دي پر عموم حمل وي. او عليه الصلوة والسلام چي وروسته تر شهادة الزور دا آيت و وايه لا لتخصيص الآية بشهادة الزور بل لان شهادة الزور نوع قبيح من الزور فافهم والله اعلم.

## حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ ط

يعني مائل وه او سئ له هر دين زائغ او باطل څخه و دين حق ته چي توحيد دی ولهذا قال الله تعالى (غير مشركين به) چي نه به شريکوئ له خدای ﷻ سره هيڅ شی چي اوثان په دخول اولی پکښي داخل دي او که ملکي ور سره شريکوئ او عبادت يې کوئ لزعمکم الباطل انهن بنات الله.

**درويش وايي:** چي دا رد دی د دې قول د مشرکانو د مکې چي زموږ دين د ابراهيم ؑ دی. حاصل د رد يې دا دی چي ابراهيم ؑ خو مائل له دينه باطل څخه و حق ته ؤ او خدای ﷻ ته يې هيڅ شی شريک نه بالله فاين انتم منه.

**بوه سه:** چي دا دواړه حالان مؤکدتان من واو فاجتنبوا کذا في روح المعاني.

## وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ

څوک چي خدای ﷻ ته شريک وايي مثال يې دا دی لکه له اسمان څخه چي راولوېږي.

**بوه سه:** چي دا جمله تاکيد ده د ماقبل يعني (حنفاء غير مشرکين به) او اسم جليل يعني الله چي په دې آيت کي يې ظاهر کړی يعني ضمير يې نه راوړی لپاره د کمال قبح د شرک بالله. ولي چي الله ﷻ خو وضع دی لپاره د واجب الوجود المستجمع لصفات الجلال والجمال فکيف يتصور له شريک!.

**پوه سه:** چي په دې آيت کي يې ايمان مشابه کړی د اسمان سره لعلوه الرتبي كما ان للسماء علو حسي والاشراک به بالسقوط من السماء، فالمشرک ساقط من اوج الايمان الى حضيض الكفر.

**پوښتنه:** دا تشبيه خو په مرتد کي صحيح ده چي له اسمانه راولوېدی يعني ايمان يې پرېښو د شرک و کهي ته ولوېدی. لكن مشرک اصلي خو ايمان له سره نه درلودی؟

**ځواب:** د هغه په باره کي فطرت اصلي دی كما قال عليه الصلوة والسلام كل مولود يولد على فطرة الاسلام فابواه يهودانه الى اخير الحديث، پر منزله د فعليت ده اسلام وګرځاوه چي مشرک هغه فطرت له لاسه ورکړی، نو ګويا له اسمان څخه راشوه سو. ومع قطع النظر عن الفطرة فالتمكن والقدرة على الاسلام باعتبار النظر في عجائب مصنوعاته قائم مقام الفعلية. شيرازي وايي:

برگ درختان سبز در نظر هوشيار ..... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

فَتَخۡطَفُهُ ٱلطَّيۡرُ أَوۡ تَهۡوِي بِهِ ٱلرِّيحُ فِي مَكَانٖ سَحِيقٖ ﴿٣١﴾

نو ګډوډ کړي افکار دده هغه هواوي چي په منځ کي د اسمان او ځمکي وي، او يا وغورځوي دی باد په يو ځای کي چي لېري له حق څخه وي.

**پوه سه:** چي په (فتخطفه الطير) کي استعاره بالكناية ده. يعني مراد له طير څخه اهوية مردعة دي.

**پوه سه:** چي مراد له ريح څخه استعارة شيطان دی چي پر سړي غالب سي هغه په سړي ورته کارونه کوي.

**درويش وايي:** چي په زړه پوري ترجمه د بيضاوي ده. هغه وايي چي کلمه د او په آيت کي لپاره د تنويع ده يعني کافر دوې نوعي دی. يو هغه مشرک دی چي خلاصوالی له شرک څخه اصلاً نه لري لکه ابوجهل. وليد بن مغيره في مشركي مكة مثلاً. د هغه مثال داسي دی لکه سړی چي له اسمانه رايله سي په لاره کي يې مرغان د اسمان ټوټه کړي او وېې خوري فلم يبق منه شئ، او بل هغه مشرک دی چي د توبې لار ورته خلاصه وي. نو د هغه مثال داسي دی لکه يو سړی چي لېري ځای باد وغورځوي، نو د دې سړي ته ممکنه ده چي دی له هغه لېري ځای څخه ځيل کور ته راسي.

**درویش وايي:** چي له تکلفاتو څخه خالي توجيه داده چي دا آيت استعاره تمثيليه ده على مابين في علم البيان. هغه دا چي د يو هيئت منتزعه من امور متعدده تشبيه وکړل سي د بل هيئت منتزعه من امور متعدده سره، ومثلوا لها بقول الرجل لآخر المتفكر في امر من الامور بافكار متنوعة رئيتک تقدم رجلاً وتؤخر اخرى. دلته هم تشبيه د حالت منتزعه له غلبه څخه د نفس او د شيطان ده پر مشرک باندي وايقاعه في الشرک وانواع المعاصي بالحالة المنزعة بحال من خر من السماء فتخطفه غوښي يې مرغانو څندي وخوړلې. يا يې باد لېري ځاى وغورځوي چي هم د اهلاک سره مخامخ سي فتدبر غاية التدبر وخذ ما صفا ودع ماکدر والعلم عند الله بمراده بکتابه.

**ذٰلِكَۖ وَمَنۡ يُعَظِّمۡ شَعَٰٓئِرَ ٱللَّهِ فَإِنَّهَا مِن تَقۡوَى ٱلۡقُلُوبِ ﴿٣٢﴾**

اى الامر ذالک په حذف د مبتدا (دا جمله پوره ده وروسته جمله پر عطف ده يعني (ومن يعظم) څوک چي تعظيم وکړي د شعائرو د خداى جل جلاله. ابن عباس رضي الله عنه وايي چي مراد اوښان او هدايا د بيت الله دي اصل د شعائر له اشعارو څخه دى يعني علامه داز دې کړي په يو شي چي يا چوتي يې په غاړه وروځړوي يا دې لږ بوک ورويني کړي تا چي خلک وپوهېږي چي دا هدايا د بيت الله دي، نو تعرض نه ورته کوي او د اوبو او وښو څخه به يې نه منع کوي. او له تعظيم څخه يې مراد دادى چي ښه به چاغي وي او په لوى قيمت به رانيول سوي وي. په صحيح حديث کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام سل (۱۰۰) هدايا له ځان سره راوستلي وې کمامر، او په يوه روايت کي راغلي دي چي په دغو اوښانو کي يو اوښ د ابو جهل هم ؤ چي په ورځ د بدر يې په غنيمت نيول سوى ؤ چي په پزه کي د هغه اوښ د سرو زرو نته وه. او ابو داؤد روايت کړى دى چي عمر رضي الله عنه چي حج ته راتلى يو داسي نجيبه اوښه يې له ځان سره راوستلې وه چي دده څخه خلکو په اته سوه (۸۰۰) دينار غوښتې وه.

**بوه سه:** چي مظهري رحمه الله ضمير د (انها) راجع و تعظيم ته گرځولى دى.

**درویش وايي:** چي تانيث د ضمير يې په اعتبار د مضاف اليه دى اى تعظيم الشعائر فافهم. والعبارة بحذف المضافات اى من افعال (يو مضاف) ذوى (بل مضاف) تقوى القلوب. يعني چي زړونه يې له خداى جل جلاله څخه بېرېږي. او ذکر د

قلوب په اعتبار ددې چې زړونه محل دی د تقوی او د فجور، وقد صح ان النبي ﷺ اشار الى الجانب الايسر من الصدر المبارك، وقال التقوى ههنا، درې واره يې دا كلمات مكرر كړه.

**درویش وایي:** چې روح المعاني په تفسير كې د انها ډېرې اوږدې خبرې كړې دي او نقض او ابرام يې راوړی دی. ولهذا فقير د هغو له راوړلو څخه ډډه وكړه لانه لافائدة في ايرادها لمتعلمي التفسير الايوبي الا لبعض العلماء المتبحرين.

## لَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى

* تاسې لره په دغو شعائرو كې نفع سته (يعني جاز الركوب عليها والحمل عليها عند الضرورة وشرب لبنهما) تر وخت معلومه پورې يعني چې حلالېږي.

**مسئله:** عطاء ابن رباح، امام مالک، امام شافعي، امام احمد او اسحاق رحمهم الله وايي چې روا ده سپرتيا پر هدي او بار پر باندې کول او څيښل د شيدو يې چې په درو سره كارو كې هدي ته ضرر نه رسېږي، او امام ابو حنيفه رحمه الله وايي چې نه ده روا سپرتيا يې ولا الحمل عليها ولا شرب لبنها الا لضرورة لكه چې هديه كونكى ضعيف وي او بار په شا نسي وړلای. يا يې ضرورت له تندي و شيدو څيښلو ته پيدا سي. د امام اعظم رح د مذهب دليل دا دی چې دا هدایاوې تو له د خدای جل جلاله لپاره دي، نو ده ته نه ښايي چې يو شی د دغو هدایاوو دې د ځان لپاره استعمال كړي، ددې دليل څخه خو ظاهراً داسي فهمېږي چې مهدي ممنوع دی مطلقاً كه يې ضرورت وي او كه نه وي د نفع اخستلو د خپل ځان په هدایاوو كې. لكن چونكه په احادیث صحیحه وو كې جواز د ركوب راغلی دی. نو قول د امام اعظم رح چې منع ده، محمول دی په غير كې د ضرورت د حال. او احاديث شريفه محمول پر حال د ضرورت دي، والدليل على الانتفاع بالهدايا في حال الضرورة، ما روى الطحاوي رحمه الله چې اعلم الناس په مذهب د ابو حنيفه رحمه الله دی په دوه سنده سره عن حميد الطويل عن انس رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ رائ رجلاً يسوق بدنة اى الهدى وقد جهد (دا سی په ډېر تكليف په هدي پسې روان ؤ يعني يا به مريض ؤ او يا به ستړی ستومان ؤ) عليه الصلوة والسلام ورته وويل اركبها! هغه سړي ورته وويل يا رسول الله ﷺ انها بدنة يعني هدية، قال عليه الصلوة والسلام اركبها وان كانت (يعني وان كانت بدنة وهدية) وفي الحديث

المتفق عليه عن ابي هريرة رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ راىٰ رجلاً يسوق بدنة فقال عليه السلام اركبها قال انها بدنة اى هدية قال عليه السلام اركبها قال انها بدنة، فقال رسول الله ﷺ اركبها ويلك في الثانية او الثالثة. نو زموږ په نيز دغه حديث محمول دى پر حال د ضرورت. ولي كه ضرورت نه واى. نو عليه الصلوة والسلام تهديد په ويلك سره نه ورته كاوه. ويدل على ذالك ما روى مسلم عن ابى الزبير رضي الله عنه قال سمعت جابر بن عبد الله رضي الله عنه چي چا پوښتنه ځني وكړه د سپرتيا په باره كي پر بدنه يعني الهدي قال سمعت النبي ﷺ قال اركبها بالمعروف اذا الجائت اليها (چي ته ورته مجبور سې كحال المرض او حال ضعف البدن) تر پايه پوري.

## ثُمَّ مَحِلُّهَآ اِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ ۝

**بوه سه:** چي محل يا مصدر ميمي دى په معنى د وجوب كما يقال حل اى وجب او يا ظرف زمان دى، اى وقت نحرها پر دواړه تقديره مضاف محذوف دى وهو لفظ النحر، او كلمه د ثم يا لپاره د تراخي في الوقت ده فان وقت الانتفاع بالهدايا وهو الركوب وغيره كمامر قبل وقت النحر، او يا لپاره د تراخي في الرتبة ده لان المراد بالمنافع المنافع الدنيوية كمامر ذكرها ونحرها من المنافع الاخروية وهو الثواب في يوم الثواب.

**بوه سه:** چي (الى البيت العتيق) په موضع كي د حال دى اى منتهية الى البيت آه، والمراد مايتجاور البيت العتيق. ولي چي نحر خو په خپله په بيت العتيق كي نه كيږي.

**درويش وايي:** چي عرفي منحر منٰى ده. لكن په صحيح حديث كي راغلي دي چي وكل فجاج مكة منحر (هره كوڅه د مكې ځاى د نحر دى، وكل فجاج منٰى منحر.

**مسئله:** فضال رحمه الله وايي چي مراد دلته هغه هداياوي دي چي منٰى يا مكې ته رسېدلاى سي، او هغه هدي تطوع چي هلاک ته نژدې سي تر بلوغ منٰى، نو ځاى د نحر يې هغه ځاى دى چي هدي په هغه ځاى كي د هلاكت سره مخامخ سوه.

**مسئله:** دا آيت دليل دى پر جواز د نحر په ټولو ځايو كي د حدودو د حرم محترم لان الحرم كله في حكم البيت في كونه عتيقاً غير مملوک لاحد. او امام مالک رحمه الله وايي لاينحر الحاج الا بمنٰى ولا المعتمر الا بمروة لان النبي ﷺ نحر بمنى. والجواب ان النحر النبي ﷺ بمنٰى لاينفى جواز النحر في غيره اذا ثبت بالكتاب والسنة. اما

الكتاب فقوله تعالى الى البيت العتيق كما مر تفصيله. قال رسول الله ﷺ نحرت ههنا (اشار الى موضع معين من منى) وقال منى كلها منحر وكل فجاج مكة طريق ومنحر وكل عرفة ومزدلفة موقف. رواه ابو داؤد وابن ماجه من حديث جابر رضي الله عنه.

## وَلِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا

يعني هر جماعت ته چي مؤمن وي. وقيد المؤمنة يفهم من المقام يعني تر تاسي مسلمانانو دمخه تير سوي دي.

**پوه سه**: چي منسَک بفتح السين كما هو قرائة الجمهور من القراء په معنى د موضع النسک يعني صيغه د ظرف ده. يا مصدر ميمي دى اى موضع اراقة الدم او اراقة الدماء او قربانًا يتقربون به الى الله تعالى.

**پوه سه**: چي دا جمله په نيز د روح المعاني عطف ده على قوله تعالى لكم فيها منافع ومابينهما معترضات.

**فائده**: مجاهد رح تفسير د منسک ههنا بالذبح واراقة الدم سره كړى دى على وجه التقرب الى الله تعالى فجعله مصدرًا.

**پوه سه**: چي نسک په اصل كي مطلق عبادت ته وايي وشاع في اعمال الحج خصوصًا في افعال الحج على عبادة خاصة من افعال الحج وهو الذبح واراقة على وجه التقرب الى الله تعالى كما فسره مجاهد رح به. خو فراء نحوي وايي چي منسک په كلام كي د عربو الموضع المعتاد في خير وبر كالمنى للذبح لكن علامه زمخشري په تفسير كشاف كي وايي چي تفسير منقول عن مجاهد رح كمامر عنقريب هو الاوفق. والمعنى عنده اى شرع لكل اهل دين ان يذبحوا له تعالى على وجه التقرب لا لبعض منهم. فتقديم الجار والمجرور يعني لكل امة على الفعل اى جعلنا منسكًا لپاره د تخصيص دى فافهم.

**درويش وايي**: چي دليل د شيوع د منسک په اعمالو كي د حج دا دى چي هغه كتابونه چي علماؤ د دين كملا علي قاري وغيره رح من الاعلام په بيان كي د ټولو اعمالو د حج او عمري تصنيف كړي دي. هغه د مناسک په نامه يادېږي.

## لِيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ

چي دوى ذكر كړي نوم د خداى ﷻ دون غيره په وخت كي د ذبح د نسيكي بان يقول عند الذبح بسم الله، الله اكبر اللهم منك واليك.

**بوه سه:** چي علت د جعلنا خداى ﷻ ذكر د اسم الله وګرځاوه تنبيهًا پر دې چي مقصود اصلي له جعل څخه د مناسكو تذكر د معبود ﷻ دى. له دې آيت څخه دا هم معلومه سوه چي ذكر د اسم الله خاصةً شرطًا للذبح كما هو معلوم بالنص واجماع الامة.

## عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ

پر هغه څه چي خداى ﷻ په رزق وركړي دي، من بهيمة الانعام يعني نحرها وذبحها.

**بوه سه:** چي بهيمه يې په دې وېلل چي خبرې نسي كولاى، او انعام ته يې مضاف كړى چي عبارت له ابل، بقر، معز او ضان دى، ولي داسي بهائم خو هم سته چي ذبح يې په قرابينو كي نه ده روا لكه آسان، غاطره او خره وغيرها.

**مسئله:** په قرابينو كي اهلي انعام شرط دى اجماعًا حتى ذبح د هوسى يا سوى يا ګوره خر نه ده روا، وان كانت ماكول اللحم.

**فائده:** په دې آيت يعني (ولكل جعلنا الآية) باعث كول دي د امت د عليه الصلوٰة والسلام چي دوى دي هم په دې باره كي اقتدا، په من سلف پسي وكړي.

## فَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ

ستاسي خداى ؏ يو دى شريک نه لري

**بوه سه:** چي دا جمله تعليل ده د (ليذكروا الله) يعني تاسي پر ذبائحو نوم د خداى وحده واياست، ولي د ټولو ستاسو معبود بالحق يو دى كه متقدمين د مؤمنانو دي او كه متاخرين كه څه هم تاسي مؤمنان په ازمنه شتى وو كي ياست، مخاطب يې مؤمنان وګرځول كه څه هم خداى پاک اله د ټوله عالم دى لان المشرک بجهله بواحدانيته تعالى بمنزل عن هذا الخطاب الكريم.

فَلَهٗۤ اَسۡلِمُوۡا ؕ وَبَشِّرِ الۡمُخۡبِتِيۡنَ ۙ﴿۳۴﴾

تقديم د جار او مجرور لپاره د حصر دی یعني خاص و خدای ته منقاد او فرمان بردار اوسئ دون غیره یعني اخلصوا التقرب او الذکر لله ولاتشوبه بالاشراک. او زېری وکړه یا محمد (علیه السلام) و هغو کسانو ته چي ځانونه حقیر بولي. والخبیت بالخاء المفتوحة والباء والمكسورة والياء الساكنة واخرها تاء مثناة على وزن فعيل في اللغة الشئ الحقير سواء كان في الواقع او يعد النفس حقيراً. نو ځکه یې ابن عباس او قتاده رض تفسیر په متواضعینو سره کړی دی. او اخفش وایي الخاشعین. او بعض اهل اللغة وایي چي خبت کښته ځمکي ته وایي له دې کبله یې مجاهد رح ترجمه په مطمئنین الی الله ته کړی دی، او امام نخعي رح وایي چي خبت اخلاص ته وایي. نو ځکه تفسیر یې په مخلصین سره کړی دی، او کلبي رح وایي هم الرقیقة قلوبهم او عمرو بن اوس وایي چي هم الذین لایظلمون او چي بل ظلم پر وکړي عفوه ورته کـات نه ځني اخلي.

**درويش وايي**: چي دا ټوله تفسيرونه و يوه شي ته راجع دي هر مفسر چي د هغه په خيال ښه ورغلی دی په هغه يې تفسير کړی دی. هغه يو شی دادی چي خدای جل جلاله په دې آيت کي ذکر کړی دی.

اَلَّذِيۡنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتۡ قُلُوۡبُهُمۡ وَالصّٰبِرِيۡنَ عَلٰى مَاۤ اَصَابَهُمۡ

چي نوم د خدای جل جلاله ورته واخستل سي ېرېږي زړونه يې من هيبة الله و معرفة عظمة الله عزوجل او صبر کونکي وي پر هغه شي چي دوی ته ورسېږي من المصائب که په مال کي وي او که په انفس کي وي او که په عيال کي وي او که في سبيل الله په جهاد کي وي.

**درويش وايي**: چي دا ټوله اعمال قلبيه وه، اوس خدای جل جلاله اعمال بدنيه او ماليه ذکر کوي.

وَالۡمُقِيۡمِى الصَّلٰوةِ ۙ وَمِمَّا رَزَقۡنٰهُمۡ يُنۡفِقُوۡنَ ﴿۳۵﴾

چي اداء کونکي د لمانځه وي په خپلو اوقاتو کي مع مراعات تعديل الارکان (ولهذا قالوا چي اقامة الصلوة والا لږ دي او لمونځ کونکي ډېر دي) او د هغه مال چي موږ يې په رزق ورکړو انفاق کوي فرضاً کان کالزکوة او واجبا کصلة ذی

الرحم المحرم او نفلاً كاعطاء الفقير والسائل.

**نکته**: خدای پاک نسبت د رزق وخان ته وکړی تنبيهًا على انه لاينبغي البخل بما اعطاه الله من فضله بل يعطى بخلوص القلب ويقول عند الاعطاء منک واليک. يعني دا مال تا راکړی دی وتاته يې درکوم.

درویش د تفسیر ایوبي په باره کي خدای ﷻ ته وایي:

په حقیقت کي د تفسیر توفیق خو ستا دی
ظاهرًا په انگشت نما عبیدالله دی

## وَالْبُدْنَ

**بوږسه**: چي (والبدن) منصوب على شريطة التفسير دی، بدن جمع د بدنة ده لکه خشب جمع د خشبة، امام جزري رحمه الله په نهاية کي وايي چي بدنة جمل (اوښ) او ناقه (اوښې) ته وايي او بقر او بقرة ته هم وايي وهي بالابل اشبه، سميت بدنة لعظمها وسمنها، في القاموس: البدنة په حرکاتو سره ابل او بقره دواړو ته وايي، وهذا مذهب امام الائمة ابو حنيفة عليه من الله تعالى الرضوان والرحمة، او عطاء او سدي رحمه الله هم وايي چي بدنه ابل، بقر ته وايي مېږي، بزې يا مږيا وزګري ته نه وايي، او امام محمد بن ادريس الشافعي رحمه الله بدنه مخصوص په ابل پوري بولي، والدلائل والجوابات في كتب الفروع.

## جَعَلْنٰهَا لَكُمْ مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ لَكُمْ فِيْهَا خَيْرٌ ۖ

**درویش وايي**: چي دا هغه فعل دی البدن يې منصوب دی، يعني البدن مفعول اول دی د دې فعل، او لكم مفعول ثاني دی ای كائنًا لكم وقوله من شعائر الله حال من المفعول الاول.

**ترجمه**: ګرځولي دي موږ بدن له علاماتو څخه د دين د خدای ﷻ التي شرعها الله (وجه د تسميه په شعائر سره چي دوی په بوک کي لږ زخمي کوي او د بوک وری يې په لړي تاچي خلکو ته دا معلومه سي چي دا هديه د مکي ده، نو کار نه په لري، يا يې چوټي وړ په غاړه کړي كما مر من قبل فتذكر) تاسي لره په بدن کي خير دی د دنيا کما مر او د آخرت من الاجر والثواب.

# فَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا صَوَافَّ

نو تاسي ذکر کوئ نوم د خدای ﷻ یعني په وخت کي د نحر که ابل وي او یا د ذبح که بقر ؤ. په روایت کي د ابن ماجه او حاکم په مستدرک کي له جابر رضي الله عنه څخه روایت کوي (ان رسول الله ﷺ کان یقول اني وجهت وجهي للذي فطر السموات والارض علی ملة ابراهیم حنیفا وما انا من المشرکین، ان صلاتي ونسکي ومحیاي ومماتي لله رب العالمین، لاشریک له وبذالک امرت وانا اول المسلمین. اللهم منک ولک بسم الله والله اکبر).

**درویش وایي:** چي که د جا دا ورده دعا نه وه په یاد لکه عوام الناس هغو لره بسم الله والله اکبر کافي دی (اذ لیس في الدین من حرج.

**پوه سه:** چي په قاموس کي وایي چي (صواف) په تشدید د فا فواعل دی په معنی د مفاعل یعني دوې پښې او یو راسته لاس به یې په صف ولاړ وي. او یو چپه لاس به یې د ورانه سره تړلی وي. نو په ولاړي به یې نحر وکړي کذالک روی البخاري عن ابن عمر رضي الله عنه وایضا روی البخاري عن ابن عمر رضي الله عنه انه اتی علی رجل چي اوښه یې چو که کړې وه او حلالوله یې. نو ابن عمر رضي الله عنه ورته وویل ابعثها قیاما مقیدة (ای یدها الیسری) په صحیح حدیث کي چي روایت یې ابن المنذر او بیهقي د ابي ظبیان څخه کړی دی وویل سئلت ابن عباس رضي الله عنه عن تفسیر قوله تعالی (فاذکروا اسم الله علیها صواف) قال اذا اردت ان تنحر البدن فاقمها علی ثلاث قوائم معقولة یعني د مخ چپه پښه یې ورکت کړه د ورانه سره یې ورو تړه ثم قل بسم الله الله اکبر اللهم منک ولک ثم انحرها. او مجاهد رحمه الله وایي الصواف اذا عقلت رجله الیسری وقامت علی ثلاث قوائم.

**درویش وایي:** چي په بعضې روایاتو کي که څه هم ید یمنی راغلی دی او په بعضو کي ید یسری راغلی دی ولافرق بینهما.

# فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ

چي ولوېږي وروسته تر نحر بغل د بدن پر مځکه یعني مړه سي، تاسي خورک خندي کوئ (بعض علماء وایي چي دا امر اباحت دی یعني خورک یې مباح دی وعند

الفقیر و اکثر التفسیر هو امر ندب واستحباب وقد مر تفصیله و دلیله عنقریب) او غوښې د بدن ورکوئ قانع ته.

**بوه سه:** چې عکرمه، ابراهیم او قتاده رحمهم الله وایي چې قانع هغه چاته وایي چې خپل کور ناست وي او قناعت یې کړې وي که چا خیرات ورکړي مگر سوال نه کوي، او معتر هغه څوک دی چې د غوښو د سوال لپاره ورسي. او عوفي له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې قانع هغه ته وایي چې نه ځان د خیرات ځای ته حاضروي او نه سوال کوي، یعني ولو بارسال الغیر. او معتر هغه چاته وایي چې د خیرات و ځای ته ځان حاضر کړي په مصدق ځان وویني او صراحةً سوال نه کوي، او سعید بن المسیب، حسن او کلبي رحمهم الله وایي چې قانع هغه ته وایي چې سوال کوي، او معتر هغه څوک دی چې ځان پیش کړي د صدقې و ځای ته مگر سوال نه کوي. نو پر دې تقدیر قانع مشتق دی من قنع یقنع قنوعًا اذا سئل. او پر اول تفسیر قانع مشتق د قناعت څخه دی یقال قنع قناعة اذا رضي بما قسم له، فتدبر.

كَذَٰلِكَ سَخَّرۡنَٰهَا لَكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ ۝٣٦

یعني لکه چې موږ مسخر کړي دي بدن کما مر من نحرها قیامًا، موږ مسخر کړي دي اوښان او منقاد مو کړځولي دي دوی یعني لپاره د رکوب او حمل سره د لوی والي د ابدانو د دوی او د قوت د دوی، حتی یو کوچنی هلک دوی چوکوي که څه هم په څوزانو او ډېروکي وي دوی منع نه ځندي کوي. دا تسخیر د دې لوی حیواناتو صرف او صرف قدرت د خدای جل جلاله دی ورنه تر اوښانو په جسم کوچني په قوت کم چې خدای جل جلاله تاسې ته نه دي مسخر کړي ستاسې حکم او اطاعت نه قبلوي لکه ګیدړه، چغال وغیرهما (لعلکم تشکرون) لکی تشکروا الله انعامنا علیکم، بالتقرب الیه والاخلاص وعدم الاشراک ولو کان معنًی وضمنًا.

**شان نزول:** ابن ابي حاتم او ابن جریر وابن المنذر رحمهم الله له ابن جریج رحمه الله څخه روایت کړی دی چې اهل جاهلیت چې به اوښ خیرات کړي یعني هدیه د کعبې مبارکې، نو غوښې او وینې د هغو مذبوحاتو به یې پر کعبه شریفه ور غور ځولي او پر باشلې به یې، نو اصحاب کرامو رضي الله عنهم وعلیه الصلوة والسلام ته ووېل نحن احق

بذالک النفح فانزل هذه الآیة الآتیة. او ابن المنذر رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي مشرکینو چي به شی یعني یو حیوان ذبح کاوه نو کعبې مبارکې ته به یې نژدې ذبح کاوه تا چه وینه د کعبې پر یو دېوال ومښلي فاراد المسلمون ان یفعلوا ذالک الفعل فانزل الله تعالی هذه الآیة.

لَن يَنَالَ اللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا وَلَٰكِن يَنَالُهُ التَّقْوَىٰ مِنكُمْ

نه رسېږي و خدای ته د قبول عند الله غوښې د بدن او نه ویني د هغو. لکن خدای پاک ته رسېږي پېره ستاسي له خدای ﷻ څخه. یعني الاعمال الصالحة المرتبة علی التقوی والاخلاص بانیکون المراد بها وجه الله خالیًا عن الاشراک ظاهرًا وباطنًا کالریاء.

كَذَٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ ۗ وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِينَ ﴿٣٧﴾

دا آیت تکرار د ماسبق دی تذکیرًا للنعمة وتاکیدًا له وتعلیلًا له بقوله (لتکبروا الله) یعني چي تاسي وپېژنی عظمت د قدرت د خدای ﷻ چي تاسي ته یې قدرت درکړی چي بېله خدایه د بل چا قدرت نه په رسېدی یعني په نتیجه کي تاسي خدای ﷻ واحد وګڼی په کبریاء شکرًا علی ذالک النعمة العظمی. چي تاسي ته یې هدایت وکړی د شرائعو د دین او د مناسکو د حج او کیفیت د تقرب الی الله یې دروښو (او بعض مفسرین وایي چي مراد له (لتکبروا الله) څخه تکبیر په وخت کي د نحر او ذبح دی کما مر بیانه) او ته زېری وکړه یا محمد (ﷺ) ابن عباس رضي الله عنه وایي چي مراد له محسنین څخه مؤمنان دي. نو دا جمله عطف ده پر ماقبل یعني بشر المخبتین.

إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ آمَنُوا

په تحقیق خدای ﷻ دفع کوي له هغو کسانو څخه چي ایمان یې راوړی یعني د دوی دښمنانو کافرانو.

**پوه سه**. چي دا جمله مستانفه ده لپاره د ارام د زړونو د مؤمنانو په دې سره چي خدای ﷻ ناصر دی د دوی پر اعداؤ.

**درویش وایي**: چي دا وعده عامه ده. روح المعاني چي داسي ویلي دي بحیث

لایقدرون علی صدهم من الحج آه. په اعتبار د سیاق د کلام چي د حج بعض احوال
پکښي بیان سوي وه، او دا آیت چي یې مقدر کړی په ان د تحقیق لپاره د اعتنا، تام په
مضمون د کلام یعني وعد النصر، او یدافع چي مضارع ده له بابه د مفاعلي او سره
ددې چي فعل د دفع خو یو ازي د خدای پاک له خوا دی یا لپاره د مبالغې، ولي علماء
وایي چي مفاعلة مغالبه لره مستلزم دی نحو ضارب زید عمروا، والمغالبة یستلزم
المبالغة، او یا لپاره د تکرار د دفع في الغزوات بین المؤمنین والکافرین. اهل
صرف وایي چي کاهي باب د مفاعلي مجرد کېږي د وقوع الفعل من الجانبین فیبقی
تکرره، وحاصل الآیة ان الله یبالغ في دفع ضرر المشرکین عن المؤمنین الذي من
جملة الصد عن سبیل الله تعالی والمسجد الحرام مغالبة من یغالب کما مر، او یدفع
ضررهم عنهم مرة بعد اخری، کریمه: کلما اوقدوا نارا للحرب اطفائها الله.

**إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ**

**پوهه سه:** چي دا آیت دلیل دی د ما في ضمن وعد النصر یعني الوعید
للمشرکین، په تحقیق خدای ﷻ محبت نه کوي کنایة عن البغض اذ لا واسطة بین
الحب والبغض في افعاله تعالی فاذا نفي الحب ثبت البغض فان الحب والبغض
وان کانا مفهومین وجودین لکنهما علی طرفا النقیضین في صفاته فافهم. د هر
کثیر الخیانة په امانات کي د خدای من الایمان وسائر الامور الشرعیة او کثیر
الکفران وي د نعمتو د خدای ﷻ. قال ابن عباس رضي الله عنهما خانوا الله کفار مکة فجعلوا له
شریکا وکفروا النعمة وهو رسول الله ﷺ. او زجاج رح وایي که چا تقرب وکړی و
بتانو ته بزبیحته وذکر علیها اسم غیر الله فهو خوان کفور.

**شان نزول:** احمد، ترمذي، سدي او حاکم رحمهم الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی
دی لما اخرج کفار مکة رسول الله ﷺ من مکة (یعني سبب د خروج د علیه الصلوة
والسلام له مکې څخه) باحتیالهم في دار الندوة بقتله والا فهو علیه الصلوة والسلام
خرج من مکة بامره تعالی قال ابوبکر رضي الله عنه اخرجوا نبیهم لیهلکن فانزل الله تعالی.

**أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا**

(اذن) ای اذن الله ورخص في القتال اجازه کړې ده خدای ﷻ هغه کسانو ته چي

وژل کیږي یعني للمؤمنین الذین یقاتلوهم المشرکون، یعني اذن الله للمؤمنین في الجهاد وان یقاتلوا الکفار. محي السنة البغوي الشافعي المذهب وایي چي مفسرین رح وایي چي مشرکانو د مکې اصحاب د علیه الصلوة والسلام ډېر وهل او تکول بې او رقم رقم ازار بې ورکاوه همېشه به اصحاب رض د علیه الصلوة والسلام په مسلسله توګه سرګردان وه یو به راغلی رسول الله ﷺ ته به یې اثار د ضرب او کوب پر بدن خپل ښکاره کړل، بل به راغلی د سر ماتېدل به یې ښکاره کړه و هکذا روزانه دا سلسله جاري وه، علیه الصلوة والسلام به ورته وویل صبر وکړئ زه نه یم امر کړل سوی یعني د خدای ﷻ له خوا په قتال او جهاد سره فنزلت هذه الآیة بالمدینة بعد الهجرة یعني اذن الی ان قال بانهم ظلموا (یعني اذن الله لهم في القتال بسبب انهم ظلموا) چي پر دوی تجاوز کړل سوی دی د مشرکینو له خوا.

**پوه سه**: چي عبد الرزاق، عبد بن حمید، ترمذي، نسائي، ابن ماجه وغیرهم من المحدثین له ابن عباس رض څخه داسي روایت کړی دی چي دا اول آیت دی چي نازل سوی دی په قتال (یعني په جهاد کي د کفارو سره) وروسته تر دې چي نهي د قتال تر اوویا (۷۰) څه بالا آیتونه راغلي دي انتهی.

وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ۝

او په تحقیق خدای ﷻ د دوی پر نصر او مرسته باندي قادر دی.

**پوه سه**: چي دا وعد جمیل دی د خدای جلیل له خوا څخه پر نصر د مؤمنانو.

الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِم بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَن يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ

هغه کسان چي ایستل سوي وه له خپلو کورونو څخه چي په مکه مکرمه کي یې درلوده، بېله حقه د جلا وطنی ددوی، مګر دا چي دې مظلومینو به ویل چي رب زموږ (معبود) الله دی (یعني وحده بلا شریک)

**پوه سه**: چي دا موصول مرفوع محلاً په حذف د مبتداء دی ای :هم الذین اخرجوا: یا منصوب محلاً دی په حذف د اعني یا په محل کي د جر دی بدل له موصول څخه د اذن للذین آه.

**پوه سه**: چي مفسرین دا استثناء متصل بولي او ان یقولوا آه په تاویل د مصدر

بولي په محل کي د جريې بولي او استثناء له حق څخه يې بولي، يعني دغه يو حق يې پر درلود ی چي دوی ربنا الله وايه.

**سوال:** ان يقولوا ربنا الله خو حق د اخراج د مؤمنانو نه دی؟

**ځواب:** دا د مشرکانو پر زعم باطل بناء ده چي توحيد د معبود چي څوک وايي د هغه اخرج حق دی. فهذا نظير قولهم في ذم شخص فلان لاخير فيه الا انه يسئ لمن يحسن اليه. او غرض په دې استثناء کي تنبيه ده پر ظهور د ظلم ده چي توحيد د خدای ﷻ حق دا خراج وباله. ونظيره في القرآن ما تنقم منا الا ان آمنا وفي كتب البلاغة قول النابغة:

لا عيب فيهم غير ان سيوفهم …… بهن فلول من قراع الكتائب

مع ان قراع الكتائب ای عساكر المقابل في الحرب ليس بعيب بل هو شجاعة.

**درويش وايي:** چي دا يو باب دی د بلاغت فافهم. او بعض مفسرين وايي چي دا استثناء منقطع ده. فالمعنى لكنه اخرجوا بسبب قولهم ربنا الله وهذا قول حق فالاخراج اخراج بغير حق.

**درويش وايي:** چي دا استثناء منقطع له فهم څخه د متعلمينو د تفسير ايوبي ډېر اوفق او اسهل ده بخلاف الاول. فان فهمه شان العلماء المدرسين.

## وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَّصَلَوٰتٌ وَّمَسٰجِدُ

که نه وای دفع کول د خدای ﷻ خلکو لره بعض د دوی چي کافران دي په بعض سره چي مؤمنان دي يعني بتسليط المؤمنين على الكافرين في الغزوات، له ثابت بن عرفجه څخه روايت دی چي ماته اووه ويشت (۲۷) نفرو له اصحابو څخه د علي ﷜ وويل چي علي ﷜ وويل چي دا آيت په اصحاب کي د محمد ﷺ نازل سوی دی. په دې آيت کي تاکيد پر قتال د کفره وو سره دی (لهدمت صوامع) جمع د صومعة ده يعني خلوت خانې د راهبانو د نصاری وو (وبيع) جمع د بيعة يعني عبادت ګاه د نصاری وو (وصلوات) کليساوي د يهودانو (ومسجد) او مسجد و نه د مسلمانانو، من امة محمد ﷺ.

**سوال:** د مخه تا روایت د عرفجه رح وکړی چي اووه ویشت اصحابو انتهی، نو مسجد د مسلمانانو که په دفع سره د مؤمنانو د امت د علیه الصلوة والسلام محفوظ پاته دي. نو صوامع. بیع او صلوات د یهودانو څرنګه د مسلمانانو د امت د علیه الصلوة والسلام محفوظ پاته دي؟

**ځواب:** د دې سوال ځواب روح المعاني داسي ورکړی دی چي مسلمانان د اهل الذمة من النصاری والیهود د معبداتو هم حفاظت کوي لکه د خپلو مساجدو محافظه چي کوي، لکن په اخیره کي روح المعاني وایي ولیس بذالک یعني دا جواب صحیح نه دی انتهی.

**درویش وایي:** چي وجه د عدم صحت یې داده چي ټولو متعبدات د نصاری او د یهودانو خو فقط د اهل ذمه نه دي. ولي چي بعض معبدات د نصاری وو او د یهودانو خو ددوی د حربیانو په بلادو کي دي. نو د هغو حفاظت څرنګه د امت د علیه الصلوة والسلام په مرسته محفوظ پاته دي؟ فقیر وایي: والصحیح في ترجمة الآیة المذکورة ما اشار الیه روح المعاني وغیره من کتب التفاسیر المعتبرة (لولا دفع الله الناس لهدمت في کل شریعة نبي مکان عبادتهم فهدمت في زمن موسی ؑ الکنائس للیهود) لکن په قوت د مؤمنانو من قوم موسی ؑ دا کنائس محفوظ پاته سوې وفي زمن عیسی ؑ البیع والکنائس یعني په طاعت د مؤمنانو د عیسی ؑ بیع او کنائس محفوظ پاته سوې. او په زمانه کي د علیه الصلوة والسلام په مېړانه او غزواتو د امت د علیه الصلوة والسلام مساجد د مسلمانانو محفوظ پاته سوه او پاته دي او پاته به وي ان شاء الله تعالی حتی یامر الله بخرابها وکان امر الله قدرًا مقدورًا.

**درویش وایي:** چي دا تفصیل په توفیق سره د خدای ﷻ له خواصو څخه د تفسیر ایوبي دی وان کان ماخوذًا من متفرقات کتب التفاسیر المتعددة.

يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا ۗ

چي ذکر کړل کېږي په دې ټولو متعبدات اربعه وو کي نوم د خدای ﷻ ډېر.

**بوه سه:** چي کثیرًا صفت دی د مصدر محذوف ای ذکرًا کثیرًا.

وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ۝

(لام جواب د قسم محذوف دی) ای والله خدای ﷻ کومک کوي د هغه چا سره چي د خدای ﷻ کومک کوي (ای نصر دینه وشریعة النازل علی نبي من الانبیاء ؑ ویدخل في عموم الآیة نصرة المؤمنین الذین ینصرون دین الله النازل علی محمد ؑ) په تحقیق خدای ﷻ قوي او قادر دی پر هر ما اراده او عزیز او غالب دی چي ځوک مانع دده د ارادې نسي کېدای. هذا تاکید للوعد بالنصر.

## اَلَّذِيْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِى الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ

(الذین) خبر د مبتداء محذوف دی یا صفت دی د الذین اخرجوا) هغه کسان که زه و دوی ته قدرت ورکړم په یوه مځکه کي. دوی به لمونځ برپای کوي یعني پر صحیح ډول به یې کوي کما هو معنی الاقامة وقد مر ذالک. وهذه من العبادة البدنیة. وفي الحدیث الصلوة عماد الدین (یعني لمونځ د دین تنبه دی)

**پوهسه:** چي کلمه د ان لپاره د احتمال نه ده کما هو اصله بلکي په معنی د اذ ده الدال علی تحقیق مدخوله. والقرینة علیه الوعد بالنصر والدفع، نو دا وعده د تمکین ده.

## وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ وَاَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ ؕ وَلِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ۝

او ورکوي زکاتونه د خپلو مالو. وهذه من العبادات المالیة وفي الحدیث السابق الزکوة قنطرة الاسلام. او امر به کوي په معروف سره من الفرائض والواجبات وغیر ذالک او نهي به کوي له منکر څخه من الزنی وشرب الخمر وغیرهما وهذه من العبادات القولیة (وقد ورد في الحدیث الصحیح من رئ منکرًا فلیغیره بیده فان لم یستطیع فبلسانه وان لم یستطع فبقلبه وذالک اضعف الایمان او کما قال علیه السلام) او د خدای ﷻ حکم او قضاء لره دي اخیر کار تول له کارونه.

**پوهسه:** چي دا وصف پر خلفاء راشدینو (ابوبکر، عمر، عثمان او علي رضي الله عنهم) باندي صادق دی چي دوی اخرجوا من دیارهم وه او مکنة او اعلاء د کلمة الله د دوی په خلافت کي پر مځکه راغله. او معاویه رضي الله عنه خو د الذین اخرجوا څخه نه دی. ولي چي دده پلار ابو سفیان خو د پر وروسته ایمان راوړی دی. او بعض مفسرین وایي چي الذین ان مکناهم بدل دی له من ینصره څخه. نو معنی د آیت داده چي خدای ﷻ کومک کوي د هغه چا سره چي څوک دده د دین کومک وکړي

وهذا المعنى عند الفقير انسب لان هذا المعنى يصدق على الخلفاء الراشدين وغيرهم من المهاجرين الاولين وعلى الانصار ﷺ. ولي چي خداى ﷻ دوى بمجموعهم مسلط كره پر تولو رئيسانو د عربو بلكې علاوه پر عربو د عجمو پر كسرى كانو من الفارس. او پر قيصرانو د روم او دوى ته خداى ﷻ په غنيمت كي وركړې مځكي او ديار د دوى او اموال د دوى بل سلطهم الله على اراضي اليهود كخيبر ووادي القرى وغيرها.

## وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَثَمُودُ ﴿٤٢﴾

او كه تكذيب وكړي كفار د مكې ستا يا محمد ﷺ (جزاء محذوفه ده اى فلا تحزن او دليل د جزا، يې په ځاى كي راوړى وهو قوله) فقد په تحقيق تكذيب كړى دى د مخه تر كفارو د مكې قوم د نوح. يعني د نوح ؑ تكذيب يې كړى دى او عاديانو د هود ؑ او ثموديانو د صالح ؑ.

## وَقَوْمُ إِبْرَاهِيمَ وَقَوْمُ لُوطٍ ﴿٤٣﴾

او د ابراهيم ؑ قوم د ابراهيم ؑ تكذيب وكړى چي نمروديان وه. او قوم د لوط د لوط ؑ تكذيب كړى دى او اصحابو د مدين د شعيب ؑ تكذيب كړى دى.

**پوه سه:** چي دا جمله معترضه ده لپاره د تسلي د عليه الصلوة والسلام يعني چي دا تكذيب د انبياء عليهم السلام بلاء عامه ده (والبلية اذا عمت هانت)

## وَأَصْحَابُ مَدْيَنَ وَكُذِّبَ مُوسَى

**پوښتنه:** د موسى ؑ په باره كي عنوان ته خداى ﷻ تغير وركړى يعني صيغه د مجهول يې راوه يعني داسي نه وويل سول وقوم موسى، حكمت يې څه دى؟

**ځواب:** د موسى عليه السلام قوم چي بني اسرائيل وه دده تكذيب يې نه دى كړى، بلكې دده تكذيب قبطيانو قوم فرعون وكړى. او بل حكمت دا دى چي معجزات د موسى ؑ چي ډېري وې. ولي چي خداى ﷻ دده ته نهه معجزې چي اشهر يې عصا او يد بيضاء وه وركړي وې. نو له دده څخه انكار ډېر اشنع او اقبح دى.

فَأَمْلَيْتُ لِلْكَافِرِينَ ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿٤٤﴾

نو ما مهلت ورکړی و کافرینو مذکورینو ته. یعني عذاب مي ځنډ اوه (جمله د املیت عطف ده پر کذبت آه باندي) بیا وروسته تر امهال پر دوی نازل کړه قسم قسم عقوبات. څوک غرق سوه په دریاب کي، پر چا باد مسلط سو الی غیر ذالک کما مر في مواضعه (فکیف کان نکیر) کسره د یا دال ده پر یاء محذوفه ای نکیري او ورش رح یې په اثبات د یا، وایې په وصل کي. یعني څرنګه و انکار زما چي نعمت مې په عذاب وربدل کړی او ژوند مي په هلاک وربدل کړی او عمارات مې په خراب وربدل کړه.

**پوه سه**: چي دا استفهام یا د تعجب لپاره دی او یا د تهویل لپاره دی، او یا د تقریر لپاره دی ای هو واقع موقعه لاظلم فیه.

**درویش وایي**: چي په دې آیت کي علاوه تر تسلي د علیه الصلوة والسلام اشاره ودې ته ده چي یا محمد ستا د قوم عاقبة الامر به هم همدا غسي وي لکه د مذکوره اقوامو. وقد وفي الله عزوجل بهذه الاشارة الخفیة کما لایخفی.

**پوښتنه**: په قد کذبت کي تاء د تانیث راوړه او سره د دې چي فاعل یې قوم دی منو کر نکته یې څه ده؟

**ځواب**: ابو حیان رح وایي چي قوم په تاویل د قبیلې یا د امت دی چي قبیله یا امت دواړه مؤنث دي، لکن روح المعاني وایي چي ودې تاویل ته ضرورت نسته. ولي چي قوم اسم جمع دی تذکیر او تانیث دواړه یې په فعل مسند کي روا دي.

**سوال**: نو چي تذکیر او تانیث دواړه روا وه. نو مؤنث یې د څه حکمت لپاره راوړی؟

**ځواب**: د مکذبینو درجه یې په کښته کړه لان المؤنث ادون حالاً من المذکر فانهم.

فَكَأَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ

**پوه سه**: چي (کاین) په معنی د کم خبریه دی من قریة یې بیان دی او مرفوع محلاً دی مبتدا. د اهلکنا یې خبر دی. او یا کلمه د کاین منصوب محلاً ده په

اهلكناها سره يعني منصوب على شريطة التفسير . په علم نحو كي وايي اصل د كلام داسي ؤ اهلكنا كاين من قرية ثم حذف اهلكناها و فسره بمابعده ، والنكتة في هذا الصنيع الاجمال اولاً ثم التفصيل ثانيًا ليكون اوقع في الذين. جامي رح وايي:

چه خوش باشد كه بعد از انتظاری ........ باامید رسد امید اوری

ومعنى اهلكنا : اهلكنا اهلها بحذف المضاف واقامة المضاف اليه مقامها (وهي) ايضًا بحذف المضاف اى اهلها .

**بوه سه:** چي ظلم وضع د شي ده بې ځايه. يعني عبادت چي اصل مستحق يې خداى جل جلاله ؤ بې ځايه ېې كړځاوه يعني عبادت د بتانو كوي.

## فَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ مَّشِيدٍ ﴿٤٥﴾

(فهي) الضمير راجع الى القرية والمضاف محذوف اى حيطان القرية يعني د قريې دېوالونه (خاوية) اى ساقطة منهدمة. والمراد بالعروش السقف (يعني بام) يعني آبادي د قريې زړه سوه نو اول يې بام را ايله سو وروسته يې دېوالونه پر بامو راغورځار سوه. نو على عروشها ظرف لغوه دى متعلق دى په خاوية پوري.

**بوه سه:** چي كه كاين منصوب على شريطة التفسير سي. نو دا جمله محل د اعراب نه لري (وبئر) عطف دى پر قرية اى كم من بئر كانت في تلك القرية اهلكنا اهل تلك الآبار فصارت كبئر معطلة يعني بوده نه پرا او پرېږي لهلاك اهل تلك المواشي (وقصر مشيد) او ډېر د محكمو تعميرانو څخه چي په ګچو يې دېوالونه پورته سوي وه يعني بناء يې په سبب د استحكام ولاړي وې لكن اهلكنا اهلها. نو كوټې او بنګلې روغي ولاړي وې مالكان يې نه وه د هلاك په څپو كي تللي وه.

**بوه سه:** چي قتاده، ضحاك او مقاتل رحمهم الله وايي چي د مشيد معنى رفيع طويل من قولهم شاد البناء اذا رفعه، او سعيد بن جبير، عطاء او مجاهد رحمهم الله وايي د مشيد معنى ده په ګچو وهلي وه دېوالونه يې او مشيد ګچو ته وايي.

**فائده:** جمله د كاين من قرية بدل ده من قوله فكيف كان نكير ومن قصر عطف بالفاء. مظهري رح له محي السنة بغوي رح څخه نقلا وايي چي البئر المعطلة والقصر المشيد په يمن كي دى چي قصر مشيد د يوه غره پر سر جوړ سوى دى او بئر معطلة د يوه غره په لاندي ځاى كي دى. دې دواړو ځايو خپل قوم او اهل درلودل او

خدای ﷻ فراوان نعمتونه ورکړي وه. نو دی د خدای ﷻ د نعمتو کفران وکړی نو دوی یې هلاک کړه او قصور او بئر یې معطل پاته سوه یعني خالي له اهل څخه. او بعض قدیم تاریخونه وایي چي دا قصور او بئر په یو ښار کي وه چي نوم یې حاصورا، ؤ چي نجات له عذاب څخه نازل سو پر قوم د صالح علیه السلام چي کافران وه پیدا کړی. نو حضرموت ته راغله چي حاصورا، یې نوم ؤ. نو صالح ؑ هوري وفات سو. نو پر هغې قریې یې نوم د حضرت موت کښېښنو. له دې سببه چي صالح ؑ چي دلته حاضر سو مات. نو دا څلور زره کسه په دې قصورو کي اوسېدل او د هغه ښاه او به یې څښېلې. نو دوی په اتفاق آراء یو سړی آمر مقرر کړی. نو ډېره زمانه دلته وه چي نسل پر نسل ډېر سوه اخیر الامر یې په اغواء د شیطان بت پرستي شروع کړه، نو خدای ﷻ یو نبي ورته راواستاوه چي نوم یې حنظله بن صفوان ؤ. هغه نبي دوی ته تبلیغ د توحید شروع کړی او له بت پرستی څخه یې منع کوله دوی دا خپل نبي په بازار کي بر سر عام په قتل ورساوه. نو خدای ﷻ دوی ټول له هلاک کړه او بئر یې معطل پاته سو او قصور یې ور خراب کړل. والله اعلم بالصواب.

## اَفَلَمۡ یَسِیۡرُوۡا فِی الۡاَرۡضِ

آیا تګ نه کوي کفار د مکې په مځکه کي چي د غه دیار هلاک شده وویني او عبرت خندي واخلي.

**قانون:** په قرآن کریم کي هر ځای چي تر همزه د استفهام وروسته حرف عطف راسي که واو وي که فاء، که ثم. د هغه عطف پر ماقبل د همزه نه دی روا الفوات صدارة الاستفهام، نو معطوف علیه یې مقدر دی مناسب د مقام سره. نو دلته یې تقدیر داسي دی الم یخرجوا من بیوتهم فلم یسیروا في الارض.

**پوښتنه:** دا قانون خو تا څو ځایه نور په تفسیر ایوبي کي راوړی دی، نو تکرار یې څه فائده لري؟

**ځواب:** فائده یې شفقت دی پر متعلمینو د تفسیر چي تفحص ته د اوراقو مجبور نسي. والله یعلم السرائر.

## فَتَكُوۡنَ لَهُمۡ قُلُوۡبٌ یَّعۡقِلُوۡنَ بِهَاۤ اَوۡ اٰذَانٌ یَّسۡمَعُوۡنَ بِهَا

وي دوی لره زړونه (یعقلون بها) دا جمله صفت ده د قلوب او مفعول ده،

یعقلون محذوف دی یعني یعقلون بها حقیة التوحید وبطلان الشرک. سعدي شیرازي رحمه الله وایي:

پند گیر از مصائب دیگران .... تا نگیرند دیگران زتو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز .... چو دیگر مرغ بیند اندر بند

**پوهسه**: چي تکون منصوب دی په تقدیر د ان عطف ده پر هغه مصدر چي تضمنًا د افلم یسیروا څخه وفهمېدی یعني الم یحصل منهم خروجهم من بیوتهم وسیر في الارض وان تکون (او اذان) عطف دی پر قلوب یا غوږونه. چي په هغه غوږو سره اخبار د امم ماضیهوو اوري. او بیا د غوږو له لاري عبارت ورته حاصل سي، او د شرک پر مېنه جارو تېر کړي او د توحید لمن تینګه کړي.

فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى الْأَبْصَارُ وَلَٰكِن تَعْمَى الْقُلُوبُ الَّتِي فِي الصُّدُورِ ﴿٤٦﴾

په تحقیق قصه دا ده چي سترګي خو نه دي ړندي، بلکې ړندېږي زړونه هغه زړونه چي په سینو کي دي.

**پوهسه**: چي ضمیر د انها د قصه دی او وروسته جمله یعني لاتعمی آه تفسیر د قصه دی.

**پوهسه**: چي په قرائت د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه انه مذکر راغلی دی. نو هغه ته ضمیر شان وایي او مابعد جمله تفسیر د شان ده.

**فائده**: د قصه او د شان قصه یوه ده صرف په تانیث او تذکیر کي یې فرق دی.

**قاعده نحویه**: که وروسته تر ضمیر مؤنث نه وُ. نو ضمیر شان احسن دی نحو انه زید قائم، او که وروسته مؤنث وُ نو بیا ضمیر قصه اولی دی نحو انها هند جائت. نو په دې آیت کي تانیث احسن دی لوقوع لاتعمی الابصار بعده فافهموا او مظهري رحمه الله دا احتمال هم راوړی دی چي انها ضمیر دي ضمیر مبهم وي او الابصار دي تفسیر وي او ضمیر د لاتعمی دي راجع و ابصار ته وي چي رتبةً مقدم دی.

**فائده**: ذکر د في الصدور لپاره د تاکید او لپاره د نفي د مجاز في القلوب کي کما في قوله تعالی ولاطائر یطیر بجناحیه، په دې آیت کي تنبه ده پر دې چي عمي حقیقي عمي د زړه ده او مراد د عمي في قوله ولکن تعمی القلوب آه عمي متعارفه نه ده مراد چي په سترګو پوري خاص ده.

**نکته**: په سترګو روند چي مسلمان وي ځای به یې جنت وي، او د زړه روند یعني الکافر که څه هم په سترګو وینې ځای به یې دوزخ وي فلهذا قالوا العمی حقیقة عمی القلب، قال رسول الله ﷺ شر العمی عمی القلب، رواه البیهقي.

**بوه سه**: چي بیضاوي وایي چي دا آیت چي نازل سو: ومن کان في هذه اعمی فهو في الآخرة اعمی: عبدالله بن ام مکتوم ؓ چي په سترګو روند و علیه الصلوة والسلام ته راغلی او داسي یې ورته وویل چي زه خو په دې دنیا په سترګو روند یم نو په اخرت کي به هم په سترګو روند یم؟ نو دا آیت نازل سو فانها لا تعمی الابصار ولکن تعمی القلوب التي في الصدور یعني رسول الله ﷺ د دغه آیت په نزول سره وابن ام مکتوم ؓ ته دا بیان کړه چي ومن کان في هذه الدنیا اعمی فهو في الآخرة اعمی څخه عمی د قلب مراد ده چي عبارت له کفره څخه دی په هره نوع کفر چي وي.

## وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ

دوی طلب د ژر راتلو د عذاب کوي، بغوي وایي چي دا آیت په نضر بن الحارث کي نازل سوی دی چي ده به داسي ویل: ان کان هذا هو الحق من عندک فامطر علینا حجارة من السماء: که وي دا قرآن یا دین د محمد (ﷺ) حق ستا له خوا، نو پر موږ باران د ډبرو وکړې د اسمان له خوا، ولي چي موږ یې نه منو نو که حق وي نو موږ خو مستحق د ډبرو د باران یو، دده خبیث غرض په دې قول کي دا ؤ چي دا نو حق نه دی.

**بوه سه**: چي دا آیت دلیل دی پر عمی القلوب د دوی ولي چي عاقل سړی استعجال د عذاب نه کوي.

## وَلَنْ يُخْلِفَ اللَّهُ وَعْدَهُ ؕ

او هرګز خلاف د وعدې نه کوي خدای ﷻ، ولي چي د خدای ﷻ د اخبار کولو په یو امر سره خلاف یې ممتنع دی للزوم الکذب، تعالی الله عن ذالک علواً کبیرا، نو د عذاب وعده چي خدای ﷻ د مشرکانو سره کړې ده خامخا رښتیا کېږي ولو بعد حین، ولي چي خدای ﷻ حلیم او صبور دی لا یعجل بالعقوبة، نو دا تاخیر د عذاب امهال دی اهمال نه دی.

**درويش وايي**: چي بعض د عذاب موعود څخه پر مشرکانو د مکې په بدر کي راغلی چي اوويا رئيسان د دوی په شمول د ابو جهل قتل سوه.

**پوښتنه**: لکه چي په وعده کي يعني د نصر د خدای ﷻ تخلف ناروا دی، نو بايد په اخبار د وعيد هم تخلف ناروا سي او سره د دې چي پر اعمالو د مؤمنانو خدای ﷻ وعيد ويلی دی وهذا ينا في المغفرة برحمته العامة او بالشفاعة؟

**ځواب**: هيڅ منافات نسته ولي چي آيات د وعيد د مؤمنانو مخصوص دي بالآيات واجماع الامة بمن لايتدارکه المغفرة فافهم فهذا المقام دقيق.

## وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ

په تحقيق يوه ورځ په نيز د رب ستا لکه زر کاله د هغو کلو څخه چي تاسي يې شميرئ.

**يوه سه**: چي ابن کثير، حمزه او کسائي رحمهم الله يعدون په يا تحتانيه وايي بقرينة قوله ويستعجلونک. او نور قاريان يې په تا، فوقانيه وايي لکن قرائة الجمهور اولی دی لان يستعجلونک خطاب للمستعجلين وما في هذه الآية خطاب للمستعجلين والمؤمنين جميعًا، وهذا خطاب للمتعجلين والمؤمنين جميعًا فلا يقاس احدهما على الآخر فافهم. قال ابن عباس رض برواية عطاء رح ان معنى الآية ان يومًا عنده تعالى والف سنة في الامهال سواء لانه تعالى متى شاء اخذهم لايفوته شيئ بالتاخير فيستوي في قدرته وقوع مايستعجلون به من العذاب وتاخيره. او بعض مفسرين وايي چي معنا د آيت داده چي ورځ د عذاب له ايامو څخه چي کفار يې استعجال کوي په ثقل او اوږدوالي کي او په شدت کي لکه زر کاله مماتعدون. نو ولي يې کفار استعجال غواړي.

**مثل**: پوهان خلک وايي: ايام الهموم طوال وايام السرور قصار، او سره د دې چي ورځ خو په طول او قصر کي سره برابري دي او بعض مفسرين وايي چي د دې آيت معنی داده چي د خدای ﷻ صبر او امهال پای نه لري لکن بيا هم له وعدې څخه خلاف نه لري ومع هذا کله عذاب وځنډوي الی يوم هو عند ربک کالف سنة وهو يوم القيامة. مجاهد او عکرمه رح د دغه روايت او معنی پخلی کړی دی چي مراد يوه ورځ د آخرت ده چي هغه زر کاله ده مماتعدون. والدليل علی ذالک ما

روی عن ابی سعید الخدري ﷺ قال قال رسول الله ﷺ بشروا یا معشر صعالیک المهاجرین بالنور التام یوم القیامة تدخلون الجنة قبل اغنیائهم (ای اغنیاء الناس) بنصف یوم. وان یومًا عند ربک کالف سنة رواه احمد والترمذي.

**درویش وایي:** چي ددې قبلیت د دخول د مهاجرینو جنت ته ترا غنیاء الناس له حدیث څخه د ابو هریره ﷺ هم معلومیږي چي ابو هریره ﷺ وویل چي رسول الله ﷺ وویل یدخل الفقراء الجنة قبل الاغنیاء خمس مائة عام نصف یوم. رواه الترمذي.

**درویش وایي:** چي که څه هم په اول حدیث کي تخصیص د فقراوؤ د مهاجرینو کړه سوی ؤ لکن حدیث د ابو هریره ﷺ عام دی فقراء د امت د علیه الصلوٰة والسلام ټول پکښي داخل دي الی یوم القیامة وهذا بشری حسن للفقراء والصابرین الی یوم القیامة فافهم.

## وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ

کاین په معنی د کم خبریه دی چي مفید د کثرت دی او من قریة په حذف د مضاف ای من اهل القریة مضاف حذف سو مضاف الیه یې په ځای کي ودرېدی في الاعراب.

**پوښتنه:** وروسته ضمائر یعني لها وهي اخذتها خو ټوله وقریه ته راجع دی وکذا الاحکام الآتیة؟

**ځواب:** هو! دا لپاره د مبالغې په تعمیم کي د اهل د قریه.

**پوه سه:** چي دا جمله معطوفه بالواو علی ویستعجلونک ولن یخلف باندي دا شاهد دی د عدم تخلف في وعید الکریم او بیان ددې چي موعود د خدای ﷻ خو حتمًا واقع کېدونکی دی او تاخیر یې مبني پر عادت د خدای ﷻ دی کما یفهم من الآیة الآتیة.

## أَمْلَيْتُ لَهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ ثُمَّ أَخَذْتُهَا وَإِلَيَّ الْمَصِيرُ ﴿٤٨﴾

ما مهلت ورکړی یعني عذاب مي ژر نه دی پر نازل کړی (لها) وهي قریة لکه تاسي ته چي مي مهلت درکړی یا کفار قریش (وهي ظالمة) لکه تاسي یا معشر قریش دا جمله حال ده له قریه څخه (ثم اخذتها) بیا دوی مي ونیولي یعني عذاب موعود مي پر مسلط کړی دی، په دې کي اشاره ودې ته ده چي ستاسي اخیر کار به

هم داغسي وي يا اهل مكه (والي المصير) يعني زما و حكم او ارادې ته رجوع د
ټولو كارو من التعذيب والامهال والتنعيم.

# قُلْ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَاۤ اَنَا لَكُمْ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۚ﴿۴۹﴾

ووايه يا محمد (ﷺ) و كفارو ته د مكې اى خلكو نه يم زه مګر صرف او
صرف بېرونكى ستاسي له عذاب څخه د خداى ﷻ كه تاسي ايمان رانه وړئ.
وغرضه لست بقادر على اتيان العذاب. انما اتيان العذاب موكول الى ارادة
القادر المتعال في اى وقت شا. فلم تستعجلوني باتيان العذاب كما يدل عليه
قوله تعالى ويستعجلونک بالعذاب (مبين) يعني زه تاسي ته برملا او علانيه
بيان كوم د ما لا نذركم به.

**پوښتنه**: مخاطب په (قل) سره عليه الصلوة والسلام ؤ. نو عليه الصلوة والسلام
خو لكه نذير چي ؤ بشير خو هم ؤ. نو د څه حكمت لپاره يې نذير يوازې ذكر كړى.

**ځواب**: اصل كلام خو مسوق ؤ د هغه كسانو سره چي هغو استعجال د عذاب
كاوه هغه خو مشركان د مكې وه. نو هغه خو اهل د بشارت نه دي.

**سوال**: د مخه خو حال د مؤمنانو هم ذكر سوى دى بقوله تعالى ولينصرن الله
من ينصره. الذين ان مكناهم الى اخير الآية. نو مؤمنانو خو اهل د بشارت دي فلم
لم يذكر بشير؟

**ځواب**: د مؤمنانو حال يې له دې كبله نه كړى ذكر چي د مشركانو غيظ او
غصه يو څه په جوش كې راسي ورته اصل كلام د مشركانو سره ؤ فلذالک ذكر
الانذار فقط. ونقل روح المعاني عن بعض المحققين ان الانذار يعم لمؤمن
ولكافر لانه ما من مؤمن الا وفيه ما لا ينبغي. نو د غه مؤمن هم بېرول كېږي له
ورڅي څخه د قيامت چي دوى دوام پر دغه ما لا ينبغي نه كوي لانه لعله يحاسب
بذالک يوم القيامة وذالک توجيه حسن والله اعلم.

# فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ﴿۵۰﴾

الفاء لتفصيل حال الفريقين من المؤمنين والكافرين. نو هغه كسان چي ايمان
يې راوړى وي بما جئت به من العقائد الحقة.

**درویش وایي:** چي دا عقائد حقه مندرج دي په آمنت بالله الی اخیره کي، او اعمال صالحه کوي لکه چي ما امر کړي دي دوی په هغو سره من الفرائض والواجبات وغیر ذالک قولیة کانت او عملیة کانت او مالیة، نو هغه لره مغفرت دی د هغو ګناهو چي د کفر په وخت کي يې کړي وي. قال رسول الله ﷺ ان الاسلام یهدم ماقبله. رواه مسلم عن عمرو بن العاص رضي الله عنه او ښه رزق یعني په جنت کي.

**سوال:** بعض مؤمنان اعمال صالحه تر له کوي ومع ذالک یشرب الخمر او یزنی وغیر ذالک؟

**ځواب:** اعمال صالحه چي په کامله توګه څوک ادا، کوي هغه يې له کبائرو ګناهو څخه منع کوي، کریمه: ان الصلوة تنهی عن الفحشا، والمنکر، واما الصغائر من المعاصي فیغفرها الله بما فعل من الصالحات کما جا، في الحدیث الصحیح ان الجمعة الی الجمعة یکفر ما بینها من الصغائر لمن لم یغش الاکبائر او کما قال علیه السلام، وکذالک ورد في باب رمضان، والصلوة الجماعة والوضو، المسنون الی غیر ذالک من الحسنات مما وردت في الآحادیث الشریفات.

**درویش وایي:** چي دا خو بیان ؤ د حال د مؤمنانو، اما حال الکفار فبینه الله بهذه الآیة.

## وَالَّذِیْنَ سَعَوْا فِیْٓ اٰیٰتِنَا مُعٰجِزِیْنَ

او هغه کسان چي کوشش کوي په آیتو کي زموږ یعني الآیات القرآنیة بالرد والابطال (معاجزین) حال دی من فاعل سعوا ای حال کونهم معاندین لآیات. او قتاده رحمه الله وایي چي دوی ګمان کوي چي موږ به خدای ﷻ عاجزه کړو بزعمهم الفاسد. یعني لابعث بعد الموت یعني لایقدر الله علی ذالک ولا جنة ولا نار، او یا معنی داده چي دوی د موږ څخه فوت سي فلا نقدر علی تعذیبهم بالنار في الآخرة.

## اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِیْمِ ﴿۵١﴾

دغه کسان اصحاب دي د دوږخ یعني ملازمون النار یوم القیامة کما هو معنی الصاحب في اللغة.

قال البغوي رحمه الله قال ابن عباس رضي الله عنه ومحمد بن کعب القرظي وغیرهما من

المفسرين انه لما رئ رسول الله ﷺ تولى د قوم دده يعني اعراض، وشق عليه مباعدتهم عما جاء به من الله ﷻ من التوحيد و القرآن تمنى في نفسه ان ياتيه من الله ما يقارب بينه وبين قومه (په خپل زړه کي يې دا تمنا وکړه چي پر ما خداى ؒ داسي شى نازل کړي واى چي ما او قوم سره نژدې سو)

**درويش وايي:** چي بغوي ؒ خو تابعي نه دى چي دى وايي قال ابن عباس ؓ؟.

**درويش وايي:** چي دا تمنى هيڅ معنى نه لري. ولي چي د عليه الصلوة والسلام دين توحيد وُ او د قوم دين شرک وُ، نو توحيد او شرک بينهما بعد المشرقين څرنګه سره نژدې کېداى سي فهذا افتراء على رسول الله ﷺ، وروسته بغوي ؒ وايي فجلس يومًا في مجلس من قريش فانزل الله سورة النجم فقرئها رسول الله ﷺ حتى بلغ افرئيت اللات والعزى ومناة الثالثة الاخرى. القى الشيطان على لسانه عليه الصلوة والسلام ماكان يحدث ويتمنى. دا تمنى چي عليه الصلوة والسلام په زړه کي درلوده او دا تمنى يې کوله يعني القرب الى القوم، تلک الغرانيق العلى وان شفاعتهن لترتجى، د دغو لوى بتانو د شفاعت ددوى يعني په ورځ د قيامت اميد کړه کېږي.

**درويش وايي:** چي معاذ الله چي عليه الصلوة والسلام دا د تعظيم د بتانو قرب و مشرکانو ته غوښتى وبعيد غاية البعد ان يقدر الشيطان على لسانه المبارکة تلک العبارة التي يلوح عليها امارة الشرک ففيه توهين في الغاية لذاته الکريمة يعني ان يقدر الشيطان ان يلقى على لسانه الطاهرة تلک العبارة، او که داسي روا سي د خلکو د قرآن د نورو آيتو څخه اعتماد پورته کېږي يعني چي هغه به هم القاء الشيطان على لسانه ؓ وي. او سره ددې چي په صحيح حديث کي راغلي دي چي د عليه الصلوة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه چي ستاسو سره هم شيطان سته؟ مبارک ﷺ ورته وويل نعم لکنه اسلم (على صيغة المعلوم يعني زما شيطان اسلام راوړى دى يعني خرق العادة. او أسلمَ على صيغة المجهول يعني زه دده له وسوسو څخه سالم يم) نو پر دواړه تقديره څرنګه دلته شيطان قدرت پيدا کړى چي دده پر مبارکه ژبه يې دا عبارت ورواچاوه؟ تلک الغرانيق العلى آه. ولي چي دا الفاظ مبني په شرک سره دي. فالعجب من البغوي حيث ينسب الى سيد

المفسرين عبد الله بن عباس تلک الرواية وينسبها الى المفسرين ايضًا. ثم قال البغوي چي قريشو چي دا مدح د بتانو ددوی لـه عليه الصلوة والسلام څخه واوريدله ډير خوشاله سوه چي داسي يې وويل قد صالحنا محمد. بغوي وايي چي عليه الصلوة والسلام قرائت د سورت دوام وركړی فقرا. السورة كلها په اخير كي چي آيت: سجدې راغلی عليه الصلوة والسلام سجده تلاوت وكړه، نو مسلمانان چي دلته موجود وه هغو په متابعت د عليه الصلوة والسلام سجده وكړه. او سجده وكړه ټولو مشركينو چي په مسجد حرام كي موجود وه فلم يبق في المسجد مؤمن ولا كافر مگر سجده يې وكړه، نو وليد بن المغيرة او سعيد بن العاص سجده ونه كړه. ولي چي هغه دوه شيخان كبيران وه د سجدې طاقت يې نه درلودی لكن بيا يې هم يو مټ خاوره د بطحاء د شيلې واخستل پر تندي يې كښېښول. بغوي وايي چي قريش سره متفرق سوه او دوی ډير خوشاله وه له ذكر څخه د خدايانو ددوی په ښه نامه ويقولون قد ذكر محمد آلهتنا باحسن الذكر او دا يې وويل چي موږ پوه سوو چي الله تعالى حي ويميت ويرزق ولكن آلهتنا هذه تشفع لنا عنده تعالى فاذا جعل لها محمد نصيبًا فنحن معه. نو موږ ده ملگري يو. بغوي وايي چي ماښام جبرئيل و عليه الصلوة والسلام ته راغلی فقال يا محمد ﷺ ماذا صنعت؟ تا څه وكړه؟ لقد تلوت على الناس مالم اتک به عن الله ﷻ يعني تلک الغرانيق العلى وان شفاعتهن لترتجى.

**درويش وايي:** چي جبرئيل په نزول كي د ټولو سورتو موجود ؤ، نو ده ولي شيطان پرېښو چي د عليه الصلوة والسلام پر مباركه ژبه دغه عبارت ورواچوي؟ دا القاء خو په منځ كي د سورت د جبرئيل خو تر اخيره د نزول د سورت موجود ؤ. نو شيطان څرنگه وكړای سوای چي سره د موجوديته د ملكي مقربي د عليه الصلوة والسلام پر ژبه غير موحى اليه عبارت ورواچوي؟ بغوي وايي چي ماښام جبرئيل راغلی دا خبره يې و عليه الصلوة والسلام ته وكړه. نو جبرئيل په وخت كي د دغې خبرې كولو هم موجود ؤ لبقاء ايحاء الوحي للسورة. نو هغه وخت يې د ښې عليه الصلوة والسلام ولي نه خبراوه؟ بغوي وايي فحزن رسول الله حزنًا شديدًا وخاف من الله ﷻ خوفًا كثيرًا فانزل الله تعالى هذه الآية.

**درویش وايي**: چي دا ؤ شان نزول د سورت نجم په نيز د بغوي رح چي مظهري رح هم په د پر شد او مد سره راوړی دی.

**پوه سه**: چي مظهري رح د مخه وويل چي ماښام سو جبرئيل ع و عليه الصلوة والسلام ته آه. د دې معنى داده چي د دې القاء الشيطان په هغه ماښام بطلان معلوم سو، وروسته مظهري ليکلي دي چي هغه کسان د اصحاب د عليه الصلوة والسلام چي حبشي ته هجرت کړی ؤ خبر سوه چي قريشو ټولو سجده وکړه او داسي خبر هم ورغلی چي قريش او اهل مکه ټول مسلمانان سوله رجع اکثرهم الى قبائلهم وعشائرهم بمكة، چي دوی مکي ته راتږدي سوه دوی ته دا معلومه سوه چي خبره د اسلام د اهل مکه سراسر دروا غ وه الى اخيره.

**درویش وايي**: چي د مکي او د حبشي تر منځ ډېر لوی مسافت ؤ. نو دوی څرنګه په هغه شپه خبر سوه په اسلام د اهل مکه، په هغه وخت کي خو نه ټيليفون ؤ، نه موبائيل ؤ نه بل کوم تخنيک چي چا د دروا غو خبره و حبشي والو مهاجرينو ته رسولي واى او دوی سم دلاسه راستانه سوي واى؟.

**درویش وايي**: چي وروسته به د مظهري رح نوري خبري هم رانقل کړل سي، اوس وا وری عبارت د لوی محدث مصنف د شفاء قاضي عياض رح. لم يخرج حديث القاء الشيطان احد من العلماء واهل الصحة ولا رواه ثقة سليم متصل وانما اولع به وبمثله المفسرون والمؤرخين المؤلفون بكل غريب المتلقفون من الصحف كل صحيح والتفسير وتعلق بذالک الملحدون مع ضعف نقلته، واضطراب رواياته وانقطع اسانيده واختلاف كلماته. نو يو قائل وايي چي دا القاء الشيطان په لمانځه کي د عليه الصلوة والسلام وه، او بعض وايي چي په مجلس کي د قوم وه کما مر يعني في وقت نزول سورة النجم. بل بيا وايي چي د عليه الصلوة والسلام په زړه کي د غه الفاظ ورو ګرځېدله يعني تلک الغرانيق آه. او بعض وايي چي القاء د شيطان وه پر ژبه د عليه الصلوة والسلام كما ذهب اليه البغوي. او بل بيا وايي چي عليه الصلوة والسلام خو قرائت د سورة النجم پر صحيح وجه وکړی يعني تلک الغرانيق العلى الخ نه وه پکښي. الى غير ذالک من اختلاف الرواة. قاضي عياض رح وايي وممن حكيت هذه الحكاية من المفسرين

والتابعين لم يسندها احد منهم ولا رفعها الى صاحب. قال الخفاجي رح في نسيم الرياض ص ۸۶ ج ۲ ای الی صحابي من اصحاب الرسول الله ﷺ.

**درویش وايي:** چې له دې بيان څخه معلومه سو حال د ماقال البغوي رح قال ابن عباس رضي الله عنه فتامل.

قال القاضي عياض رح واكثر الطرق عنهم ضعيفة واهية والمرفوع فيه في حديث سعيد بن ابي بشر عن ابن عباس رض قال فما احسب الشک في الحديث ان النبي ﷺ كان بمكة وقال البزار رح هذا الحديث لانعلمه يروى عن النبي ﷺ باسناد متصل الا هذا ولم يسنده عن سعيد الا امية بن خالد وغيره مرسلة عن سعيد بن جبير وانما يعرف متصلاً عن الكلبي عن ابي صالح عن ابن عباس رض وقد بين ذالک ابوبكر انه لايعرف من طريق يجوز ذكره الا هذا وفيه من الضعف مافيه واحاديث الكلبي مما لايجوز الرواية ولا ذكره لقوة ضعفه وكذبه.

**درویش وايي:** چې دا وه ترجمه د آيت د بغوي. مظهري او نورو بعضي مفسرينو پر عقيده.

## وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ وَلَا نَبِيٍّ إِلَّآ إِذَا تَمَنَّىٰٓ

موږ نه دی استولی تر تا د مخه يو رسول يا نبي، (الا اذا تمنّٰى) قال غير واحد التمنّي القرائة وكذا الامنية كما في قول حسان رض في واقعة شهادة عثمان رض:

تمنّى كتاب الله اول ليلة............ تمنّى داوٗد الزبور على رسل

**درویش وايي:** چې د نبي او د رسول فرق به ان شاء الله موږ وروسته بيان کړو لان في تفسيرهما اختلاف كثير.

## أَلْقَى ٱلشَّيْطَٰنُ فِىٓ أُمْنِيَّتِهِۦ

اى في قرائته يعني ما يرضى به قومه من قوله تلک الغرانيق العلى آه.

## فَيَنسَخُ ٱللَّهُ مَا يُلْقِى ٱلشَّيْطَٰنُ ثُمَّ يُحْكِمُ ٱللَّهُ ءَايَٰتِهِۦ ۗ

نو خدای جل جلاله باطل کړ خوي هغه شی چې شيطان يې القاء کړی وي په قرائت د عليه الصلوٰة والسلام. وروسته خدای جل جلاله محکم کړ خوي آيات خپل يعني على نهج ما نزل خاليًا عما غلط به الشيطان في قرائته.

**دقيق سوال:** څرنګه روا دی الغلط په قرائت کي د قرآن پر نبي ﷺ، او سره ددې چي نبي "معصوم په اصل کي د دين دی. قال الله تعالى لا ياتيه الباطل (الضمير راجع الى عليه الصلوة والسلام او القرآن) والباطل من اسماء الشيطان. ولهذا قال العلامة البيضاوي رحمه الله ما ذكر في شان نزول القرآن يعني الآية المذكورة والقاء الشيطان في قرائته مردود عند المحققين؟

**ځواب:** ددې سوال په ځواب کي اختلاف دی د علماؤ، بعض علماء وايي ان رسول الله ﷺ لم يقرء تلك الغرانيق العلى الخ. ولا سمع اصحابه لكن د قرائت په منځ کي عليه الصلوة والسلام لږ وقفه وکړه په دغه وخت کي شيطان په اسماع د مشرکانو دغه الفاظ ورواچول. نو د مشرکينو دا خيال سو چي دا الفاظ عليه الصلوة والسلام وويل.

**درويش وايي:** چي دا ځواب ډېر موذون او له غشه خلاص ځواب دی. او قتاده وايي چي عليه الصلوة والسلام اغفى اغفاء فجرى على لسانه بالقاء الشيطان على سبيل السهو والنسيان پدې رنګه خدای ﷻ تنبيه ورکړه.

**درويش وايي:** چي هذا الجواب غير مناسب لمرتبة الجليلة اى النبي عليه السلام.

**سوال:** په دواړو صورتو کي يعني که مذکوره الفاظ عليه الصلوة والسلام ويلي وي او د خلګ ګومان دا سوی وي چي عليه الصلوة والسلام وويل او که پر ژبه د عليه الصلوة والسلام جاري سوي په حال کي د اغفاء د قرآن کريم څخه وثوق او اعتماد د خلګو پورته کېږي؟

**ځواب:** خدای ﷻ تکفل وکړی له وثوق څخه بقوله فينسخ الله ما يلقى الشيطان اى يبطله ويظهر على الناس انه من القاء الشيطان ثم الله يحكم آيته المنزلة اى يحفظها من لحوق الزيادة من الشيطان.

## وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝

او خدای ﷻ پر هر شي علم لري او په هر کار کي حکمت لري لان الجهل بشئ والعبث محالان على الله. وفي البحر ان هذه القصة سئل عنها محمداً ابن اسحاق جامع السيرة النبوية، نو محمد بن اسحاق رحمه الله وويل هذه القصة من وضع الزنادقة وصنف محمد بن اسحاق رحمه الله في ذالك كتاباً، وقال الامام ابو المنصور

الماتريدي رح في كتاب خصص الاتقيا، الصواب ان قوله تلك الغرانيق العلى وان شفاعتهن لترتجى من جملة ايحاء الشيطان الى اوليائه من الزنادقة حتى يلقوبها بين الضعفاء وارقاء الدين ليرتابوا في صحة الدين، وحضرة الرسالة بريئته من مثل هذه الرواية وذكر غير واحد من علماء الدين انه يلزم على القول بذالك النبي ﷺ بسبب القاء الشيطان امور منها تسلط الشيطان على النبي ﷺ وقد قال الله تعالى للشيطان ان عبادي ليس لك عليهم سلطان، وقال الله تعالى انه ليس له (اى للشيطان) سلطان على الذين آمنوا الى غير ذالك.

**درويش وايي**: چي د عموم صالحينو د امت محمديه دا حال دى چي شيطان تسلط نه پر لري فكيف يكون له تسلط على سيد الصالحين وسيد المرسلين. ومنها النبي ﷺ في القرآن ماليس منه وذالك مستحيل على رسوله ﷺ لمكان العصمة، ومنها اعتقاده النبي ﷺ ما ليس بقرآن قرانا مع كونه بعيداً الالتيام متناقضا ممتزج المدح بالذم وهو خطاء شنيع لاينبغي ان يتساهل في نسبته الى رسول الله ﷺ ومنها اما انيكون النبي ﷺ حين نطقه بتلك الكلمات معتقداً ما اعتقده المشركون في مدح آلهتهم وهو كفر محال في حقه عليه السلام واما انيكون معتقداً معنى آخر مخالفا لما اعتقدوه ومباينا لظاهر العبارة او هغه معنى يې و خلكو ته نه كړه بيان مع فرح المشركين وادعائهم انه مدح لآلهتهم فيكون هو ﷺ مقراً لهم على الباطل وحاشاه الله وهو يستلزم كونه ﷺ على غير بصيرة فيما يلقى اليه من الوحي الى غير ذالك وقد اجتمعت الامة على ما قال القاضي عياض رح على عصمة النبي ﷺ فيما طريقه الابلاغ من الاقوال والاخبار بخلاف ماهو الواقع لاقصداً ولا سهواً.

**درويش وايي**: چي د ما ذكرنا من الاستحالات الواردة على صحة القصة ذهب الى صحة القصة (١) الحافظ ابن حجر العسقلاني الشافعي رح في شرح البخاري (٢) شيخ جلال الدين السيوطي رح من الشافعية (٣) البغوي الشافعي رح (٤) والمظهري ايضا مصر على صحة القصة متابعة للبغوي.

ع: ..... وللناس فيما يعشقون مذاهب.

**درويش وايي**: چي و ممن ذهب الى عدم صحة القصة (١) الشيخ الامام ابو

منصور الماتريدي رح امام الحنيفية في العقائد (۲) امام محمد بن اسحاق رح
جامع الشريعة النبوية (۳) صاحب تفسير بحر العلوم الامام السمرقندي رح (۴)
السيد الآلوسي الحنفي رح صاحب روح المعاني فانه وان بين الاختلافات كما
ينبغي لكن مال في الآخير الى عدم صحة القصة (۵) المحقق ناصر الدين
البيضاوي الشافعي رح (۶) المحدث الكبير القاضي عياض رح في الشفا، وقد
نقل قاضي عياض رح اجماع الامة على ذالک كمامر عنقريب (۷) والفقير الايوبي
جامع هذه الاوراق (۸) صاحب التنقيح في الاصول (۹) والى عدم صحة القصة
مال الشيخ ابو الحسن الاشعري رح وتفصيله في روح المعاني.

**درويش وايي:** چي سيد آلوسي رح په روح المعاني كي يو داسي تفسير ددې
آيت كړى دى چي د هغه ماقبل چون وچرا اخلاص دى، حيث قال وفي هذه الآية
تسلية للنبي ﷺ بان السعي في ابطال الآيات امر معهود وانه لسعي مردود،
والمعنى على هذا وما ارسلنا من قبلک رسولاً ولانبيًا الا وحاله انه اذا قرا. شيئًا
من الايات القى الشيطان الشبه والتخيلات فيما يقرؤه (اى الرسل والانبياء) على
اوليائه (پر خپلو دوستانو يعني د شيطان دوستان چي كافران او ملحدان دي)
ليجادلوه بالباطل ويردوا ماجاؤا به (چي ناحقي بحث وكړي اولياء د شيطان د
ماجاء من الله سره په باطل خبرو او رد كړي اوليا، الشيطان هغه آيات چي رسل او
انبياء راوړي دي) كما قال الله تعالى وانهم ليوحون الى اوليائهم ليجادلوكم،
وقال الله تعالى: وكذالک جعلنا لكل نبي عدوًا شياطين الانس والجن، يوحى
بعضهم الى بعض زخرف القول غرورًا. ومثل له بقولهم، اى اوليا، الشياطين من
المشركين عند سماع قوله تعالى حرم عليكم الميتة وقرئته عليه الصلوة والسلام
على الناس. فاوحى الشياطين الى اوليائهم من المشركين. انه يحل ذبيحة نفسه
ويحرم ذبيحةُ الله يعني الميتة يعني په داسي شيطاني خبره دوى د خداى ﷻ دين
له منځه وړي، يا مثلاً چي دا آيت نازل سو: انكم وماتعبدون من دون الله حصب
جنهم، نو شيطان دوى ته په زړو كي دا ښوونه وكړه چي عيسى؈ خو هم عبد من
دون الله او ملائكة؈ خو هم عبد وا من دون الله دي.

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير ترجمه د آيتو داسي ده (فينسخ الله ما يلقى

الشيطان) خدای ﷻ د غه شبهې باطلوي او له منځه يې وړي يا په توفيق د نبي ﷺ لیږدها او په نازولو د ما يږدها او ددې آيت ثم يحكم الله آياته معنى داده چې د آينده لپاره به خدای ﷻ داسې آيتونه نازلوي چې په هيڅ وجه به رد او شبهو د شيطانانو و خپلو اولياؤ ته قابل قبول نه وي.

**پوهسه:** چې ثم په دې آيت کې لپاره د تراخي رتبې ده، ولې چې اولاً را استول اعلى رتبهٔ دی تر نسخ کولو. او صيغه د مضارع دواړه ځايه لپاره د استمرار تجددي دی.

**فائده:** په يحكم الله کې لفظ دال پر ذات جليل يعني الله او سره ددې چې ځای خو د اضمار ؤ لذكره في الآية السابقة لزيادة التقرير والاعلام بان الالوهية من موجبات احكام آياته تعالى الباهرة او د والله عليم حكيم معنى پر دې تقدير داده چې خدای ﷻ په هر شي خبر دی او په هر شي کې حکمت لري چې يو له هغو څخه په دې ځای کې تمكين د شيطان دی چې القاء د شبهو په زړو کې د اولياء ددوی وکړي او دوی مجادله وکړي په هغو شبهو سره د عليه الصلوة والسلام سره او د مؤمنانو سره. او خدای ﷻ بيا و خپل رسول ته لار د رد د هغو شبهو وروښيي.

لِّيَجْعَلَ مَا يُلْقِي الشَّيْطَٰنُ فِتْنَةً لِّلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ وَالْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُمْ ۗ

يعني چې خدای ﷻ وګرځوي هغه څه چې شيطان يې القاء وکړه يعني خدای تمكين ورکړی شيطان ته چې دا مذكوره القاء يې وکړه (يعني وتلک الغرانيق العلى الى اخر الآية (فتنةً) مفعول ثاني دی د يجعل چې فاعل يې ضمير راجع ؤ ولفظ الله ته او ما يلقى يې مفعول اول ؤ. د فتنةً معنى امتحان او بلا ده) د هغو کسانو لپاره چې په زړونو کې يې شک او نفاق وي (والقاسية قلوبهم) عطف دی پر موصول چې زړونه يې سخت دي ای المشركين.

وَإِنَّ الظَّٰلِمِينَ لَفِي شِقَاقٍ بَعِيدٍ ۝٥٣

په تحقيق ظالمان چې اهل نفاق او شرک دي په خلاف کې د حق سره او يا د رسول او مؤمنانو سره (بعيد) چې ډېر سخت او لرې دي. بغوي ؒ وايي چې دا آيت چې نازل سو قريشو وويل چې محمد (ﷺ) پښېمانه سو پر هغه خبره يعني چې هغه خو القاء د

شيطان وه يعني چي زمور د بتانو په منزله يې بيان کړه په نېز د خداى ﷻ، د دوى هغه خبره مراد وه وتلک الغرانيق العلى الخ. نو اوس يې تغير ورکړى او هغه خبره چي منيه د شيطان وه د هر مشرک په خوله کي وه، نو نورهم د قريشو عداوت د عليه الصلوة والسلام سره ډېر سو او پر مسلمانانو د مکې يې ربړول او ازارول تر پخوا زيات کړه.

## وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَيُؤْمِنُوا بِهِ

(وليعلم) عطف دى پر (ليجعل) واللام ههنا متعلق بمقدر محذوف يعني فعلنا تمكين الشيطان على الالقاء، ثم نسخ د ما يلقى الشيطان د دوو حکمتو لپاره اول لنجعل ما يلقى الشيطان الخ. دويم وليعلم آه.

**ترجمه:** وليعلم: يعني هغه کسان چي علم ورکړل سوى دى يعني بالله واحكامه (انه) يعني هغه چي خداى ﷻ محکم کړه له آياتو څخه د قران او القاء الشيطان يې څندي نسخ او خارج کړى (الحق من ربک) يعني نازل له طرفه څخه د خداى ﷻ دي، نو دوى به ايمان راوړي پر قرآن ويعتقدوا انه من الله خصوصاً في هذا المقام او يا ضمير راجع دى و خداى ﷻ ته يعني ايمان به راوړي پر خداى ؑ او د هغه پر حکمت فيما يفعل.

## فَتُخْبِتَ لَهُ قُلُوبُهُمْ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ لَهَادِ الَّذِينَ آمَنُوا إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٥٤﴾

خشوع او عجز به مختاره کړي خداى ﷻ په زړونو د دوى بالانقياد والاطمنان بما فعل الله في هذا المقام، او په تحقيق خداى ؑ هدايت کونکى دى هغه کسانو لره چي ايمان راوړي پر قرآن او د خداى ﷻ پر حکمو او مصالحو. يعني چي يو مشکل ورپېښ سي وسمي لارې ته راسي اى اعتماد صحيح و طريق سوى وهو الاسلام وحل المشكل الذي عرض لهم.

## وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي مِرْيَةٍ مِّنْهُ

او همېشه هغه کسان چي کفر يې مختار کړى دى په شک کي دي چي ناشي له قرآن څخه دي يعني د دوى په اذهانو فاسده وو کي. او يا ضمير راجع دى و عليه الصلوة والسلام ته يعني دده په رسالت کي. او مما القى الشيطان في امنيته يعني دا گمان کوي چي دا ملقى صادق رښتيا وه وتلک الغرانيق العلى آه لکن محمد ﷺ بيرته رجوع څندي وکړه.

حَتّٰى تَأْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً اَوْ يَأْتِيَهُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيْمٍ ۝

تر هغه وخته پورې به دا مريه په دوی کې باقي وي چې دوی ته راشي ساعت يعني وقت الموت بغتة ناببره، مفعول مطلق دی يعني اتيانًا بغتةً او يا راشي دوی ته عذاب د ورځې چې وچه وي يعني ورځ د قيامت.

**پوه سه:** چې ورځ د قيامت چې وچه بولي په دې سبب چې شپه نه پسې راځي لکه وچه ښځه چې نه لنګېږي، دا قول د عکرمه او د ضحاک رح دی. او بعض مفسرين وايي چې له ساعت څخه قيامت مراد دی، او له يوم عقيم څخه مراد د بدر ورځ ده چې په هغې ورځې کې کافرانو لره خير نه ؤ والعقيم في اللغة ما لاخير فيه ومنه الريح العقيم چې هغه باد دی چې خير د باران نه وي پکښې. او بعض مفسرين وايي چې ساعت او يوم عقيم دواړه سره يو دي وهو يوم القيامة. درويش وايي والافادة خير من الاعادة فافهم.

اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِّلّٰهِ ۭ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ ۭ

بادشاهي او حکمراني په دغه ورځ چې هغه مريه له زړو څخه ووځي (لله) يعني وحده، حکم به کوي خدای پاک په مجازات سره، بينهم ضمير راجع دی و مؤمنين او کافرين ته يعني مؤمنان به مهمان سرای ته د جنت بوزي او کافران به و محبس ته د دوزخ تېله کړي، دا جمله مستانفه وه.

فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝

الفا لتفصيل حکم الله في ذالک اليوم، نو هغه کسان چې ايمان يې راوړی وي او اعمال صالحه يې کړي وي په جنتو کې د نعمتو دي يتنعمون فيها.

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا فَاُولٰۗىِٕكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۝

او هغه کسان چې کفر کوي او تکذيب کوي د آياتو زمونږ يعني قرآني آيات دروغ بولي، هغه کسان دوی لره عذاب دی د اهانت او سپکاوي.

**بوسته:** څه حکمت الهي دی چې د مؤمنانو د حال په بيانولو کې فا، د سببيه نه راوړه او د کافرانو د حال په بيانولو کې يې فاؤلئک فا سببيه راوړه؟

**ځواب:** په دې کې اشاره ودې ته ده چې دخول د جنت تفضل او احسان دی د

خدای ﷻ د دوی سره اعمال صالحه یې سبب نه دی لانهم کاجیر یاخذ الاجر قبل العمل یعني نعم الدنیا من الصحة وسلامة الاعضاء والرزق وغیرها. او عذاب مهین د کافر په سبب د کفر د دوی. وقد جاء في الحدیث ما یؤید ذالک حیث قال رسول الله ﷺ لن ینجی احد عمله (هرگز نجات نسي ورکولای یعني له عذاب څخه د خدای ﷻ عمل دده) قالوا ولا انت یا رسول الله (نه سي تاته نجات در کولای ستا عمل یا رسول الله؟) قال ولا انا الا یتغمدني الله برحمة وفضل منه (علیه الصلوة والسلام زیاته کړه نه ماته نجات را کولای سي عمل زما مگر نه چي ما پټ کړي خدای ﷻ په رحمت او فضل خپل) متفق علیه.

**پوښتنه:** د قرآن مبارک په بل ځای کي راغلي دي. ادخلوا الجنة بما کنتم تعملون. د دې آیت څخه دا صراحةً معلومېږي چي دخول د جنت په سبب د عملو دی؟

**ځواب:** دا آیت محمول دی پر دې چي په جنت کي منازل متفاوته سته في الشرف چي هغو منازلو ته داخلېدل په سبب د اعمالو دی، واما اصل دخول الجنة والخلود فیها فضل الرحمن ﷻ.

**الفائدة الموعودة في الفرق بین الرسول والنبي**

**درویش وایي:** چي ما وعده کړې وه په تفسیر کي د هغه آیت (وما ارسلنا من قبلک من رسول ولا نبي) چي زه په تاسي ته د رسول او نبي فرق بیان کړم. د ایفاء بالوعد وایم.

**پوه سه:** چي مشهوره داده چي رسول هغه چاته وایي یعني په شرع کي چي نوی کتاب لري. والنبي اعم منه یعني سواء کان له کتاب او یعمل بکتاب نازل قبله علی غیره لکه انبیاء د بني اسرائیلو چي عدد یې څلور زرو ته بالغ ؤ. او د ټولو عمل په تورات ؤ چي نازل پر موسی علیه السلام ؤ. وفي هذا الفرق نظر قوي چي په حدیث صحیح کي راغلي دي چي د علیه الصلوة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه کم عدد الانبیاء؟ ده ورته وویل مائة الف وعشرون الفًا. هغه سړي پوښتنه ځندي وکړه وکم الرسل منهم؟ قال (۳۱۳) جمًا غفیرًا او په صحیح حدیث کي راغلي دي چي کتب منزله من عند الله (۱۰۴) کتابونه دي. نو که په رسول کي کتاب شرط سي نو پر (۳۱۳) باندي (۱۰۴) کتابونه څرنګه رسېږي. او هغه توجیه چي مولی شمس الدین الخیالي په حاشیه کي د شرح العقائد النسفي کړې ده یعني قول په تکرار د نزول (۱۰۴) کتابونه پر (۳۱۳)

بالذي كما ان سورة الفاتحة نزلت مرتين مرة بمكة ومرة بالمدينة عند تحول القبلة فليس بشئ لان تكرار نزول الكتب لم يجئ في حديث من الآحاديث النبوية واما قياسها على تكرار الفاتحة فلا يصح لانه ثابت بالنص. او بعض علماء وايي چي د رسول او د نبي تر منځ عموم خصوص من وجه دى فمثل موسى و عيسى وغيرهما عليهم السلام رسول او نبي دى. ومثل انبياء بني اسرائيل انبياء لارسل ومثل جبرئيل رسول لانبي وفيه نظر من وجهين. الاول ان هذا الفرق مبني ايضًا على اشتراط نزول الكتب على الرسل وقد مر عنقريب ان هذا الفرق لايصح. والثاني ان جبرئيل رسول بالمعنى اللغوي والكلام في الرسل بالمعنى الشرعي. والصحيح في الفرق بينهما ما قال المظهري ان الرسول من بعث بشريعة مجددة يدعوا الناس اليها سواء معه كتاب اولا. كه دا شريعت مجددة وكه الهامًا او كه منامًا مجدد وي. والنبي يعمه ومن بعث لتقرير شرع سابق كانبياء بني اسرائيل. او دا فرق روح المعاني هم راوړى دى.

**درويش وايي**: چي روح المعاني نوري معاني د رسول او د نبي هم ذكر كړي دي تركناها لحال الطول في التفسير والتعب على المتعلمين.

وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ قُتِلُوا أَوْ مَاتُوا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللَّهُ رِزْقًا حَسَنًا

او هغه كسان چي د خپلو وطنو او قبائلو څخه يې هجرت كړى وي (يعني لشدة اذى المشركين اياهم) په طلب كي د رضاء د خداى ﷻ بيا قتل كړل سوي وي په جهاد كي يا په خداىي مرګ مړه وي، والله چي خداى ﷻ به رزق وركړي ودوى ته يعني في الجنة دار النعيم والسرور والخلود ښه رزق چي نه چا په سترګو ليدلى وي او نه چا په غوږو تفصيلاً اورېدلى وي او نه د چا پر زړه وركرځېدلى وي.

وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ۝

خداى ﷻ ښه رزق وركونكى دى چي نه قطع كېږي او نه يې مثل چا ليدلى دى.

لَيُدْخِلَنَّهُمْ مُدْخَلًا يَرْضَوْنَهُ ۚ وَإِنَّ اللَّهَ لَعَلِيمٌ حَلِيمٌ ۝

هر آئينه به داخل كړي دوى و داسي ځاى ته چي راضي به وي دوى په هغه ځاى لان فيها ماتشتهيه الانفس وتلذبه الاعين، په تحقيق خداى ﷻ په احوالو ددوى او د معاندينو ددوى ښه خبر دى او حليم دى چي ژر عقوبت و دښمن ته وركوي. او دا حلم د خداى مشركان، كافران او عاصيان غولولي دي قالوا اعوذ بالله من

غضب الحليم لانه اذا اخذه لم يفلته چي په عذاب يې ونسي بيا يې نه پرېږدي.

ذٰلِكَ ۚ وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ مَا عُوقِبَ بِهٖ

اى الامر ذالک يعني ذالک خبر د مبتدا، محذوفي دى. او که چا عقاب ورکړى و جاني ته په مثل د ماجنى عليه.

**پوښتنه**: ما وقع ابتداءً ته څرنګه عقاب وويل شو، سره ددې علماء ټول وايي چي عقاب جزا، ته د جنايت وايي، وجه التسمية بالعقاب لانه يجى عقب الجناية او سره ددې چي د اول جاني دا خو عقيب الجناية نه دى بلکې ابتداء الجناية؟

**ځواب**: يا دا مشاکله له سببه ددې چي د مجنى عليه دا خو عقاب ؤ او يا له دې سببه چي ابتداء د جنايت خو سبب ده عقوبت د هغه بل سړي له خوا او ګرځېدل. نو اطلاق يې وکړى د مسبب پر سبب مجازًا مرسلاً، او بعض محققين وايي چي نه مشاکله ته ضرورت سته او نه مجاز ته ولي چي په عرف کي عقاب نفس عذاب ته وايي که څه هم جزاء د جنايت نه وي، نو د اول جاني دا خو هم عذاب ؤ که څه هم د جنايت جزا، نه ده فافهم، دا جمله مستانفه ده.

ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ لَيَنْصُرَنَّهُ اللّٰهُ ۗ إِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ۝

بيا بغاوت او ظلم وکړل سو د ظالم اول له خوا څخه پر هغه مظلوم چي اول وار يې د ظالم څخه خپل کسات اخستى ؤ، خداى ﷻ حتمًا دده سره کومک کوي يعني دده مکافات خداى پاک اخلي د ظالم معاود بالظلم څخه، په تحقيق خداى ﷻ عفوه کونکى دى هغه چالرچي اول وار يې د ظالم څخه کسات اخستى ؤ او بخښونکى دده.

**پوښتنه**: مظلوم څه ګناه وکړه خو خپل کسات يې له ظالم څخه واخستى؟

**ځواب**: دده ګناه داده چي د نفس او شيطان په خوله يې وکړه چي انتقام يې واخستى او هغه کار يې پرېښنو چي د خداى ﷻ خوښ ؤ قال الله تعالى ولمن صبر وغفر ان ذالک لمن عزم الامور، په تحقيق هغه څوک چي صبر وکړي پر عذاب ورکولو د بل چا او بخښنه ورته وکړي په تحقيق د عزيمت له کارو څخه دى، يعني کسات اخستل که څه هم رخصت دى لکن عفو او مغفرت عزيمت دى.

**پوهسه**: چي په دې آيت کي باعثه کول دي د مظلومانو پر عفو او مغفرت و

ظالم ته فانه تعالى مع كمال قدرته وعلو شانه لما كان يعفو ويغفر للظالمين فغيره اولى بذالك وتنبيه على انه قادر على العقوبة للظلمة اذ لايوصف بالعفو الا القادر على العقوبة.

**پوښتنه:** د خداى ﷻ عفو و ظالم او كافر ته چي پر ظلم او كفر باندي باقي وي څه شي ده؟

**ځواب:** سره د كفر او شرك خداى ﷻ رزق او صحت وغيرهما وركوي، سعدي شيرازي وايي:

اى كريمى كه از خزانه غيب...... گبر وترسا را وظيفه خوردارى

دوستان را كجا كنى محروم...... تو كه با دشمنان نظر دارى

ايضًا:

اديم زمين سفره عام اوست........ برين خوان يغما چه دشمن چه دوست

**ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِى النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِى الَّيْلِ**

دا نصرت چي خداى ﷻ كوي د مظلومانو سره سبب د دې چي خداى قادر دى پر هر شي چي يو له هغو څخه مداولت د اشياء متعانده و ترمنځ چي داخلوي الليل يعني ساعات د شپې نو شپه لنډه سي او ورځ اوږده سي، او داخلوي ساعات د ورځي په شپه كي نو شپه اوږده سي او ورځ لنډه، نو له اول سرطان څخه ورځ ډېره اوږده وي او شپه لنډه چي دوبى يې بولي او د منقلب صيفي څخه شروع كېږي رفته رفته پر منقلب شتوي ورځ پر كمېدو سي او شپه پر اوږدېدو سي او پر اعتدالينو شپه او ورځ په ساعات كي سره يو شي سي وهكذا.

**وَاَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ﴿٦١﴾**

او بل دا چي په تحقيق خداى ﷻ اورېدونكى دى د اقوالو د ظالم او مظلوم، او يا معنى دا ده چي سميع دى د دعاء د مؤمنانو په شدائدو كي نو خداى ﷻ قبلونه د دوى د دعاء كوي او له شدائدو څخه يې خلاصوي وامثال ذالك (بصير) دانا دى په افعالو د ظالم او مظلوم نو مهمل يې نه پرېږدي.

ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ

يعني د دغه اتصاف د خدای ﷻ په کمال قدرت سره کمايدل عليه قوله تعالى يولج الليل في النهار آه او په کمال علم سره الدال عليه سميع بصير په سبب د دې ثابت دی چي خدای ﷻ حق يعني واجب لذاته دی الثابت بنفسه وحده وقد تقرر في علم الکلام بکمال التفصيل واتم بيان ان وجوب وجوده ووحدته يستلزمان انيکون هو سبحانه پيدا کوونکی دی د ټولو مصنوعاتو ولابد في ايجاده کل مصنوع على الوجه البديع واحکمه من کمال عمله تعالى نو نتيجه دا سوه چي مستحق د عبادت او تضرع يوازي هم دی دی ما اشار اليه بقوله.

وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ هُوَ الْبَاطِلُ

او هغه شيان چي خلک يې عبادت کوي هغه باطل دي.

**پوهسه**: چي کلمه د ان لپاره د تحقيق د مضمون د مابعد ده او کلمه د ما موصوله ده او عائد يې محذوف دی ای يدعونه.

**فائده**: له باطل څخه که مراد باطل في حد ذاته يعني چي واجب الوجود نه دی نو ان مايدعون موجبه کليه ده يا مراد داسي چي باطل الوهية دی يعني وصف د معبوديت يې باطل دی، او که له باطل څخه مراد دا وي چي مايدعون من دونه غلط او بېکاره شيان دي، نو سوال دا پيدا کېږي چي بعض مشرکين د ملکو عبادت کوي او نصارى د عيسى ؑ عبادت کوي او دا خو غلط او بېکاره شيان نه دي. نو دا آيت قضيه مهمله ده په قوت کي د قضيه جزئيه يعني بعض مايدعون وهو اصنام المشرکين، باطل دي په معنى مذکوره والى هذا اشار السيد محمود الآلوسي ؒ في روح المعاني بقوله ولعل الحصر غير مراد آه.

وَأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ﴿۶۲﴾

هذه الجملة عطف على قوله ان الله هو الحق د علي معنى دا ده چي خدای ﷻ بلند دی د دې څخه چي ده لره شريک په معبوديت کي وي سواء کان من ذوی العقول کالملائکة وعيسى او غيرهم کاصنام المشرکين او د کبير معنى دا ده ليس کمثله شئ.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً

**پوهه سه**: چي استفهام انکاري دی او نفي د نفي اثبات دی یعني (تر) او مخاطب د (تر) هر څوک دی چي صالح د خطاب وي، او رؤیة یا بصري دی یعني ته نه وینې یا علمي دی یعني الم تعلم (ان الله انزل من السماء ماء) مفعول به د (تر) دی چي خدای ﷻ نازل کړی له اسمان څخه یا له وریځي څخه لان کل ما علاک سماء او به یعني د باران.

فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً ۗ إِنَّ اللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ

نو وګرځي مځکه زرغونه یعني په قسم قسم نباتاتو سره (لطیف) د لفظ لطف څخه ماخوذ دی په معنی د مهرباني یعني د خدای ﷻ لطف و هر شي ته شامل دی، او یا په معنی د دقیق دی یعني یصل علمه الی کل ما دق وجل ته او خبر دی په احوال ظاهره او باطنه وو سره د بندګانو او بما یحتاجون الیه من ثمار الارض وزروعها فلذالک انزل من السماء ماء لان ذلک الماء سبب لارزاق العباد و الحیوانات.

**سوال**: انزل ماضي صیغه وه نو تصبح یې مضارع ولي راوړه؟

**جواب**: لپاره د احضار د صورت ماضیه وهذه الآیة دلیل اخری پر کمال علم او قدرت ولي چي د مځکي لپاره دا لکه بعث بعد الموت دی د انسانانو لپاره.

لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ

هم ده لپاره دي هغه څه چي په اسمانو کي دي او هغه چي په مځکه کي دي ملکا وخلقا، او په تحقیق خدای ﷻ غني دی په ذات کي د هر شي څخه یعني د بندګانو عبادت ته محتاج نه دی، او مستحق د حمد دی په سبب د صفاتو کاملو من الجلالیة و الجمالیة او په سبب د افعالو چي مشتمل پر حکمت او عدالت دي کې څوک حمد وایي او که نه.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ

الرؤیة ههنا علمیة و المخاطب کل من یصلح للخطاب، آیا ته علم نه لري (والاستفهام للتقریر ای حمل المخاطب علی الاقرار) چي خدای ﷻ مسخر کړخولي دي ستاسي د نفع لپاره هغه شیان چي په مځکه کي دي یعني ذلیل یې

گرځولي دي چي تاسي نفع پر واخلئ لکه اوښان. غوايي، پسونه وغيرها چي
تاسي به پر سپربږئ پر بعضو او قولبه کښي به په کوئ په بعضو، او غوښي به
خورئ د ټولو مذکوره وو، او ورئ به يې هم ستاسي په نفع کي تمامي وي.

**فائده:** که استفهام انکاري سي او نفي د نفي اثبات سي هم ر تقرير ته راجع کېږي.

## وَالْفُلْكَ تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ

(والفلک) عطف دی پر مافي قوله مافي الارض، او مسخره يې گرځولي دي
کښتياني چي رواني دي په درياب کي په امر او قدرت د خدای ﷻ سره ددې په
دې کښتيو کي د هر نفر سپاره وي او درانه بارونه ورسره وي يعني تجارتي اموال
په دې کي هم ستاسي لپاره نفع ده چي د درياب تجارت چي له انفع تجاراتو څخه
دی پکښي کوئ په اغلب اوقاتو کي خدای ﷻ له غرق څخه ساتلي دي او سره
ددې چي يو کوچنی ډبره چي درياب ته وغورځول سي فوراً ډوبېږي.

**پوه سه:** چي ما ترجمه د فلک په کښتيانو سره وکړه چي جمع لفظ دی او داسي
ترجمه مي ونه کړه کښتي چي مفرد لفظ وي ددې سببه چي په وروسته لفظ کي د
تجري مؤنث ضمير و فلک ته راجع دی نو حتمًا به فلک جمع وي چي په تاويل د
جماعت مؤنث ضمير ورته راجع سي.

**فائده:** په لفظ کي د فلک مفرد او جمع سره برابر دي او فرق يې صرف
اعتباري دی، که له لفظ څخه د فلک مفرد مراد وي، نو ضمه د فاء لکه ضمه د قُفل
ده چي مفرد دی، او که چېري جمع مراد وي ضمه د فاء يې ضمه د اسد ده چي جمع
د اسد دی فليکن هذه الفائدة على ذكر منك تنفعك في مواضع شتّى.

## وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ أَنْ تَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ إِلَّا بِإِذْنِهِ

او ساتلي دی خدای ج اسمان سره د غايته ثقل ان تقع ای من ان تقع چي راو ه
دي لوېږي پر ځمکه، مگر نه په اراده د خدای ج. بيضاوي رح وايي چي اسمانونه
خدای ﷻ پر داسي صورتو پيدا کړه چي مقتضی د استمساک دي، او مظهري
وايي چي له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي اجسام الفلکية لکه اجسام ارضيه
ميل و ماتحت ته کوي وانما امسكها الله تعالى بقدرته.

**درویش وایي:** چي روح المعاني او امام رازي په دې آیت کي اوږدې خبري کړي دي چي د تفسیر ایوبي د متعلمانو تر فهم لوړي دي الا من شاء الله.

**یوه سه:** چي الا باذنه استثناء ده له مضمون څخه د دې قول د خدای ﷻ یمسک السماء ان تقع على الارض، والتقدير لاتقع على الارض في حال من الاحوال الا متلبسًا باذنه وارادته. بیضاوي وایي وذالک یوم القیامة او امام آلوسي اول داغه خبره کړې ده چي اسمان په ورځ د قیامت سره تیک تیک سي او پر مځکه را ولوېږي، وروسته یې ویلي دي وانما لیس في ذهني من الآيات والاخبار ماهو دال صراحة على ان السماء تقع على الارض وانما هي صريحة في المور، والانشقاق والطي والتبدل كما في الآيات القرآنية في مواضع شتى وكل ذالك لايدل على الوقوع على الارض فضلاً من انتكون صريحة فيه انتهى بادنى تغيير، او مظهري هم ده روح المعاني پر لار روان سوی دی والله اعلم. الآيات القرانية: يوم تشقق السماء بالغمام. ويكون السماء كالمهل. اذا السماء انفطرت. يوم نطوى السماء كطي السجل الآية. والسماء وردة كالدهان.

إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٦٥﴾

په تحقیق خدای ﷻ پر خلکو کثیر الرافة والرحمة دی چي دوی ته یې دلائل د قدرت او د وحدت خپل قائم کړي دي في الانفس والآفاق او دروازې د منافعو یې ورته خلاصي کړي دي، او دفع د مصائبو یې څنډي کړې ده الى غير ذالک.

وَهُوَ الَّذِي أَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ إِنَّ الْإِنسَانَ لَكَفُورٌ ﴿٦٦﴾

خدای ﷻ هغه قادر ذات دی چي تاسي یې ژوندي کړي یاست په نفخ الروح سره په ارحامو کي د میندو وروسته تر دې نطفې واست بیا علقې سواست بیا مظغې وګرځېدلاست وروسته اجساد بې روح واست، بیا یې روح درکړی ژوندي انسانان جوړ سواست، بیا وروسته تاسي وژني بقبض الارواح من اجسادكم، بیا مو ژوندي کوي په اخرت کي باعادة الاجسام او نفخ الارواح فيكم، په تحقیق انسان يعني المشرک المنكر للحيوة بعد الموت (کفور) صيغه د مبالغې ده یعني کثیر الانکار والجحود دی د نعمتو د خدای ﷻ بعد ظهورها رئ العين يعرف الانشاء بعد العدم في الدنيا وينكر الاحيا بعد الافناء في الآخرة.

# لِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا هُمْ نَاسِكُوهُ

**پوه سه:** چي دا جمله مستانفه ده ولهذا لم يورد معها الواو العاطفة مسوقة لزجر معاصريه عليه الصلوة والسلام من اهل الاديان السماوية عن منازعته عليه الصلوة والسلام ببيان حال ماتمسكوا به من الشرائع، والمعنى هر امت لره د امم معينه وو څخه مونږ كرځولى دى شريعت خاصة وتقديم الجار والمجرور للحصر، يعني لا لامة اخرى وضمير هم راجع الى كل امة باعيانهم، فالامة من مبعث موسى الى مبعث عيسى عليهما السلام منسكهم مافي التورات چي دوى هغه شريعت چلاوه او هغه امت چي د عيسى وه تر مبعث د محمد ﷺ منسک او شريعت د هغو ما في الانجيل دوى هغه منسک چلاوه لاغيرهم، واما الامة الموجودة عند مبعث النبي ﷺ الى يوم القيامة منسک د دوى قرآن او شريعت يې ما في القرآن دى ليس الا هو.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله يوه ترجمه د منسک په نقل د انس رضي الله عنه په شريعت سره كړې ده دا ترجمه د ټولو تفاسيرو سره برابره ده، بله ترجمه يې په عيد او اختر سره كړې ده چي د دې مقام سره هيڅ مناسبت نه لري، او بله ترجمه يې په ځاى د ذبح د قرابينو كړې ده چي هم د دې مقام سره هيڅ مناسبت نه لري، او بله ترجمه يې په ځاى د الفت سره كړې ده چي هغه هم د دې مقام سره هيڅ مناسبت نه لري، د درويش مطلب دادى چي تفسير مظهري خو د لغتو كتاب نه دى چي دى د منسک ټول معاني پكښې بيان كړي دا خو تفسير د قرآن مبارک دى، بايد د هر آيت هر څو معاني چي مناسبت لري هغه بيان كړي.، ع وللناس فيما يعشقون مذاهب.

# فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْأَمْرِ

دوى يعني الملل دې نزاع نه كوي د تا سره په امر كي د دين كلمة الفا .ههنا لترتيب النهي عن النزاع على ماقبله فان تعينه تعالى لكل امة من الامم التي من جملتها امت محمد ﷺ شريعت مستقله در لودى، تر دې اندازې پورې چي هر امت ګام نه اړوي تر ماعين لها دا موجب د دې دى چي دا غه امم دې متابعت د شريعت نبوي وكړي او په امر د دين دده دې رد نه كوي په ګمان د دې چي زمونږ شريعت خو مابين لآبائهم مما في التورات والانجيل فان ذالک الشريعة كان لمن مضى قبل الانتساخ وشريعة محمد ﷺ ناسخة لجميع الشرائع فيما عدا المعتقدات.

**درویش وایي**: چي هغه کسان چي د علیه الصلوة والسلام سره یې نزاع کوله یا جاهلان وه یا اهل عناد وه لکه علماء د بني اسرائیلو، ولې چي حال د دین د علیه الصلوة والسلام و داسي مرتبې ته د ظهور رسیدلی دی چي قابل د نزاع نه دی لانه مؤید من عند الله بالمعجزات الباهرة وکتابه العزیز معجزة باقیة کر الازمان ومر الدهور لقوله تعالی ان کنتم في ریب مما نزلنا علی عبدنا فاتوا بسورة من مثله او هغه قرآن نازل پر محمد علیه السلام دا فیصله کړې ده چي محمد ﷺ خاتم الانبیاء والمرسلین دی.

**درویش وایي**: چي بغوي رحمه الله د دې آیت عامه ترجمه په یوه خاصه ماده سره کړې ده دی وایي چي دا آیت نازل سوی دی في بدیل بن یرقاء او بشر بن سفیان او یزید بن خنیس چي دوی و اصحابو ته د علیه الصلوة والسلام وویل مالکم تاکلون مما تقتلون بایدیکم یعني تذبحونه ولا تاکلون مما قتله یعني المیتة.

ع: ببین تفاوت راه از کجا تا بکجا فافهم.

او زجاج وایي چي معنی د لاینازعنک داده چي لاتنازعهم انت چي نزاع مه ورسره کوه ته کما یقال لایخاصمنک زید ای لاتخاصمه.

**درویش وایي**: چي دا معنی چي زجاج ذکر کړې ده معنی کنایي د لاینازعنک ده. ولې چي منازعه او مخاصمه خامخا د دوو کسو تر منځ وي نو هر یو چي نزاع ترک کړي نزاع له منځه ځي. نو چي علیه الصلوة والسلام چي د دوی نزاع صرف نظر کي خپل تبلیغ ته بلا شاغل دوام ور کړي وهذا انسب بما بعد الآیة یعني قوله تعالی.

**وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ ۖ إِنَّكَ لَعَلَىٰ هُدًى مُّسْتَقِيمٍ ﴿٦٧﴾**

ته خلک رابوله و خدای ﷻ ته یعني توحید ه و عبادته، په تحقیق ته پر برابره لاره یې وحق ته.

**درویش وایي**: چي روح المعاني په دې معنی کنایي کي ډېر بحث کړی دی او سوال او ځواب یې راوړی دی ان شئت فارجع الیه.

**وَإِن جَادَلُوكَ فَقُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿٦٨﴾**

که دوی ناحقه بحث در سره کوي یعني بعد ظهور الحق ولزوم الحجة، ته ورته ووایه چي خدای ﷻ خبر دی په عمل ستاسي. نو کلمه د ما مصدریه ده، یا موصوله ده عائد یې محذوف دی ای تعلمونه من المجادلة الباطلة وغیرها یعني خدای ﷻ به

تاسي ته مجازات درکړي، وهذه الجملة الشرطية معطوفة على قوله فلا ينازعنک.
**بوه سه:** چي په دې جمله کي وعيد دی سره د رفق وکان ذالک قبل الامر بالقتال. يعني منسوخة هذا ما قال المظهري وصاحب روح المعاني.

اَللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿۶۹﴾

او خدای ﷻ به حکم او فيصله وکړي يعني بين المؤمنين منکم والکافرين، نو خدای ﷻ سره جلا کوي په ورځ د قيامت حق او باطل چي مؤمنانو ته به دخول د جنت ثواب ورکړي او کافرانو ته به عذاب النار ورکړي، په هغه شي کي له امورو څخه د دين چي تاسي ايها المؤمنون والکافرون اختلاف درلودی يعني په دنيا کي چي مؤمنانو د توحيد الهي لار غوره کړي وه او کافرانو د شرک لار اختيار کړې وه.

اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِى السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ

استفهام لپاره د تقرير دی ای حمل المخاطب على الاقرار يعني ته خبر يې چي په تحقيق خدای ﷻ خبر دی په هغه شيانو چي په اسمانو کي دي من الملائکة والنجوم وغيرها او په ځمکه کي دي من الحيوانات والنباتات والمعدنيات. لانه لايخفى عليه شئ وان کان مثقال ذرة.

اِنَّ ذٰلِكَ فِىْ كِتٰبٍ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿۷۰﴾

په تحقيق دا ټوله شيان من السماء والسمٰويات والارض ومافيها وعليها په لوح محفوظ کي دی بلکي ماکان وما سيکون ټوله مقصود تسلي ده عليه الصلوٰة والسلام ته چي ته يې غم مه کوه، په تحقيق د غه احاطه علمي او يا ثبت په لوح محفوظ کي او يا فيصله بين المحق والمبطل خدای ﷻ ته اسانه ده.

وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا

(ويعبدون) عطف دی پر مضمون ماسبق من الآيات الدالة على وحدانيته تعالى وکمال قدرته يعني يعلمون تلک الدلائل الواضحة والبراهين القاطعة في التوحيد وهم مع ذالک دوی عبادت کوي ماسوی له خدای ﷻ څخه د هغه شيانو چي بتان دي چي نه دی يعني خدای پاک د هغه شي په عبادت سره يو حجة واضحه په کتب مقدمه وو کي يعني چي د دې شيانو عبادت روا دی.

وَمَا لَيْسَ لَهُمْ بِهِ عِلْمٌ ۗ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴿٧١﴾

او نسته دوی لره په جواز د عبادت د هغو سره علم یا بدهي یا استدلالي یا نقلي من المخبر الصادق الذي دل علی صدقه المعجزات او یا علم متواتر چي منتهی یې یو حواس خمسه وي، او نسته مشرکانو لره چي دا ظلم ظاهر یې پر کار اچولی دی یو کومکي په دفع کي د عذاب له دوی ځنځه کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده کما لایخفی کما یدل علیه التنکیر ایضًا.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٍ

چي تلاوت وکړل سي پر دوی له جانبه ځنځه د رسول الله ﷺ د آیاتو زموږ یعني الآیات القرآنیة چي واضح الدلالة دي پر دې چي دا آیات من عند الله دي په دې سبب چي دوی یې په مثل سره د یوه سورت راتګ نسي کولای مع کونهم من العرب العربا، یا معنی داده چي دا آیات واضحات الدلالة دي پر عقائد حقه وو او پر احکام الهیه وو.

تَعْرِفُ فِى وُجُوهِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ٱلْمُنكَرَ ۖ

ته وینې د مشرکانو کافرانو په مخانو کي انکار (نو منکر مصدر میمي دی) یعني په مخانو کي د دوی اثار د انکار ښکاره کېږي یعني تندی ترش وګرځوي او د غضب اثار یې پر مخانو ښکاره سي.

**پوښتنه**: د مشرکانو ذکر خو د مخه تېر سو في قوله تعالی وما للظالمين آه، نو دلته وذکر ته د الذین کفروا ځنځه ضروت دی چي خدای ج داسي نه وویل في وجوههم بارجاع الضمیر حکمت یې ځه دی؟

**ځواب**: په اسم ظاهر راوړلو کي تنبیه ده پر دې چي باعث پر انکار شدت کفر د دوی دی لاغیر ذالک.

**پوه سه**: چي جمله شرطیه یعني د واذا ځنځه نیولې تر تعرف في وجوههم آه چي جزاء د شرط معطوف دی پر یعبدون آه.

يَكَادُونَ يَسْطُونَ بِٱلَّذِينَ يَتْلُونَ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتِنَا ۗ

قریبه وي دا چي دوی حمله وکړي، پر هغو کسانو چي تلاوت د آیاتو یې پر دوی وکړي یعني محمد ﷺ و اصحابه رض.

**پوه سه:** چي يكادون آه حال دى د الذين كفروا څخه او يا لاس ورو غځوي په حمله كولو:

قُلْ أَفَأُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكُمُ ۗ

و وايه ته يا محمد (ﷺ) آيا زه خبر درنه كړم تاسي ته په شر او مكروه تر دغه قرآن چي پر تاسي يې تلاوت وكړل سو او تاسي ته يې د پر غم او غصه پيدا كړه او پر تالي د آياتو و حملې ته تيار سواست، او زړونه مو تنګ سوه او اثار د غضب مو په مخانو كي ښكاره سوه.

ٱلنَّارُ وَعَدَهَا ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴿٧٢﴾

(النار) خبر د مبتداء محذفي دى اى هو النار، نو دا جمله استيناف بياني دى كانه قيل ماهو ذالك الشئ، چي وعده يې كړې ده د هغه اور خداى ﷻ د هغه كسانو سره چي كفر يې اختيار كړى دى يعني په دنيا كي، د وعدې معنى داده چي د دوى مرجع به دغه اور وي، او بد ځاى د ورتګ دى اور.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَٱسْتَمِعُوا لَهُۥٓ ۚ

اې خلكو (مراد څخه كفار مكة من المشركين وغيرهم ممن شركوهم في الاشراك لعموم اللفظ) بيانېږي يو مثال يعني يوه قصه عجيبه، نو تاسي غوږ ونسى و دغه مثل ته، له غوږ نيولو څخه مقصد دادى چي فكر او غور پكښي وكړئ، او بعض مفسرين وايي چي معنى د آيت داده چي ګرځولى دى مشركانو زما لپاره يو مثال چي مثل يعني مماثل په استحقاق كي د عبادت چي اصنام دي، نو تاسي غوږ ونسئ و حال ته د دغو بتانو او غور پكښي وكړئ چي آيا دا تماثيل د دوى صحيح دي.

إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ لَن يَخْلُقُوا ذُبَابًا

دغه شيان چي تاسي يې عبادت كوئ يعني بتان چي جمادات دي، ماسوى له خداى څخه يعني بتان، هر ګز دوى قادر نه دي پر خلق د يوه مچ مع صغره وقلته وخساسته.

**پوه سه:** چي يعقوب رح دا آيت په يا تحتانيه وايي يعني په صيغه د غائب او ضمير يې راجع بولي كفارو ته، او نور ټوله قاريان يې په تاء فوقانيه وايي على

الخطاب للكفار. او پر دواړه تقديره عائد و موصول ته محذوف دی يعني يدعونها او تدعونها.

**فائده**: ذباب مشتق دی من ذب فآب چي ته يې وشړې دی بیرته در ته راځي كما هو المعتاد جمع قلت اذبة ده او جمع كثرت يې ذبان كغراب واغربة.

## وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ ۖ وَإِن يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا لَّا يَسْتَنقِذُوهُ مِنْهُ

كه اصنام سره جمع سي پر خلق د ذباب يعني كه څه هم ټوله بتان سره غونډ سي فكيف اذا كانو منفردين. او كه حمله كړي له دې بتانو څخه مچ يو شی دوی يعني بتان هغه شی نسي څندي اخستلای.

**درویش وایي**: چي د مشركانو عادت داؤ چي پر دې بتانو باندي به يې تعظيمًا زعفران او نوري خوشبوی ځاني مښلې او د تبرك لپاره به يې د دوی و مخ ته خواړه ايښوول. نو دوی چي په ولاړه مچان به پر راتبول سوه او هغه خوشبويي كاني به يې د دوی څخه خوړلې او پر هغه طعام به يې هم د اختر د خوشالي ورځ جوړه كړې وه. او د دوی بتانو دا توان نه درلودی چي دا مچان له ځانه يا له طعام موضع څخه وشړي او قدرت د مقاوت د مچانو يې نه درلودی.

**درویش وایي**: چي د دې مثل حاصل دادی چي خدای پاك د بت پرستانو نهايت جهل او ناپوهي بيانوي چي دوی د خالق المخلوقات موجد السماوات القادر على الاطلاق هغه عاجزه شيان چي بتان دي چي د ادنی شي پر خلق چي مچ دی او د خيل ځان پر ساتنه قادر هم نه دي شركاء في العبادة يې ګرځولي او د الوهيت لونګي يې ورتړلې ده او وايي هؤلاء شفعائنا عند الله.

## ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ ۝

. ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي طالب مچ دی چي د بتانو څخه خوشبويي سلبوي او مطلوب بت دی چي مچ له ده څخه سلب د خوشبويي كوي ولاشك ان الطالب ضعيف يعني مچ والمطلوب اضعف منه، ولي چي مچ خو حركت او طلب د رزق كوي او مطلوب چي بت دی پر هيڅ شي قدرت نه لري.

## مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ط

نه دي پېژندلی مشرکانو خدای ﷻ په حق پېژندلو سره او نه يې د خدای ج تعظيم کړی دی په حق تعظيم سره. او نه يې خدای پاک په حقيقي وصف سره موصوف کړی دی. ولې چې دوی د خدای ﷻ سره په عبادت کې هغه جمادات بتان شريک کړه چې مچ غونډي ضعيف شی توان د مقابلې او مقاومت نه لري.

ع: ....بدين علم و دانش بايد گريست

## اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيْزٌ ﴿۷۴﴾

په تحقيق خدای ﷻ دا يعني مالک د قدرت کامله دی چې د ټولو ممکناتو خالق دی او غالب دی چې څوک يې نسي مغلوبه کولای او ددوی خدايان بتان عاجز العاجزين دي نو دوی څرنګه شرکاء الله په عبادت کې شريکان بولي. بغوي رح وايي چې دا ورو سته آيت هلته نازل سو چې مشرکانو به ويل: اءنزل عليه الذکر من بيننا؟ آيا نازل سو پر محمد (ﷺ) ذکر يعني قرآن زموږ په منځ کې يعني موږ سرمايه داران د مکې يو او سرداران د قوم يو. او محمد ع خو نه سرمايه دار دی او نه د قوم مشر دی. نو که قران نازليدلای پر يوه زموږ به نازل سوی وای مطلب يې دا ؤ نعوذ بالله من ذالک چې محمد ﷺ دا قرآن له ځانه جوړوي. نو خدای ﷻ ددوی په ځواب کې دا آيت نازل کړی چې حاصل يې دا دی چې دد ې شيانو چې څوک نبي کړ ځوي اختيار د خدای ﷻ په مشيت کې دی يختار من يشاء من خلقه.

## اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا

خدای ﷻ مختاره کوي چې بعض ملکي واستوي په منځ کې د خدای او د انبياء په وحي سره کجبرئيل ع. او بعض ملکي په مابين د خدای او د نزع الروح په باره کې کعزرائيل ع او په مابين کې د خدای او د خلګو د رزقو په منځ کې چې باد او باران يې په تصرف کې دی لکه ميکائيل ع. او بعض واسطه وي د خدای ج او د خلګو د امانت او احياء په مابين کې لکه اسرافيل ع په نفخه اولی او ثانيه کې. او نوري ملکي د نورو کارو لپاره لکه کرام الکاتبين د بندګانو د نېک عمل او بد عمل د نوشتې لپاره الی غير ذالک.

# وَمِنَ النَّاسِ

اى يختار من الناس انبياء ورسلاً چي خلک و حق او توحيد ته رابولي، او د خداى ﷻ شرائع او احكام ورته بيان كړي چي اول د هغو انبياؤ آدم ؑ او اخيري يې محمد ﷺ دى. بيضاوي وايي چي خداى پاک اول تقرير د وحدانيت خپل وكړى او نفي د مشاركت د غير دده سره په الوهيت كي وكړى او په صفاتو د خلق وغيره. اوس په دې آيت كي بيان د دې كوي چي خداى ﷻ لره بر گزيده بندگان سته د نبوت او رسالت لپاره چي د هغو څوک اجابت وكړي او اقتداء پسي وكړي په عبادت د خداى ﷻ وه اعلى مراتبو ته د قرب الهي به ورسېږي تقريراً للنبوة ورداً لقول المشركين مانعبدهم الاليقربونا الى الله زلفى، او لقولهم الملائكة بنات الله ونحو ذالک من خرافاتهم.

# إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ۝

په تحقيق خداى پاک عالم بالمسموعات والمبصرات دى يعني عليم بجميع الاشياء العلوية والسفلية.

# يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ

ابن عباس رضی اللہ عنہ وايي ماقدموا من الاعمال الحسنة والسيئة وما خلفوا، قال رسول الله ﷺ من سن في الاسلام سنة حسنة فله اجرها واجر من عمل بها الى يوم القيامة من غير ان ينقص من اجورهم شيئًا، ومن سن في الاسلام سنة سيئة فله وزرها ووزر من عمل بها الى يوم القيامة من غير ان ينقص من اوزارهم شيئًا، فلعل هو مراد ابن عباس رضی اللہ عنہ بقوله وما خلفوا والله اعلم. او حسن رحمہ اللہ وايي چي مراد د مابين ايديهم څخه ما عملو دى او د ما خلفهم څخه مراد مايعملون بعد ذالک.

# وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ۝

وخداى ﷻ ته راجع كړل كېږي ټول كارونه لانه تعالى مالک بالذات لايسئل ما يفعل وهم يسئلون.

# يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا

اي هغه كسانو چي ايمان يې راوړى دى ركوع كوئ او سجده كوئ مراد څخه دي صلوات خمسه دي تعبيراً عن الكل وهو الصلوة بالجزء اى الركوع والسجدة.

**پوښتنه**: لمانځه لره خو نور ارکان هم وه نو تخصیص د رکوع او سجدې یې ولې وکړی؟

**ځواب**: رکوع او سجده رکنان لازمان دي د لمانځه چې لمونځ بېله دوی نه صحیح کېږي بخلاف سائر الارکان، ولې چې قرائت ساقط دی له ګونګي څخه او قیامه ساقطه ده له هغه چا څخه چې پر ولاړه قدرت نه لري بلکې په ناسته به یې کوي او یا پر اړخ باندې کما بین في الفقه. له دې سببه امام اعظم رح وایي که چا قدرت نه درلودی چې په سر سره اشاره د رکوع او سجدې وکړي لمونځ ځنډي مؤخر دی الی وقت القدرة او د زړه یا د سترګو په اشاره سره یې لمونځ نه دی روا.

وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿۷۷﴾

او تاسې عبادت کوئ د رب ستاسې په هغه دول چې د خدای د شان سره لائق وي وهو الاخلاص، او نور د خیر کارونه قال رئیس المفسرین عبد الله بن عباس رض چې د خیر کارونه صلة الرحم ومکارم الاخلاق، او مظهري وایي انه یعم الافعال کلها یعني اختاروا ماهو خیر واصلح آه.

**پوهه**: چې لعل دلته لپاره د رجاء دی په معنی د کی تعلیل نه دی والجملة في محل النصب علی الحالیة یعني د خیر کارونه کوئ په داسې حال کې چې په امید د فلاح وي یعني یقین د فلاح مه کوئ او مه پر اعمالو د خیر تکیه کوئ، وورد في ذالک الاحادیث الصحیحة.

**پوهه**: چې دا آیت د سجدې دی په نېز د امام شافعي، احمد، ابن المبارک او د اسحاق رحمهم الله، بدلیل ظاهر الآیة وهو الامر بالسجود ولما روی عن عقبة بن عامر رض قال قلت یا رسول الله افضلت سورة الحج علی سائر القرآن بسجدتین؟ قال نعم فمن لم یسجد بهما فلا یقرئهما وبذالک قال عمر، عثمان، علي، ابن عمر، ابو الدرداء، و ابو موسی الاشعري رضي الله عنهم، وذهب ابو حنیفة ومالک والحسن وابن المسیب وابن جبیر وسفیان الثوري رحمهم الله الی انها لیست آیة سجدة تلاوة، قال ابن الهمام في فتح القدیر والدلیل علی ذالک انها مقرونة بالامر بالرکوع والمعهود في مثله من القرآن کونه امرًا بما رکن من الصلوة یعني مراد ارکعوا واسجدوا څخه دا دی من ذکر الجزء وارادة الکل کما مر آنفًا کما في قوله تعالی خطابًا لمریم اسجدي وارکعي وهو لیست

آية السجدة بالاجماع واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال في هذه الآية. والجواب مما روي من حديث عقبة رض فقد قال الترمذي اسناده ليس بقوي وكذا ابو داؤد وغيره.

**وَجَاهِدُوا فِي اللَّهِ حَقَّ جِهَادِهِ**

**پوه سه:** چې جهاد كما قال الراغب اللغوي الاصفهاني وايي خپل طاقت بتمامها صرفول دي په دفع كې د دښمن، دا جهاد درې قسمه دی (۱) مجاهدة العدو الظاهر كالكفار (۲) ومجاهدة الشيطان (۳) ومجاهدة النفس، او اخيره مجاهده اعظم ده تر مجاهده العدو الظاهر لكه د هغه حديث څخه چې فهمېږي چې بيهقي او نورو محدثينو روايت كړی دی له جابر رضي الله عنه څخه قال قدم على رسول الله ﷺ قوم غزاة يعني چې عليه الصلوة والسلام يوې غزاء ته استولي وه فقال[۴] قدمتم خير مقدم من الجهاد الاصغر الى الجهاد الاكبر. قيل وما الجهاد الاكبر قال مجاهدة العبد هواه (اى د خواهشات نفسانيه وو سره) والمراد ههنا عند الضحاك جهاد الكفار حتى يدخلوا في الاسلام ويقتضى ذالك انتكون الآية مدنية لان الجهاد مع الكفار انما امر به بعد الهجرة، او عبد الله بن المبارك رح وايي چې مراد جهاد د نفس او د هوى دی، والاولى عند روح المعاني والمظهري ان يكون المراد به الضروب الثلاثة وليس هذا امن الجمع بين الحقيقة والمجاز ولا من قبيل عموم المشترک كما يراد بالعين، الجارجة المخصوصة (يعني ستركه) وعين الماء (يعني چينه) دفعة واحدة لان لفظ الجهاد ذكر في الآية مطلقا والمراد بذل الوسع والطاقة في دفع الاعداء، وهذه الاقسام الثلثة اجزاء فيشمل الكل. نو معنى د آيت داده چې تاسي بذل الوسع والطاقة في سبيل الله او لله خالصا من الاعراض الدنيوية (په آيت كې يا مضاف محذوف دی يا كلمه د في په معنى د لام د فافهم)

**تنبيه:** پر دې معنى عام دا آيت شامل دی جهاد لره مبتدعه وبزجرهم عن البدعة والفسقة بمنعهم عن الفسق فانهم اعداء ايضا.

**پوه سه:** چې (حق جهاده) منصوب دی على انه مفعول مطلق، والتقدير جهادا فيه (اى في سبيله رح حقا فقدم حقا واضيف الى الجهاد مثل جرد قطيفة وحذف حرف الجر واضيف جهاد الى الضمير الراجع اليه تعالى. قال صاحب الكشاف الاضافة في جهاده للاختصاص فلما كان الجهاد (يعني باى نوع كان) مختصا بالله تعالى من

حيث انه مفعول لوجهه سبحانه ولاجل مرضاته تعالى صحت الاضافة اليه تعالى انتهى بزيادة يسيرة. او ابن عباس رضي الله عنه وايي چي د حق جهاد معنى داده استفراغ الطاقة فيه وان لايخافوا في الله لومة لائم. فقير وايي ولايكون فيه غرض دنيوي ايضًا.

## هُوَ اجْتَبٰىكُمْ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ ۭ

خداى جل جلاله تاسي مختاره كړي ياست من الخلائق (لمصاحبة نبيه وحبيبه صلى الله عليه وسلم فالمخاطب هو اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم. قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان الله اختارني واختار لي منهم اصهارًا وانصارًا) نه دى ګرځولى خداى جل جلاله پر تاسي باندي په ديني كاروكي ضيق او تنګي وتكليف يشتد القيام به عليكم. كريمه: لايكلف الله نفسًا الا وسعها. بعض مفسرين داسي ترجمه كوي چي مؤمن چي په يوه ګناه مبتلى سي خداى پاک هغه ته مخرج د هغې ګناه څخه ورته ښكلى دى اما بالتوبة كما في حقوق الله الخالصة. واما برد الظالم والقصاص كما في حقوق العباد. واما بانواع الكفارات مثل كفارة الصوم وكفارة اليمين وغير ذالک. والحاصل چي نسته په دين كي د اسلام مالا يجد العبد سبيلاً الى الخلاص من العقاب. وكان فيما سبق من الامم من الذنوب ما لاتوبة لها. او مقاتل رحمه الله وايي چي مراد له نفي څخه د حرج رخصت دى په وخت كي د ضرورت كقصر الصلوة الرباعية في السفر والتيمم عند عدم الماء والافطار في السفر والمرض. واكل الميتة عند الضرورة والصلوة قاعدًا ومستلقيًا عند العجز عن القيام او القعود وهو قول الكلبي ايضًا. وذالک معنى قوله ؑ اذا امرتكم بشئ فاتوا ما استطعتم. او له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي مراد له حرج څخه هغه دى چي خداى جل جلاله پر بني اسرائيلو باندي وضع كړي وه كقرض موضع النجاسة من الثوب وقتل الانفس في بعض المعاصي وعدم جواز مواكلة الحيض ومضاجعتها الى ان يطهرن. وعدم جواز التيمم عند عدم الماء وكون زكوتهم ربع المال وعدم جواز الصلوة في غير البيع التي مثل المساجد لنا وغير ما من الشدائد وقد وضعها الله عزوجل كلها عن هذه الامة المرحومة.

## مِلَّةَ اَبِيْكُمْ اِبْرٰهِيْمَ ۭ

(ملة ابراهيم) منصوب على الاغراء (يعني باعثه كول) اى الزموا ملة ابراهيم (ابراهيم) عطف بيان دى د ابيكم. والظاهر انه خطاب للمؤمنين من قريش لان السورة مكية.

**سوال:** پر دې تقدير د نورو مسلمانانو څه حال دی؟

**جواب:** قال رسول اللهﷺ الناس تبع لقريش في هذا الشان الى اخير الحديث متفق عليه. وقيل خطاب لمؤمني جميع العرب من كانوا من نسل ابراهيم عليه السلام وقيل لجميع المسلمين من العرب والعجم لان ابراهيم كان جداً للنبيﷺ، او عليه الصلوة والسلام لكه اب د ټولو مسلمانانو لپاره فانه سبب لحيواتهم الابدية في الآخرة ولمصالح امورهم الدنيوية حسب ماجاء في القرآن الكريم والآحاديث النبوية او د دې سببه چي عليه الصلوة والسلام كالاب لجميع الامة حرم نكاح ازواجه المطهرة لجميع افراد الامة الى يوم القيامة. قال الله تعالى وازواجه امهاتهم، وقال عليه الصلوة والسلام انا لكم بمنزلة الوالد الى اخير الحديث.

## هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ ۙ مِنْ قَبْلُ

خدای پاک پر تاسي امة محمديه ؑ د مسلمينو نوم ايښی دی د مخه يعني تر نزول د قرآن في الكتب المتقدمة. او ابن الزيد وايي چي د هو ضمير راجع دی و ابراهيم ته يعني ابراهيم ؑ تاسي مسمیٰ كړي ياست په مسلمينو سره دده په دوره نبوت كي حيث قال ربنا واجعلنا مسلمين لک ومن ذريتنا امة مسلمة لک يعني اهل مكة.

**درويش وايي:** چي اوله معنی اولی او انسب ده لشمولها لجميع المؤمنين وفي هذا اى في القرآن سماكم المسلمين.

## وَفِيْ هٰذَا لِيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ شَهِيْدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ ۖ

تاچي سي رسول يعني محمد (ﷺ) شاهد ستاسي پر اسلام (حرف جر متعلق دی په مضمون پوري د هو سماكم آه اى اعطاكم الاسلام وجعلكم مسلمين ليكون الرسول آه) او تاسي شاهدان سئ پر نورو كافرانو په دې سره چي رسولانو دوی ته تبليغ كړی دی، دا هغه وخت چي كافران د نورو رسولانو منكر سي د تبليغ د خپلو رسولانو ودوی ته. ابن المبارك رح په خپل سند صحيح سره روايت كړی دی چي اول سړی چي خدای پاک راوغواړي اسرافيل ؑ دی خدای پاک ورته وايي چي تا ورساوه زما عهد او وصيت؟ هغه ورته وايي نعم قد بلغته جبرئيل فيدعی جبرئيل فيقول هل بلغتک اسرافيل عهدي فيقول جبرئيل نعم، نو اسرافيل ؑ خوشي كړي، بيا جبرائيل ته خدای پاک وايي ماصنعت في عهدي؟ تا څه وكړه زما په عهد كي،

جبرائيل ورته ووايي قد بلغت عهدك الرسل، بيا خداى ﷻ رسولان راوغواړي پوښتنه څنګه وکړي چي جبرائيل زما عهد تاسي ته رسولى دى؟ هغه ورته ووايي نعم، نو جبرائيل هم خوشي کړي، بيا رسولان مخاطب کړي چي تاسي زما په عهد څه وکړه؟ هغه هريو ورته ووايي چي ما ستا عهد تر خپل امت پوري ورساوه، بيا امم د رسولانو راوغواړي، چي تاسي ته دا زما رسولانو زما عهد درر سولى دى، نو مؤمنان د هر امت يې تصديق وکړي او کافران يې تکذيب وکړي، نو رسولان ووايي چي موږ پر دغو مکذبينو شاهدان لرو د تبليغ، خداى پاک ورته ووايي چي څوک مو شاهدان دي؟ رسولان ورته ووايي امت د محمد ﷺ مو شاهدان دي، نو امت د عليه الصلوة والسلام راوغواړي، خداى پاک ورته ووايي اتشهدون ان الرسل قد بلغ الامم، فيقولون نعم، بيا د امم ماضيه کافران ووايي چي دوى څرنګه پر موږ شاهدي اداء کوي دوى خو زموږ زمانې نه دي نيولي، يعني زموږ په زمانو کي خو امت محمديه نه ؤ يعني دا شاهدي ددوى درواغ ده، خداى پاک وامت محمديه ته ووايي چي تاسي څرنګه شاهدي پر اداء کوئ تاسي خو ددوى د زمانې خلګ نه واست؟ امت محمديه ورته ووايي يا ربنا ارسلت الينا رسولاً يعنون محمد ﷺ وانزلت الينا کتاباً يعني القرآن الکريم وقصصت علينا فيه ان الرسل قد بلغوا ولهذا قال الله وکذالک جعلناکم امة وسطاً (اى عدول) لتکونوا شهداء على الناس ويکون الرسول (اى محمد ﷺ) عليکم شهيداً، وقد مر تفصيل هذه المقام في تفسير سورة البقرة عند هذه الآية.

## فَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ

يعني همېشه توب کوئ پر لمانځه (اى الصلوة الخمس في اوقاتها مع ارکانها وواجباتها وسننها ومستحباتها مع الخضوع والخشوع) او ورکوئ زکوة د اموالو اى جميع الطاعات وانما خص الصلوة والزکوة بالذکر لان الصلوة عماد الدين والزکوة قنطرة الاسلام کما جاء في الحديث الصحيح، کريمه: ان الصلوة تنهى عن الفحشاء والمنکر، يعني دا دوام پر طاعاتو شکرانه ددې ده چي تاسي ته خداى ﷻ دومره شرف او فضيلت درکړى چي شهداء على الناس يې وګرځولاست پر کفارو د امم سابقه ؤ في يوم القيامة کما مر.

# وَاعْتَصِمُوا بِاللَّهِ

او تاسي، تکيه، توکل او اعتماد وکړئ پر خداى ﷻ باندي في جميع امورکم وحوائجکم او کومک مه غواړئ له غير څخه د خداى ﷻ په هيڅ شي کي.

**سوال:** سړى چي ناجوړى سي مثلاً طلب د جوړوالي د طبيب او له دوا څخه کوي وهکذا يو سړى چي مظلوم وي د ظالم شکايت و حکومت ته کوي وعلى هذا فقس؟

**ځواب:** د مسلمان دا عقيده ده چي شافي الامراض خداى ﷻ دى او له ظالم څخه په خلاصون کي هم خداى ﷻ لکن په دار الاسباب کي اسباب هم ملغات نه دي لانه تعالى خالق الاسباب والمسببات.. ع: کشت کن پس تکيه برجبار کن

قال ابن عباس ﷺ سلوا ربکم يعصموکم من کل مايکره. او بعض مفسرين وايي چي خداى ﷻ ته خواست کوئ چي ثواب درکړي پر عبادت باندي.

# هُوَ مَوْلَىٰكُمْ فَنِعْمَ الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ ﴿٧٨﴾

خداى ﷻ ستاسي حافظ، ناصر او متولي د ټولو کارو دى (هو مولاکم) علت د اعتصام بالله تعالى دى).

**فائده:** کلمه د فاء لپاره د سببيت ده يعني اذا ثبت ان الله مولاکم کما مر فنعم المولى مولاکم ونعم النصير نصيرکم، اذ لامثل له تعالى في الولاية والنصر بل لا مولى ولا نصير في الحقيقة الا هو.

**درويش وايي:** چي د اوولسم جزء تفسير په فضل او توفيق د خداى ﷻ پر يوه بجه د پنجشنبې د ورځي (۲۵) د رجب الخير سنه (۱۴۳۰) هـ ق وپاى ته ورسېدى او تفسير د اتلسم جزء په پسې دى ان شاء الله تعالى.

ددې جزء تفسير سره د يوې مياشتي تعطيل په سبب د عمرې او د زيارت د حرمينو شريفينو په څلور مياشتي تخميناً وپاى ته ورسېدى، ولله الحمد والمنة.

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولمن سعٰى فيه، آمين يارب العالمين

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين

او pdf سو. د دعا محتاج احمدي!

بسم الله الرحمن الرحيم

# الجزء الثامن عشر

## قَدْ أَفْلَحَ ١٨

# تفسير الباري حقي

حضرت مولانا [illegible]

الحنفي النقشبندي القندهاري

مكتبة القراءة والتجويد

كاسي رود كوئته بلوچستان

سُوْرَةُ الْمُؤْمِنُوْنَ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ وَثَمَانِ عَشَرَةَ آيَةً وَسِتَّةُ رُكُوْعَاتٍ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

رب يسر و وفق ولا تعسر عليّ

نن په د پیل په تفسیر د جزء (۱۸) من القرآن المجید یوم الجمعة (۲۵) شهر رجب الخیر سنه (۱۴۳۰) هـ ق في کوټه في حجرتي في داري.

الحمد لله الذي وفقني لتفسیر کتابه العزیز الی ان تم تفسیر الجزء (۱۷) وارجوا من فضله العمیم ان یوفق هذا العبد الذلیل الجهول لتفسیر جمیع اجزاء قرآنه المجید بفضله وکرمه القدیم لیکون ذالک ثمرة حیوتي في هذا الدار الفاني ان تعالی علی کل شئ قدیر وبالاجابة جدیر، کریمه: ادعوني استجب لکم والصلوة والسلام علی من انزل علیه هذا القرآن العظیم رسوله الکریم شفیع المذنبین رحمة للعالمین. کریمه: وما ارسلناک الا رحمة للعالمین الذي جعل الصلوة والسلام علیه في کتاب رابطة قویة بین افراد امته وبینه علیه السلام، الحدیث الصحیح من صلی علي في کتاب صلی علیه الملائکة مادام اسمي في ذالک الکتاب، والعبد الفقیر حیث ما اتی علی اسمه الجلیل او علی وصفه یعني النبي والرسول ما اکتفیی الی الصلوة باشارة [١٣] او صلعم بل صلیت علیه وسلمت کاملاً وعلی آله واصحابه الهادیین المهتدین الکاملین وعلی تبعهم وتبع تبعهم اجمعین.

احمد لمن قدر خیرًا وخبالاً .......... والشکر لمن ارسل الینا رسولاً

والحمد لمن انزل علیه قرآنا ........ والشکر لمن جعلني له مفسرًا

بغوي رح وایي قال ابو هریرة رضی الله عنه کان اصحاب رسول الله ﷺ یرفعون ابصارهم في الصلوة الی السماء (صحابه کرامو رض به په لمانځه کي سترګي د اسمان و خوا ته پورته کولې) فلما نزل الذین هم في صلاتهم خاشعون (نو دوی به سترګي پر سجده ګاه باندي نیولي وې)

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿١﴾

په تحقیق سعادت حاصل کړی هغو کسانو چي تصدیق درلودونکي دي بما یجب الایمان به من توحید الله جل جلاله وجمیع صفاته الجلالیة والجمالیة وایضًا بالبعث بعد الموت والجنة والنار وغیرها چي په امنت بالله وملائکته الی اخیره

تو له بیان کړل سوي دي، وهذا هو مطلق الايمان لكن الفلاح الحقيقي لايحصل بمجرد الايمان زاد في هذه الآتية مايحصل به الفلاح الحقيقي الكامل.

**فائده:** لفظ د قد چي پر ماضي باندي داخل سي تثبت ما كان متوقعًا، نو چونكه مؤمنان اميدوار د فلاح بفضله تعالى وه، نو خداى ﷻ دا آيت مبتدء په قد سره كړى بشارةً لهم، فلاح په قاموس كي وايي هو الفوز بالمقصود والنجاة من المرهوب والبقاء في الخير.

**پوه سه:** چي فلاح يو دنيوي ده من حصول المال والجاه والجلال وغيرها دا فلاح دلته نه ده مراد، بلكي مراد فلاح د آخرت ده په كامله توګه كمال يې دا دى چي نه عذاب په قبر كي ويني او نه په ورځ د آخرت سختي په حساب كي ويني او نه سختي د ورځ د قيامت پر تېره سي بلكي په هر موقف د بشارت سره مخامخ وي بان لاخوف عليكم ولا انتم تحزنون او نه اورته داخل سي او نه سختي د تېرېدو د پل صراط ويني او بيا اعلى درجو د جنتو ورسېږي او مراتب د قرب الى الله ﷻ والرضوان الابدي منه تعالى، دا فلاح كامل منوط په فضل د خداى ﷻ او پر تكميل د صفات او افعال اتيه وو ده كما سيجئ. قال المحقق في شعره:

بقدر الكد تكتسب المعالي ............ ومن طلب العلى سهر الليالي
تروم العز ثم تنام ليلاً ............ يغوص البحر من طلب اللآلي

او يو فلاح في الجملة ده هغه موقوفه پر اتصاف بالصفات المذكورة نه ده والمراد بالفلاح المطلق دخول الجنة ولو بعد حين بلكي هغه په من قال لا اله الله محمد رسول الله لانه تعالى قال فمن يعمل مثقال ذرة خيراً يره اى ير ثوابه. او نفس ايمان او تصديق او توحيد وغير ذالک هم خير دى بلكي راس الخيرات فلابد ان ير ثوابه ومحل الثواب هو الجنة ليس الا.

**الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ ۝٢**

هغه كسان چي دوى په لمانځه كي خشوع كونكي وي.

**درويش وايي:** چي خشوع په اتفاق د مفسرينو الخوف او تذلل ته وايي ومع ذالک راغب اصفهاني په مفردات كي وايي واكثر مايوجد الخشوع على الجوارح الظاهرة كالنظر الى موضع السجود ووضع اليمين على الشمال وامثاله، والضراعة ويرادفه

الخضوع اكثر ما تستعمل فيما يوجد على القلب من العبادة على طريقة الاحسان يعني ان تعبد الله كانك تراه فان لم تكن تراه فانه يراک کما جاء في الحديث الطويل الذي رواه عمر رضي الله عنه وهو حديث متفق عليه. فالمقابل للخشوع (١) اللعب بالثوب (٢) واللعب باللحية (٣) والالتفات في الصلوة يمينًا وشمالاً. وتفصيل ذالک ان الالتفات اما ايكون بموق العين (په کونج د سترګي) دا خو مکروه نه دی لکن د کمال د لمانځه منافي دی، والالتفات بلي العنق (يعني غاړه يوه طرف ته ووپچي) دا خو مکروه دی، وفي الحديث فان کان لابد ففي النفل، او بل التفات دی بلي الصدر (چي ځيګر له قبلې څخه وپيچي دا مفسد د لمانځه دی) مطلقًا (٤) رفع البصر الى السماء كما روى البغوي رحمه الله عن ابي هريرة رضي الله عنه كان اصحاب رسول الله ﷺ يرفعون ابصارهم الى السماء في الصلوة فلما نزلت آية الخشوع رمي بابصارهم موضع السجود. وروى البخاري وابو داؤد والنسائي عن عائشة رضي الله عنها قالت سئالت رسول الله ﷺ عن الالتفات في الصلوة (تعني بلي العنق) قال هو اختلاس من الشيطان (يوه حمله ده د شيطان) يحتلم (حمله کوي) من صلوة العبد (٥) اختصار في الصلوة (يعني لاس پر دوه ي نيول) وقد ذکروا انه مکروه، وورد ان الاختصار في الصلوة راحة اهل النار والمعنى انه استراحة لليهود في الصلوة وانهم من اهل النار والا فاي استراحة في النار (٦) التمطى کشش کول په لمانځه کي (٧) والتثاوب (اربرمى) او سترګي پټي نيول (٨) والتقليب الحصى من موضع السجود فان کان لابد فواحدة کما جاء في الحديث (٩) وتغطية الفم بالثوب (١٠) والتشبيک يعني د ګوتو جار ايستل (١١) په ګوتو ټکان کول.

**درویش وايي:** چي په دې کي اختلاف دی چي خشوع لـه فرائضو څخه د لمانځه ده او يا د فضائلو څخه د لمانځه او که د مکملاتو څخه ده. والصحيح عندنا الثاني نعم الحق انه شرط القبول (نه ده روا والى د لمانځه) كذا في روح المعاني. واما الضراعة التي هي من الصفات القلبية ويرادفها الخضوع دا ده چي لمونځ له ابتداء څخه تر انتها پوري محضًا لرضى الرحمن والقرب بلا كيف اليه تعالى كوي، ولا يتفكر فيها في الامور الدنيوية فضلاً من المعاصي... بيت:

بر زبانت يا صمد پيدا و در دل ياصنم
اى بباطن كافر وظاهر مسلماني چه سود

**پوه سه:** چي مقابل د ضراعت دا شیان دي (۱) ریاء وسمعة.

**مسئله:** د فرضي لمونځ په اداء کي ریاء نسته البته په هیئت کي یې ریاء سته یعني د خلګو په حضور کي چي یې کوي په ښه تعدیل الارکان او خشوع یې کوي او چي خلګ نه وي نه تعدیل الارکان وي او نه خشوع. په دې صورت کي د نفس لمانځه ثواب خدای ﷻ ورکوي او د هیئت ثواب یې نسته لان الهیئة کانت لغیر الله تعالی، او د نفلي لمانځه هم په اصل کي ریاء سته او هم په هیئت کي مثلاً یو سړی وي چي په کور کي وي تهجد نه کوي او چي یو ځای میلمه سي کور والا ته وایي چي ماته یو ګډوه اوبه راوباسه چي د تهجد لمانځه لپاره او دس په تازه کړم په دې صورت کي د اصل تهجد ثواب هم نسته لانه کان لغیر الله.

**حکایت:** یو ریاء کار پیر چي یو مالدار سړی یې مرید ؤ یوه ورځ دا مرید و خپل پیر ته وویل چي ماښام ته او ستا زوی زما میلمانه یاست. پیر صاحب یې دعوت قبول کړی. نو مالدار سړي خپل د کور ښځو ته وویل چي ماښام ښه مکلف خواړه پاخه کړئ ورجي، پوډن او غورمه مثلاً پاخه کړئ چي پیر صاحب مي ماښام میلمه دی. خیر پیر ریاء کار صاحب د زوی په د مالدار مرید کور ته ورغله. د ډوډۍ پر وخت چي سترخوان او ار سو رقم رقم خواړه پر سترخوان کښېښوول سوه چي د مبالغې له کبله د سترخوان ساحه د لوښو له سببه تنګه سوه. خیر ډوډۍ چي شروع سوه پیر صاحب له ښوروا څخه یو دری ګولې وکړې وهکذا د ورجو وغیره څخه. نو تر شا سو یعني خوراک یې بس کړی. مالدار مرید ورته وویل چي صاحبه تا څو نه لږ ډوډۍ وخوړله د کور ښځو په قسم قسم خوراکي شیانو کي خورا زیار کښلی ؤ ته یو څو ګولې زما د زړه لپاره وخوره. پیر صاحب ورته وویل چي زما داغه خوراک دی که ډېره ډوډۍ وخورم بیا خوب راځي او د شپې تهجد او اذکار نسم پوره کولای. خیر د پیر زوی ښه ځان موړ کړی. سترخوان چي ټول سو مرید پیر صاحب ته وویل چي د ماخستن لمونځ به تاسو دلې په میلمه سرای کي په جماعت راکړئ تېر ګا. نو پیر صاحب د مخه سو په ډېره خشوع او تعدیل الارکان سره یې لمونځ ورکړی. خیر خو د مرید څخه یې رخصت واخستی. کور ته چي ورغلی ماینې ته یې وویل چي ته سترخوان او ډوډۍ را واخله ډېره وږی یم. ماینې یې ورته وویل چي د

خپل مالدار مرید په کور کې دې ولې ځان نه مړاوه؟ پیر صاحب ورته وویل ښځې ته ډېره ناپوه یې که ما د مالدار پر سترخوان د خپل نس په اندازه ډوډۍ خوړلې وای د مرید عقیده خرابېدل د ده په زړه کې دستي دا ورلوېدل چې دا څرنګه نسور او خېټور پیر دی. خیر ماینې یې ورته وویل چې په کور کې چې څه پخ کړی شي ؤ یعنې بوروا غوښې مثلاً هغه خو ما او د کور کوچنیانو سره وخوړل وچه ډوډۍ خو سته، پیر ورته وویل چې وچه ډوډۍ او اوبه راواخله، نو پیر صاحب به ډوډۍ په اوبو پوري تېرول حتی دریاب نس یې تر پزې موړ کړی، زوی یې ورته کتل، نو زوی یې ورته وویل چې بابا لمونځ هم راوګرځوه ولې چې تا خو په کور کې داسې لمونځ نه کاوه لکه د مالدار مرید په کور کې چې دې ادا، کړی انتهی القصة.

**درویش وایي:** چې دا ؤ هیئت د ریاء د لمانځه... بیت:

بروی وریاء خرقه سهلست دوخت........ اګر باخدا درفروشی نکوست

په صحیح حدیث کې راغلي دي چې په ورځ د قیامت به خدای پاک و مشرکانو اوریاء کارانو ته وو وایي چې انا اغنی الشرکاء عن الشرک یعنې د شریکي عبادت څخه بې نیازیم. نو که چا زما سره په عبادت کې شریک نیولی وي هغه سړی دې د خپل عبادت ثواب د هغه چا څخه وغواړي چې ده زما سره شریک ګرځولی ؤ زه د هغه شریکي عبادت څخه بېزاریم.

**مسئله:** (۱) که یو سړي په ښه اخلاص او خلوص نیت لپاره د خدای په مسجد کې نفل لکه د تهجد لمونځ کاوه، وروسته مسجد ته څوک راغلي او دی په زړه کې خوشاله سو چې دې سړي ته د تهجد پر لمانځه ولیدلې، نو اعتبار اول نیت لره دی او دا ریاء نه ده (۲) په دنیا وي شیانو کې لکه د کاندارې یا یې پر چا پور باندې وي او یا د یو تجارت فکر وهي یا د یوې ښځې د نکاح په اسبابو کې فکر وهي الی غیر ذالک الصلوة صحیحة وتلک الافکار الفاسدة مخلة لکمال الصلوة.

**پوښتنه:** په لمانځه کې بلا اختیار د سړي په زړه کې بعض خیالات راځي، نو د دې چاره یې څه؟

**ځواب:** سړی دې په لمانځه کې د داسې شي فکر وهي چې هغه في ذاته عبادت وي مثلاً په لمانځه کې د حج یا د عمرې یا د طواف الکعبة فکر دې وهي یا

د يوې صدقې او زکوة فکر دي وهي يا د صلة الرحم د قريب سره الى غير ذالک.

**درويش وايي**: چي ابن ابى شيبة او احمد په کتاب الزهد کي والحاکم او حاکم ددې حديث تصحيح هم کړې ده له حذيفه ﷺ څخه يې داسي روايت کړى دى اول ما تفقدون من دينکم الخشوع واخير ما تفقدون من دينکم الصلوة وتنتقض عرى الاسلام عروة عروة، له امير المؤمنين عمر ﷺ څخه روايت دى چي ده به ويل چي زه پر لمانځه ودريږم ددې فکر راسره پيدا سي چي پر کوم طرف د کفارو به غزاء ته ځي يا به سريه يعني کوچنى ډلګى د مسلمانانو به يو طرف د کفارو استوې، دا ددې سببه چي امير المؤمنين د غزواتو ډېر عاشق ؤ، هم دا سبب ؤ چي د تاريخ په پاڼو کي راغلي دي چي يوه وخت ده يوه سريه چي قومندان يې ساريه ؓ ؤ پر يوه خوا استولې وه، د جمعې ورځ وه امير المؤمنين پر خطبه ولاړ ؤ د خطبې په منځ کي يې په لوړ اواز وويل يا سارية الجبل الجبل، يعني يا ساريه د غره له خوا څخه وبېرېږه. په دې وخت کي د مسلمانانو او کفارو تر منځ جنګ د يو غره په لمن کي روان ؤ او کافرانو دا حيله جوړه کړې وه چي يو څو نفر دي د غره له خوا پر مسلمانانو راشوه سي چي مسلمانان په منځ کي راولي او شکست ورکړي، امير المؤمنين عمر ﷺ د مدينې له منبر نبوي څخه دا حيله وليدل او پر ساريه ؓ يې ناره وکړه يا سارية الجبل الجبل يعني احذر الجبل يعني د غره څخه وبېرېږئ، ساريه ؓ دا اواز د امير المؤمنين واورېدى لښکر ته يې حکم وکړى چي غره ته پورته سئ امير المؤمنين نارې وهي، نو غره ته چي پورته سوه د کفارو هغه حيله يې شنډه کړه او خداى ﷻ مسلمانانو ته فتح ورکړه.

**سوال**: له مدينې څخه د جنګ تر ځايه يعني نهاوند خو د يوې مياشتي د پښو مسافت ؤ، نو عمر ﷺ څرنګه خپل لښکر وليدى او بيا دد ومره لېري ځاى څخه چي په هغه زمانه کي نه ټيليفون ؤ او نه هم موبائل، نو د عمر ﷺ ږغ څرنګه ور ورسېدى؟ او بيا قومندان ساريه ؓ دا اواز څرنګه واورېدى؟

**ځواب**: دا سوال بناء دى د عقل پر قانون، لکن قدرت د خداى جلا شى دى، په حديث صحيح قدسي کي راغلي دي لايزال العبد يتقرب الي بالنوافل (همېشه بنده يعني مسلمان ماته نژدې کېږي په قرب معنوي سره لا بقرب المسافة په نفلي عباداتو سره) يعني وروسته تر دې چي فرائض خمسه يې پر ځاى کړي وي لکه

(۱) كلمة التوحيد (۲) صلواة خمسة مفروضة (۳) صيام شهر رمضان (۴) الحج (۵) والزكوة ان كان غنيًا في الآخرين. په نفلي سره د دغو فرضي طاعاتو لکه كثرت تكرار د كلمة التوحيد او نفلي لمونځونه كالتهجد وغيره من الصلوة النافلة. وبنوافل الصيام خصوصًا الايام البيض من كل شهر ۱۵/۱۴/۱۳ وعشر ذي الحجة وغيرها وبالحجج النفلية والصدقات النفلية المالية خصوصًا صلة الرحم وانفاق الغزاة في سبيل الله حتى اكون له سمعًا بي يسمع (يعني زما په قدرت سره د لېرې ځاى ځخه اوري) وبصرًا بي يبصر (او زما په قدرت سره د ېر لېرېويني) ويدًا بي يبطش (او زې لاس سم په ما سره يعني تينګول کوي يعني زما په قدرت سره پر د ښمن غالبه کېږي لکه په بدر کې چې ۳۱۳ مؤمنان خداى ﷻ غالبه کړه پر تخمينًا (۱۰۰۰) کافرانو چې (۷۰) يې ځندي مړه کړه او (۷۰) ژوندي ونيول.

**درويش وايي:** چې د دې حديث په رڼا کې د عمر رضي الله عنه خيل لښکر په نهاوند کې ليدل او نعره ورته کول يا سارية الجبل، او د ساريه رضي الله عنه اورېدل حل سوه.

**يوه سه:** چې روح المعاني د دې آيت په تفسير کې وايي الذين هم صلاتهم آه هذا وما عطف عليه صفات مخصصة للمؤمنين يعني كمال فلاح او مقام د قرب الهي و دغو مؤمنانو ته حاصل ده چې د غه خواص پکښې موجود وي. ثم قال وفي بعض الاثار مايؤيد كونها مخصصة. او مظهري رحمه الله وايي چې په قلت (يعني په خپل رايه توله مؤمنان پکښې داخل کړي دي له سياق ځخه د آيت لېرې خبره ده) والله اعلم.

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ﴿۳﴾

او هغه کسان يعني کامل مؤمنان چې د لغوه ځخه اعراض کونکي وي. ابن عباس رضي الله عنه تفسير د لغوه په شرک سره کړى دى. او حسن رحمه الله وايي المعاصي. لکن ښه تفسير شامل دادى چې د هغه شي ځخه چې دوى ته په اخرت کې فائده نه وي که قول وي او که فعل او په مفردات کې وايي چې لغوه من الكلام هو الذي يورد لاعن روية وفكر (لغا) په اصل کې اواز ته د چوغکو او د نورو مرغانو وايي. او هر کلام قبيح ته لغوه وايي (معرضون) يعني اعراض کونکي. نو چې مؤمن کامل د لغوه قول او فعل ځخه ځان ساتي، نو ارتکاب د شرک او نورو کبيره معاصيو ځخه څرنګه ځان نه ساتي. او بعض مفسران تفسير داسي کوي چې مقابله د کفارو

په ښکنځولو سره کوي كما في قوله تعالى واذا مامروا باللغو مروا كرامًا، يعني
کلام قبیح واوري خپل د ځان عزت وساتي په کلام قبیح کي ګډون نه ورسره وکړي
لكن مع هذه التفاسير الخاصة تفسير سابق اشمل اولى دى.

## وَالَّذِينَ هُمْ لِلزَّكَوٰةِ فَاعِلُونَ ﴿٤﴾

**پوه سه**: چي مظهري رح وايي چي لفظ د زكوة پر قدر واجب الذي يخرجه المزكى عن ماله کېږي او پر ده فعل د مزكى يعني ورکول د زکوة هم کېږي، والمراد ههنا الفعل لان الفاعل انما يفعل الفعل دون العين وهو المال انتهى.

**درویش وایي**: چي له دې قول څخه دا معلومه سوه چي ده زکوة په معنى اصطلاحي کړځولى دى، لکن پر ده دا سوال وارديږي چي دا سورت ټوله مكي ؤ او د زکوة فرضيت خو په مدينه کي سوى دى؟ ددې سوال په ځواب کي که څه هم روح المعاني داسي توجيه کړې ده چي د زکوة فرضيت په مکه کي نازل سوى دى لكن تعيين د نصاب د سرو او سپينو زرو وكذا نصب زكوة المواشي په مدينه کي سوى دى انتهى.

**درویش وایي**: چي فرضيت د زكوة شرعي بېله تعيين د نصابو څه فائده لري كما لايخفى. او روح البيان او تفسير خازن له زکوة څخه معنى اصطلاحي اخستي ده. ويرد عليه مايرد على المظهري وقد مرآنفًا.

**درویش وایي**: چي د چون و چرا خلاص تفسير ددې آيت هغه دى چي ابو مسلم کړى دى، دى وايي چي مراد له زکوة څخه دلته عمل صالح دى كما في قوله تعالى خيرًا منه زكاة اى عملاً صالحًا، او راغب لغوي اصفهاني رح وايي چي مراد د زكوة څخه دلته په معنى د طهارت دى. واللام للتعليل والمعنى الذين يفعلون ما يفعلون من العبادة ليزكيهم الله او ليزكوا انفسهم. او طيبي د صاحب الكشف څخه روايت کړى دى قال صاحب الكشف ومعنى الآية الذين هم لاجل الطهارة وتزكية النفس عاملون الخير انتهى. او دې قول ته اشاره په دې آيت کي كريمه: وقد افلح من زكها وقوله تعالى قد افلح من تزكى وذكر اسم ربه فصلى.

**درویش وایي**: چي باعث پر هغو مفسرينو چي د زکوة څخه معنى شرعي اخلي دا دى چي په قرآن عظيم الشان کي چي هر ځاى اقيموا الصلوة وآتوا الزكوة راسي معنى له زکوة څخه معنى شرعي ده. والجواب عنه چي په دې ځاى کي متصل نه دي

سره راغلي. اذ قال الله تعالى الذين هم في صلاتهم خاشعون وروسته يې والذين هم عن اللغو معرضون بيا يې ارشاد فرمايلي دی والذين هم للزكوة فاعلون. نو كه له زكوة څخه معنى شرعي مراد وايي. نو بايد په هغه آيت پوري الذين هم في صلاتهم خاشعون متصل دا آيت راوړی وای والذين هم للزكوة فاعلون، نو به دا نظير د قوله تعالى اقيموا الصلوة وآتوا الزكوة كرځيدلی وای فالفصل بقوله تعالى والذين هم عن اللغو معرضون، يشير ايضًا ان المراد بالزكوة ليس المعنى الشرعي.

**درويش وايي:** هذا تحقيق هذه الآية بقدر الطاقة والله اعلم بمراده في كتابه. فقير دا تحقيق او مخالفت د مظهري او روح البيان د خپلي رايي څخه نه دی كړی بلكې د نورو اهل لغت او تفسير مي نقل كړی دی كما اشرنا اليه عنقريب فتدبر وخذ ما صفی ودع ماكدر.

**وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ۙ﴿۵﴾**

او هغه كسان دي كامل مؤمنان چي دوی ساتي يعني له حرام څخه، واللام في قوله لفروجهم للتقوية.

**پوهه:** چي فرج او فرجة چاک ته وايي بين الشيئين كفرجة الحائط والفرج مابين الرجلين چاک ته وايي، او دلته كنايه ده د فرج او دبري څخه د ښځي او د ذكر او دبري څخه د نر، چونكه الذين مذكر دی او وروسته استثناء د على ازواجهم راځي. نو ځكه معنا كنايي په ذكر سره د نرو زيبا ده.

**اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ**

مكر نه پر مانيو.

**پوهه:** چي زوج نر او ښځي دواړو ته وايي آية كريمه خطابًا لآدم عليه السلام اسكن انت وزوجک الجنة.

**فائده:** دا وصف دی بالعفة ای الكف عن الزنى واللواطة.

**پوښتنه:** په د مخه آيت كي راغله والذين هم عن اللغو معرضون، نو په لغو كي زنى او لواطت هم داخل وه فما الحكمة في الاستثناء؟

**ځواب:** هو! الا انه صرح به اعتناءً بشان الكف عن الزنى واللواطة.

**درويش وايي:** چي فراء وتبعه مالک وغيره رح وايي چي ان على ههنا بمعنى من

دی ای الامن ازواجهم کما ان من بمعنی علی راغلی دی في قوله تعالی: ونصرناه من القوم ای علی القوم، فقیر وایي چې دا ډېره په زړه پورې ترجمه ده او تکلف هیڅ نسته پکښې، روح المعاني د علی زوجاتهم په باره کې ډېرې اوږدې خبرې کړې دي فراجع الیه، او مظهري رح وایي چې علی متعلق په حافظون پورې دی په دلیل ددې محاورې احفظ عليّ عنان فرسي یعني زما د آس ملوني مه ایله کوه زما لپاره، نو دلته یې معنی داده چې د فروجو واکې دې نه ایله کوي مګر پر خپلو ماینو فافهم.

## اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ﴿٦﴾

یا هغه مینځه چې په ملک یمین کې د چا وي (که خپله مینځه یې وه خو په ملک یمین یې وطي ورته روا دي او که د بل مینځه وه په نکاح یې وطي ورته روا دي لکن بعد النکاح یې و مالک ته وطي روا نه دي) دغه حافظون لفروجهم نه دي ملامت یعني په شریعت کې په جماع د ماینو او د مینځیانو.

**فائده:** ملک یمین که څه هم ښځې ته هم پیدا کېږي یعني چې یوه حُره ښځه وي نر مریی رانسي لکن په دې ملک سره ښځې ته نه دی روا چې د دې مریي سره وطي وکړي باجماع الامة. قتاده رح وایي چې په زمانه کې د خلافت د امیر المؤمنین عمر رض یوه ښځه وه چې مېړه یې نه درلود یو مریي یې و چې له هغه څخه یې د طي کار اخستی، چا د دې ښځې حال امیر المؤمنین عمر رض ته ورساوه. نو عمر رض راوغوښتل او ورته وه یې ویل چې تا د څه شي لپاره دا مریي ساتلی دی، هغې ورته وویل چې زما دا خیال و لکه چې نر په ملک یمین د ښځې سره جماع کولای سي ما ته به هم روا وي چې په ملک یمین سره وطي وکړم د خپل مریي سره، نو امیر المؤمنین رض د صحابه کرامو رض سره په دې باره کې مشوره وکړه، نو هغو ورته وویل چې دې ښځې ترجمه د کتاب الله یعني ماملکت ایمانهم پر خلاف د ما انزل الله کړې ده، نو عمر رض ته ډېر درد ورغلی او ښځې ته یې وویل چې زه ستا د نکاح د حر سړي سره هم اجازه نه درکوم دا ستا عقوبت دی او مریي ته یې وویل چې بیا وطي ور سره ونه کړې.

**پوښتنه:** ښځې ته یې حد نه کړی ولې؟

**ځواب:** لان الحدود یندرء بالشبهات.

**مسئله**: که یوه ښځه د مریي په نکاح کي وه او دا ښځه مالکه د زوج مریي سوله یعني دې رانیوی یا چا ورهبه کړی ښځي په حال کي د ملک هغه ازاد کړی نکاح یې فسخ سوه عند علماء الامصار. او مام نخعي، امام شعبي او عبيدالله بن عبدالله رحمهم الله وایي چي پر نکاح سابق سره پاته دي.

**فائده**: قاضي بيضاوي وايي چي کلمه د ما چي د غیر ذوی العقول لپاره ده یعني علی ماهو المشهور اجزاءً للماليک مجرى غير ذوی العقول، ولي چي اصل ملک نو شائع په غیر ذوی العقول كالحيوانات. مظهري رح وایي چي مراد له ماملکت څخه مینځیانې دي والنساء لقلة عقلهن ملحقات بغیر ذوی العقول ولذالک يستعمل ضمائر التانيث لغیر ذوی العقول. نو کلمه د ما چي یې راوړه لپاره د دلالت پر دې چي مراد له ماملکت څخه ښځي دي نه مريان فلا يحل للنساء الاستمتاع بفروج عبيدهن کمامر عنقريب.

فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ﴿۷﴾

که څوک طلب وکړي د ماسوا د ازواجو او د مینځیانو یعني چي ذکر په هغه کي استعمال کړي، نو دغه کسان دي کامل په ظلم کي او په تجاوز کي له حلاله و حرام ته. په ماسوی ذالک کي زنی. لواطت او استمناء باليد ده یعني په خپل لاس ځان انزال ول فانه حرام عند العلماء. ابن جريج رح وایي چي ما پوښتنه وکړه له عطاء رح څخه په باره کي د استمناء باليد قال هو مکروه، ده وویل چي ما اورېدلي دي له علماؤ څخه چي یو قوم به حشر سي په ورځ د قیامت او لاسونه به یې حبالی وي یعني لکه ښځه امیدواره به وي زما دا خیال دی چي دا به دغه کسان وي چي استمناء باليد یې کوله. وعن سعيد بن جبير رض عذب الله امة کانوا يعبثون بمذاكيرهم چي په لاسو کي یې عبث کار کاوه یعني الاستمناء باليد به یې کوله.

**بوه سه**: چي دا آیت ناسخ دی لمتعة النساء چي شیعه ګان یې صیغه بولي. له ابن عباس رض څخه روایت دی چي متعه په ابتداء کي د اسلام رواه وه. هغه داسي چي یو سړی بېګانه ښار ته ورغلی چي هلته به یې څوک نه پېژندي، نو به یې ښځه په نکاح کړه تر هغه وخته پوري چي دده به نیت دا قامت ؤ په هغه ښار کي، او ولوړ به یې هم ور کړی او دې ښځي به خپل کور درلودی د متعې د مېږه شیان به یې

هورې ورخوندي کوله او دوډۍ وغيره به يې هم ورپخوله، او دې سړي به د دې سره جماع کوله تر هغو پورې چې مده مشروطه به پوره کېدله. ابن عباس رض وايي چې دا آيت چې نازل سو (الا على ازواجهم او ماملکت ايمانهم) فکل فرج سواهما حرام رواه الترمذي. دليل دادی چې د متعه د عقد ښځه خو نه د سړي مينځه ده ولې چې حره ښځه ده. او نه يې مانيه ده ولې که يې ماينه وای يو د بله بې ميراث سره ورلای ولاتوارث بينهما بالاجماع. حتى چې روافض چې متعه روا بولي توارث نه وايي. وقد قال الله تعالى ولکم نصف ماترک ازواجکم آه.

**فائده**: د حر سړي ته تر څلورو ماينو پورې روا دي او مينځيانې هر څو چې وي روا دي.

**فائده**: د حيوان وطي لکه د خرې مثلاً په ماوراء ذالکم کې داخل دي. نو وطي يې حرامي دي.

**مسئله**: د ماينې وطي که څه هم حلالي دي لکن په شرط د دې چې په حيض او نفاس او احرام کې يا فريضي روژه يې نه وي والا فوطيها حرام. په خلاصة الفتوى کې وايي که روژه دار سړي استمناء وکړه پر ده قضاء د روژې سته لکن کفاره نسته.

**پوهسه**: چې په صحيح حديث کې راغلي دي قال عليه الصلوة والسلام ومن لم يستطع (اى التزوج) فعليه بالصوم يعني نفلي روژې دي نسي لکسر شهوته. نو که استمناء روا وای. نو دا لار اسانه ده تر صوم وه کذا في انوار المشارق. بلکې بعض علماء وايي چې که پر چا استمناء ثابته سي قاضي دي تعزير ورکړي وکذا في وطي البهائم.

**مسئله**: که يو ښځې چې مينځه يې درلوده مړه ته يې وويل چې زما اجازه ته که وطي ورسره کوې. جمهور علماء پر دې دي چې وطي د مينځې د ماينې په اجازه د ماينې نه دي روا. او دا په وراء ذالک کې داخل دی فيحرم. وهو قول الحسن وابن سيرين رح وروى ذالک عن ابن عمر رض دی وايي چې نه دي روا د غير ښځه د فرج د ماينې الا فرجا ان شئت بعت وان شئت وهبت وان شئت اعتقت. د ماينې مينځه خو داغسې نه ده. رواه ابن ابی شيبة وعبد الرزاق عن ابن عمر رض.

وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ۝٨

او هغه کسان دي کامل مؤمنان چي د اماناتو يعني چي يو چا وده ته امانت کښېښودی مراعات کوي يعني عند الطلب يې و مالک ته سپاري او خيانت نه پکښي کوي او داغه رنګه هغه وعدې چي د دوی څخه اخستل سوي دي د هغو مراعات يعني هغه وعدې پر ځای کوي سواء کانت العهود من جانب الحق جل وعلی کالصلوة والصوم وغيرهما من العبادات التي اوجبها الله علی عباده او من جهة الخلق کالودائع وما واعد الناس وعاقدهم فعلی العبد الوفاء بکلها. محمد بن الفضل رح وايي چي اې بنده ستا اندامونه ټول امانات دي د خدای ﷻ په هر اندام کي خدای ﷻ امر کړی دی (۱) امانت د سترګو دادی يعني په دې نعمت کي امر د خدای ﷻ دا دی چي نا محارمو ښځو ته به په شهوت نه ګوري او په مخلوق کي د خدای ﷻ د ستر دلاري په عبرت ګوري.... سعدي شيرازي رح وايي:

برګ درختان سبز در نظر هوشيار ..... هر ورقی دفتريست معرفت کردګار

(۲) په امانة السمع کي امر د خدای ﷻ دادی چي غوږونه به ساتي د لهو او ربدلو څخه د لغوه او رفث او مجالس ته د ذکر قرائة القرآن او د تبليغ به حاضريږي هغه به په اوري (۳) په امانت کي د ژبي امر د خدای ﷻ دادی چي قرائة د قرآن به په کوي او ذکر د خدای ﷻ به په کوي الی غير ذالک او غيبت د چا او بهتان به پر چا نه په وايي (۴) په امانت کي د پښو امر د خدای ﷻ دادی چي پر پښو به د عبادت لپاره مساجدو ته ځي چي لمونځونه په جماعت وکړي او پر پښو به غزواتو ته ځي او په حج او عمره کي به طوافونه سعي د صفا او مروه به په کوي الی غير ذالک من العبادات التي بالرجل (۵) په امانت کي د خولې امر د خدای ج دادی چي حلال خواړه به په خوري له حرامه به يې ساتي (۶) په امانت کي د لاسو امر د خدای ج دادی چي حرام ته به يې نه غځوي او د في الشرع کار څخه به يې نه سپموي (۷) او په امانت کي د زړه چي رئيس البدن دی خوف الهي ته به قرار پکښي ورکوي او هميشه به په حضور القلب عبادت د خدای ﷻ کوي و مراعات الحق علی دوام الاوقات حتی لا يشغل القلب الا بذکره ولا يسکن الی غيره ولا يطمئن الا بذکره تعالی. (الا بذکر الله تطمئن القلوب) وفي الحديث الصحيح اشار رسول الله ﷺ

الى الجانب الايسر من الصدر وقال التقوى ههنا التقوى ههنا.

وَالَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُونَ ﴿٩﴾

او د كامل مؤمنانو يو خصلت به دا وي چي پر صلوٰة خمسه به دوام كوي او په خپلو اوقاتو به يې كوي بشرائطها وادابها.

**سوال:** الذين هم في صلوتهم خشعون: او دا آيت به تكرار نه وي؟

**ځواب:** لا! ولي چي خشوع په لمانځه كي غير له محافظت څخه كما لايخفى.

**نكته:** خداى ﷻ ابتداء د اوصافو د كامل بندګانو په ذكر سره د لمانځه وكړه او ختم د اوصافو د كامل بندګانو به هم په لمانځه وكړي لپاره د تعظيم د شان د لمانځه كما ورد في الحديث الصحيح الصلوٰة عماد الدين الى اخير الحديث.

**پوښتنه:** خداى ﷻ په خشوع كي لفظ د صلوٰة مفرد راوړى حكمت يې څه دى؟

**ځواب:** اشاره ودې ته ده چي په جنس لمانځه كي له خشوع څخه چاره نسته كه فرض وي او كه واجب وي كه سنت وي او كه نفل وي لان لفظ المفرد يدل على الجنس. او په محافظت كي د لمونځو يې لفظ د جمع راوړى لپاره د دلالت پر انواعو د لمونځو من الفرائض والواجبات والسنن وغيرها.

أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ ﴿١٠﴾

دغه كسان چي موصوف په دغو صفاتو مذكوره سره وي، دوى دي وارثان وبس كمايدل عليه ضمير الفصل حق داره ددې چي وارثان وبلل سي دون غيرهم.

**پوهه:** چي دا جمله معترضه لپاره د مدح ده.

الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿١١﴾

**پوهه:** چي الذين يرثون الفردوس صفت كاشفه دى د الوارثون، يا يې عطف بيان دى يا يې بدل دى هريو چي سي په دې كي بيان د مايرثونه.

**فائده:** وراثت يې اول مطلق وواية يعني هم الوارثون بيا يې مقيد وواية يعني الذين آه لپاره د تعظيم د وراثة او د تاكيد د وراثت.

**فائده:** فردوس اعلى د جنتو دى او اوسط د جنتو دى وافضلها پر دې تقدير هغه حصر چي مورد ذكر كړى د جنت په دغو كسانو كي چي موصوف په دغو صفاتو سره

هیڅ اشکال نشته پکښې، ولې هغه کسان چې موصوف په دغو صفاتو سره نه وي وان دخل الجنة يرث الفردوس التي هي افضلها (هم فيها خالدون) دوی به په فردوس کې همېشه وي والضمير راجع الى فردوس والتانيث باعتبار المعنى كمامر قريبًا.

**فائده:** ابن الشحنة وايي چې فردوس په اعتبار د لفظ مذکر دی او په اعتبار د معنی چې جنت دی مؤنث نو د مذکر او مؤنث دواړه ضمير ورته راجع کېږي.

**فائده:** په لفظ کې د ارث اشاره و تاکيد ته د استحقاق د دوی ده لان الارث من اقوى اسباب الملک الاترى انه لايرد بالرد بخلاف الهبة والصدقة وغيرهما حيث يردان بالرد. اخرج سعيد بن منصور وابن ماجة وابن جرير وابن المنذر عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ چې نشته د تاسي (يعني نفس انسان که مسلمان وي که کافر) مگر هر يوه لره دوه ځايه سته يو ځای په جنت کې (اشاره ده و ډېرې فراخۍ ته د جنت يعني که فرضًا ټول انسانان مؤمنان وايي په جنت کې بې ځای وايي) ومنزل في النار (اشاره و فراخۍ ته د دوږخ ده يعني که ټول انسانان کافران وای په دوږخ کې به ځاييدله) نو يو انسان چې کافر وي او مړسي او دوږخ ته داخل سي. ورث اهل الجنة منزله في الجنة فذالک قوله تعالى اولئک هم الوارثون.

**درويش وايي:** چې وكذالک العکس يعني چې مؤمن مړ سي ودخل الجنة يرث الكافر منزله في النار.

**فائده:** د خلود معنی داده چې نه به دوی مړه کېږي او نه به له جنته ايستل کېږي.

**فائده:** دا چې ذکر سوه په دې آيتو کې چې لس خويه دي چې جامع د ټولو ابواب د خير دي ولهذا صحح عن النبي ﷺ انزل على عشر آيات من اقامهن (يعني عمل يې په وکړی) دخل الجنة ثم قرء قد افلح المؤمنون حتى ختم عشر آيات.

**درويش وايي:** چې په تفسير د سورة الفاتحة للمولى الفناري رح راغلي دي چې جنتونه درې قسمه دي، الاولى: جنة الاختصاص يعني الفضل الالهي وهي التي يدخلها الاطفال الذين لم يبلغوا حد العمل، ددې اطفالو اندازه د اول زېږيدو څخه ويستهل صارخًا تر څو چې لس کاله عمر پر تېرېږي، او صحيح داده چې تر دې حده چې د نېک عمل او د بد عمل تمييز کولای سي، ويعطى الله من جنات الاختصاص من شاء ماشاء او د جنت اختصاص اهل دي هغه لېونيان چې په شي نه پوهېږي. ومن اهل هذه

الجنة اهل التوحيد العقلي، ومن اهلها اهل الفترات ومن لم يصل اليهم دعوة الرسل كسكان شواهق الجبال. او دويم قسم جنة الميراث يرثها المؤمنون من المواضع التي عينت لاهل النار كما مر، او دريم قسم جنت الاعمال وهي التي ينزل فيها باعمالهم فمن كان افضل من غيره باعتبار الاعمال كان له من الجنة اكثر، اكبر انتهى.

وَلَقَدۡ خَلَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ مِن سُلَٰلَةٍ مِّن طِينٍ ﴿١٢﴾

(اللام موطئة لقسم محذوف، والمراد بالانسان جنس الانسان في ضمن خلق آدم خلقا اجماليًا او المراد آدم[٤]) من سلالة من طين: اى من خلاصة چي پاک سوي د كدوراتو څخه د ختهو دي، وكلمة من الاولى للابتداء، وكلمة من الثانية لبيان سلالة اى سلالة هي طين، او يا صفت دى اى سلالة كائنة من طين.

**پوه سه**: چي آدم عليه السلام د مځكي د مخ هر قسم خاوره راټوله كړل سوي وه كه خوږه خاوره وه او كه تروه او كه ترخه او كه شيګلنه او كه پسته ولهذا جاء اولاده على طباع شتى كما جاء في الحديث الصحيح. او نور انسانان بيا له نطفو څخه پيدا سوي دي چي دا نطفي له غزايي موادو څخه د مځكي پيدا سوي دي، وفي الجلالين اى من خلاصة سلت من بين الكدر آه.

**فائده**: كلمه د واو في ولقد آه استينافيه ده، وهذا الواو كثير في الهداية، ولقد تكلف المظهري رح في جعلها عاطفة متابعة لابن عطية وقال صاحب روح المعاني وفيه نظر فارجع.

ثُمَّ جَعَلۡنَٰهُ نُطۡفَةً فِي قَرَارٍ مَّكِينٍ ﴿١٣﴾

بيا مونږ وګرځاوه جنس الانسان باعتبار افراده المغايرة لآدم، نو ضمير مذكر راجع دى و جنس ته چي له ماقبله وفهمېدى، او بعض مفسرين مضاف محذوف بولي اى نسله، نو ضمير انسان ته راجع دى، وما قال المظهري رح چي ضمير سلالة ته راجع دى په تاويل د مسلول فبعيد.

**فائده**: نطفه صافو اوبو ته وايي دلته تعبير دى له اوبو څخه د نر (في قرار) اى مستقر وهو رحم المرئة عبر عن الرحم بالقرار الذي هو مصدر مبالغة (مكين) يعني محكمه.

**بوه سه:** چي مکين صفت دی د قرار چي مراد ځنې رحمِ وُ لکن دا صفت په اعتبار د ما استقر فيها روح البيان.

**فائده:** څلوېښت ورځي صافي سپيني اوبه وي، تفسير حسيني بالترجمه.

# ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً

وروسته يعني تر څلوېښت ورځي موږ وګرځول نطفه چي سپيني اوبه وي (علقة) سرې جامدې ويني لکه د هيني ټوټه، وروسته موږ وګرځول هغه علقه يوه ټوټه د غوښو يعني لکه سرې چي غوښې وژويي.

# فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظٰمًا فَكَسَوْنَا الْعِظٰمَ لَحْمًا

موږ وګرځول هغه مضغه هډوکي يعني لکه هډوکي يعني هډوکي مو پکښې پيدا کړه، او موږ واغوستل په هغو هډوکو يعني مما بقي من المضغة غوښې، او لحمًا منصوب په نزع د حرف جر ده اى كسون العظام بلحم.

**فائده:** عظام يې دوا ره ځايه جمع راوړه په سبب ددې چي هډوکي په هيئت کي يعني بعض پنډ وي او بعض نري بعض اوږده وي او بعض لنډ وي، بعض مستوي بعض کاږه وي او داغه رنګه په ټينګوالي او په سستوالي کي فرق سره لري بخلاف النطفة والعلقة والمضغة فانها متشابهة الاجزاء، كما لايخفى.

# ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ خَلْقًا اٰخَرَ

بيا موږ پيدا کړی ضمير راجع دی و انسان ته که مراد ځنې جنس وي او که آدم وي (خلقنا آخر) مفعول مطلق دی د انشاء نا من غير لفظه اى خلقناه خلقًا آخر.

**بوه سه:** چي ابن عباس، مجاهد، شعبي، عکرمه، الضحاک او ابو العالية ﷺ وايي چي مراد د خلق آخر څخه نفخ الروح فيه او مراد له روح څخه روح سفلي دی چي روح حيواني دی چي دده په نفخ سره وګرځېدی حيوانًا ناطقًا سميعًا بصيرًا او په هر عضو کي دده او په هره خبره کي دده غرائب د قدرت الهي مودع دی چي نطاق د بيان او شرح کامل د هغو د پر تنګ دی کما قال الشاعر:

وتزعم انک جرم صغير ......... وفيک انطوى العالم الاکبر

ولهذا قيل الانسان انموذج العالم الکبير الصوري، وقيل الخلق الآخر الروح

والمراد به النفس الناطقة والمعنى انشاله او فيه خلقا والظاهر من انشاء الروح خلقها وظاهر العطف بثم يقتضي حدوثها بعد حدوث البدن وهو قول اكثر الاسلاميين واليه ذهب ارسطو قال ذالک صاحب روح المعاني، او كه چېرې له روح څخه روح انساني مراد سي كما قلت سابقا فلا كلام في حدوثها بعد استكمال البدن وسريانها فيه فافهم.

## فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ ﴿١٤﴾

اى تعالى وتعظم من انيكون له شريک في الذات يعني الواجب الوجود او في امتثال اوامره او الانتهاء عن مناهيه، كلمه د فاء لپاره د سببيت ده، يعني چي خداى جَلَّ جَلَالُهُ دقيق او د حكمت سره برابر كارونه وكړه كما مر في الآيات المذكوره، نو دا دليل د كمال قدرت دده او د حكمت نو لازمًا دى موصوف په كبرياء او عظمت سره و علو شانه من انيكون له شريک.

**پوه سه**: چي احسن الخالقين بدل دى د لفظ الله څخه يا خبر د مبتداء محذوف دى اى هو او صفت يې نه دى كه څه هم مضاف و معرفه ته دى لانه نكرة معنًى لان اللام عوض عن من التفضيلية والتميز ههنا محذوف اى احسن الخالقين خلقًا، او روح المعاني وايي چي احسن الخالقين نعت دى د اسم جليل واضافة افعل التفضيل محضة فتفيده تعريفًا اذا اضيف الى المعرفة على الاصح.

**فائده**: تبارک ماضي ده نور تصرف نه دى پكښي راغلى من المضارع وغيره والاكثر اسناده الى غير مؤنث.

**پوه سه**: چي معتزله په دغه آيت سره دليل وايي چي بندګان خالق د خپلو افعال اختياره وو دي حتى يتحقق تفضيل الله عليهم في الخق، لكن چونكه دلائل عقليه او شرعيه دال پر دي دي چي خلق په معنى د ايجاد دى يعني اعطاء الوجود وممكن ته خاصه ده خداى جَلَّ جَلَالُهُ ده كريمه: والله خلقكم وما تعملون، وانعقد عليه اجماع الصحابة رضي الله عنهم والتابعين ومن بعدهم، والجواب عن استدلالهم دادى چي مونږ اهل السنة والجماعة وايو چي د بندګانو په خپلو افعال اختياره وو كي يو نوع د اختيار او ارادې سته چي هغه مناط د تكليف من الله عزوجل او سبب د ثواب او عقاب ده، او هم په دغه سبب اسناد د افعال اختياره و دوى ته كيږي من العبادات وغيرها مثل صلى زيد

وصام عمرو وضرب زيد وقام عمرو. او دې نوع ته موږ کسب وايو لکن دا قدر اختيار او اراده په ايجاد کې د معدوم کافي نه ده. که جوهر او که عرض ايجاد يعني اعطاء الوجود للمعدوم په قدرت کامله او په ارادة شامله پورې د خداى ؏ مربوط ده. ودې ته موږ خلق وايو وذالک التعلق کاف لايجاد کل معدوم جوهرًا کان او عرضًا لکن حکيم خداى ﷻ و کسب ته عبد دخل ورکړى دى په بعض افعالو اى الاختيارية لان تکليف العاجز من کل وجه يخالف مقتضى الحکمة والعدل. نو زموږ او د معتزله په منځ کې اختلاف دى. ولې چې دوى وايي چې قدرت د عبد او اراده د هغه کاف في ايجاد المعدوم ونحن لانقول به.

**سوال:** نو احسن الخالقين په صيغه د تفضيل څرنګه صحيح کېږي زموږ پر مذهب؟

**جواب:** موږ دا منو چې د لفظ خلق اطلاق پر کسب د بنده صحيح دى او پر خلق د خداى رح هم نو تفضيل صحيح دى.

**درويش وايي:** چې په اسئلة مقحمة ؤکي وايي بعد ايراد سوال المعتزلة جوابًا عنه چې معنى د آيت دا ده احسن المصورين لان المصور يصور الصورة ويشکلها على صورة اى مخلوق شاء لکن مصور پر دې نه دى قادر چې تصوير دده و اندازې ته د خلق ورسېږي لان المصور لايقدر على نفخ الروح فيه. وقد ورد الخلق بمعنى التصوير في القرآن العزيز. قال الله مخاطبًا لعيسى ؏ (واذ تخلق من الطين کهيئة الطير) اى اذ تصور کذالک ههنا اى احسن الخالقين.

**درويش وايي:** چې د خلق او کسب فرق دقيق دى چې علامه تفتازاني رح په شرح العقائد او شرح المقاصد کې ډېر په زړه پورې بيان مفصل کړى دى او په دې باب محب الله البهاري رح په مسلم الثبوت کې هم پوره ونډه اخستې ده.

**فائده:** راويان د صحيح احاديثو وايي چې عبد الله بن ابي سرح د عليه الصلوة والسلام د وحي کاتب ؤ، نو عليه الصلوة والسلام چې ودې ځاى ته آيت ورساوه (خلقًا آخر) عبد الله بن ابى سرح د مخه تر املاء و عليه الصلوة والسلام ته وويل (فتبارک الله احسن الخالقين) عليه الصلوة والسلام ورته اکتب هکذا انزلت، نو عبد الله ته شک پيدا سو فقال ان کان محمد ؏ يوحى اليه فانا کذالک يعني ما ته خو هم وحي وسوې، نو مکې ته ولاړى کافر سو، ثم اسلم يوم فتح مکة وقيل مات

على كفره. او دا آيت چي عليه الصلوة والسلام يعني خلقًا آخر پر عمر رضي الله عنه تلاوت کړی عمر رضي الله عنه مبادرت وکړی فقال فتبارک الله احسن الخالقين، عليه الصلوة والسلام ورته وويل هكذا انزلت يا عمر فكان عمر رضي الله عنه يفتخر بتلک الموافقة.

**درويش وايي:** چي فكر وكړئ چي دا يوه واقعه سبب د سعادت د عمر رضي الله عنه وګرځېدل او سبب د شقاوت د ابن ابی سرح سوه کریمه، کریمه: يضل به كثيرًا ويهدي به كثيرًا اى بالقرآن.

**سوال:** قرآن پاک خو معجز دی، نو څرنګه عمر رضي الله عنه يا ابن ابی سرح دا آيت ووايي؟

**ځواب:** خارج د طوق د بشر خو مقدار د اقصر سورةٍ دی وههنا ليس كذالک وما قال المظهري ان هذه القصة تدل على ان مادون الآية ليس بمعجز يقدر عليه البشر كما ههنا يخالف آيات التحدى في القرآن حيث قال الله تعالى: وان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فاتوا بسورة من مثله، اى بسورة قصيرة كما قال اهل التفسير.

**يو دقيق سوال:** بعضي خلکو پر قصه د ابن ابی سرح طعن ويلی دی له دې سببه چي دا سورت خو مكي دی كما مر في اوائل هذه السورة وكتابة ابن ابی السرح كان بالمدينة، واجاب عنه العلامة البغدادي رحمه الله بان الجمع ممكن لان السورة وتلک الآية وان كانتا مكيتين لكن طلب د كتابت د آيت مذكوره د ابن ابی سرح څخه عليه الصلوة والسلام په مدينه كي وكړی فكان ما كان اى قصة ارتداده. او بل ځواب دادی چي سورت چي مكي دی په اعتبار د اكثر و اغلب او دا آيت مدني دی ولا عابت فيه انتهى.

**تنبيه:** په قصه كي د ابن ابی سرح راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام چي مكه مكرمه فتح كړه د ابن ابی سرح وژل يې مباح وګرځول. ابن ابی سرح و عثمان رضي الله عنه ته ورغلی. عثمان رضي الله عنه ده د لپاره امان وغوښتی د رسول الله صلی الله عليه وسلم. نو عليه الصلوة والسلام ډېر ګړی پټه خوله ناست ؤ، اخير يې عثمان رضي الله عنه ته وويل نعم! يعني امان مي ورکړی. نو عثمان رضي الله عنه چي ولاړی عليه الصلوة والسلام و خلكو ته وويل چي زه چي پټه خوله ډېره زمانه ناست وم له دې سببه چي كوندي ابن ابی سرح به تر امان د مخه څوک قتل كړي. يو سړي ورته وويل چي موږ به دي د سترګو په اشاره كړي واى موږ به فورًا وژلی واى، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي نبي ته خيانت د

مشرکو نه بنايي، راوي وايي چي ابن ابی سرح په دغه ورځ مسلمان سو وحسن اسلامه والله اعلم بحقيقة الحال.

## ثُمَّ اِنَّكُمۡ بَعۡدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوۡنَ ﴿۱۵﴾

وروسته تر دغو احوالو ستاسي چي تېر سوه يعني من قوله تعالی: ولقد خلقنا الانسان الی ههنا، تر دې آيت پوري په تحقيق تاسي به مړئ عند انقضاء اجالکم وفي هذه الآية التفات من الغيبة في الآيات السابقة الی الخطاب للتاکيد. او هم ددې تاکيد لپاره يې په سر کي جمله ان ده کيد راوړی، او لام د تاکيد په خبر کي، والوجه في التاکيد چي خلګ پر کفر او معاصيو ټينګ دي، نو دوی يې نازل پر منزله د منکر من الموت والبعث بعد الموت. امام بغوي شافعي المذهب وايي چي ميت بتشديد اليا، والمائت علی صيغة اسم الفاعل و هغه چا ته وايي چي تر اوسه خو مړی نه وي لکن په اينده کي به مړ سي ولهذا صح الخطاب معهم والميت بتخفيف الثاء من مات ته وايي. ولهذا لم يجز التخفيف ههنا لانه لايجوز الخطاب والنصح لمن مات ومن هذا القبيل قوله تعالی انک ميت يعني ستموت وانهم لميتون يعني ستموت الکفار ايضًا.

## ثُمَّ اِنَّكُمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ تُبۡعَثُوۡنَ ﴿۱۶﴾

وروسته يعني بعد الموت په تحقيق تاسي ژوندي کړل کېږئ په ورځ د قيامت، يعني د حساب او مجازات لپاره للمؤمنين بالجنة ونعيمها ولکفار بالنار وحرها.

درويش وايي:

چون بخاکم بگذری دامن کشان...... از سر اخلاص الحمدي بخوان

دا ياران چي پر همهٔ مځکو اوري...... مشرف يې کړی ذات د کيميا ولي

ارسال سلام په سيد الانام عليه الصلوة والسلام:

بادِ صبا مدینے میں مصطفیٰ سے ہم غریبوں کا سلام کہنا

نہیں ہے کوئی بجز تمھاری بس میرا اتنا پیام کہنا

صبا بگلشن احباب گرهمی گذری.... بگوی زحال غريبی بآن حبيب خبری

**بوه سه:** چي زما مراد له ګلشن احباب څخه مدينه منوره ده او له غريب څخه

مي خپل ځان مراد دی او کلمه د یاء د وحدت ده، او د آن حبیب څخه مي سردار انبیاء علیه الصلوٰة والسلام مراد دی.

**وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَآئِقَ ۖ وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غٰفِلِيْنَ ﴿۱۷﴾**

قسم په خدای ﷻ دی په تحقیق پیدا کړي دي موږ پر تاسي سربېره اووه اسمانونه چي لاري د ملکو یا د ستورو دي، او نه یو موږ له جنس مخلوق څخه خپل چي د هغو له جملې څخه اسمانونه هم دي غافله. یعني چي موږ د مخلوق حفاظت مهمل پرې ایښی وي بلکې موږ یې ساتو. مثلاً اسمان پر مځکه نه راشوه کېږي او نه یو اسمان پر بل راچپه کېږي.

**پوه سه:** چي لام لپاره قسم محذوف دی ای والله، او قد لپاره د تحقیق دی او د سبع طرائق څخه اووه اسمانه دي چي لاري د ملائکهؤ دي یا د ستورو په خپل سیر کي او دا جمله عطف ده پر ولقد خلقنا الانسان باندي.

**پوه سه:** چي جمله د (ولقد خلقنا آه) عطف ده پر (ولقد خلقنا الانسان آه) باندي.

**فائده:** جمله ولقد خلقنا فوقکم آه په حکم کي د علت ده لقوله ولقد خلقنا الانسان آه یعني موږ اووه طبقې اسمانونه یو پر بل سربېره پیدا کړي دي تاچي له هغو څخه پر تاسي ارزاق او برکات نازل سي کما سیئاتي في الآیة التالیة، ومن فوائد السموات طلوع الشمس والقمر والکواکب علیکم لان لکل واحد منها.

فائده: في نظام العالم مثلاً په مطالع پوري د شمس دوولس برجان مربوط دي چي په هرو درو برجانو پوري یو فصل د فصولو اربعه وو یعني ربیع، صیف، خریف او شتا تړلي دي چي په هغو د انسانانو مصالح او فوائد نغښتي دي.

**درویش وایي:** چي هکذا منافع د مېوو او کښتو د رنګ او خوند څخه خدای په خپل قدرت په تناؤ سره د منازلو د قمر او د ستورو تړلی دی، ودلیل الکل لانا ماکنا عن الخلق خصوصاً الاناسي وعما یصلح لهم غافل نه یو.

**وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ فَاَسْكَنّٰهُ فِي الْاَرْضِ ۖ**

او را کښته کړي یعني اورولي موږ له اسمان څخه او به یعني باران (عطف علی خلقنا. داخل تحت ولقد والتقدیر ولقد انزلنا آه) بقدر: ای بمقدار ماعلمنا

(په دې اوبو کې اصلاح د عالم او ځای مو ور کړی دی اوبو ته په مځکه کې یا په رود کې یا په کارېزو او چینو کې) صلاح نوع الانسان والحیوانات وغیرها (فاسکناه في الارض) ضمیر راجع دی و ماء ته او دا جمله عطف ده پر انزلنا. نو مو دا اوبو ته قرار ورکړو په مځکه کې. د قرار معنی داده چې حوضونه یې ډک سي او کارېزونه جاري سي او لوی لوی رودونه پر مستی راسي، او تر درختو لاندې ویالې بهېږي، نو ټوله اوبه د مځکې ماء السماء دي. او تجربه هم پر دې دلالت کوي چې څو کاله چې بارانونه په کافي اندازه نه ووري کارېزونه او چینې وچې ګرځي او رودونه یا وچ سي یا یې اوبه ډېرې کمې سي او دود د وچ کالی پر اسمان پورته کېږي..... بیت:

تا نګرید ابر کی خندد چمن........ تا نګرید طفل کی جوشد لبن

وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابٍ بِهِۦ لَقَـٰدِرُونَ ﴿١٨﴾

او موږ پر تګ د دې اوبو یا د ګرمی په سبب بخار وګرځي د اسمان و خوا ته ولاړ سي، یا په اعماقو کې د مځکې ډېرې کښېته ولاړې سي چې خلک یې له طلب څخه په اساني سره عاجزه پاته سي.

**پوه سه:** چې ذهاب یې نکره راوړی اشاره ورته ده چې د ذهاب طریقې یې ډېرې دي. نو دا مبالغه ده په بېرولو کې د خلکو، قال عز من قائل: قل ارئیتم ان اصبح مائکم غورًا فمن یاتیکم بماء معین.

**فائده:** دا آیت یعني و انا علی الخ اکثر مبالغه دی تر قل آه (۱) په دې سبب چې په قل آه کې لفظ د ان راغلی دی چې لپاره د شک دی او آیت د انا علی آه دال پر تحقیق د وعید وان لم یقع (۲) په دې آیت کې تاکید په ان راغلی دی بخلاف قل آه (۳) په خبر کې لام د تاکید راغلی دی یعني لقادرون بخلاف قل آه (۴) الغائر من الماء کما في آیة قل آه قد یکون باقیًا في اعماق الارض بخلاف الذاهب کما في آیة وانا آه (۵) په تنکیر کې د دا ذهاب آه مبالغه ده (۶) نسبت د اذهاب خدای جل جلاله و خپل ځان ته کړی دی بخلاف قل آه.

**درویش وایي:** چې صاحب التقریب له دې قسمه څخه اته ویشت وجهې د مبالغې راوړي دي... متل: مشت نمونه خروار.

وحاصل الآية خداى پاک وايي لکه موږ چي پر انزال د اوبو له اسمان څخه قادر يو پر اذهاب يې بنه ترا قادر يو، نو که دا اذهاب واقع سي تاسي به له تندي مره سئ، او مواشي به مو هم له تندي مره سي او ځمکي او سرا يو نه به مو خراب سي.

## فَأَنشَأْنَا لَكُم بِهِۦ جَنَّٰتٍ مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَٰبٍ

نو موږ ايجاد کړو (فانشاء) عطف دى پر انزلنا) ستاسي د نفع لپاره په هغو اوبو سره باغونه د خورما وو.

**درويش وايي:** چي خورما يې تر ټولو د مخه راوړه له دې سببه چي په دې کي لوی غذائيت سته حتى چي که چاته خورما او اوبه رسيږي په مياشتو مياشتو له لوږي نه مري او نه ضعيف کيږي، کما روى عن امنا سيدتنا عائشة ﵂ چي دې وويل چي موږ په حيوة پر برکات کي د رسول اکرم ﷺ ب دري سپوږمۍ په دوو مياشتو کي وليدى چي په دغه دوران کي په هيڅ کور کي د عليه الصلوة والسلام اور نسو بل، راوي ورته وويل چي ستاسي د ژوند په څه شي ګذاره وه؟ دې ورته وويل الماء والتمر، او په بل صحيح روايت کي راغلي دي چي لما فتح خيبر قلنا الآن نشبع من التمر، او بل دا چي خورما شرافت نسبي لري چي له فضله څخه د ختو د آدم عليه السلام خداى جل جلاله پيدا کړي ده، ولهذا قالوا التمر عمة اولاد آدم[4] (واعناب) عطف دى پر نخيل يعني باغونه د انګورو.

**درويش وايي:** چي د انګورو د باغو خزانه افغانستان دى بالخصوص قندهار خير الامصار في الثمار، اعناب يې په صيغه د جمع راوړه ولي چي اقسام د انګورو ډېر دي چي اته ويشت قسمه انګور ماته معلوم دي.

## لَّكُمْ فِيهَا فَوَٰكِهُ كَثِيرَةٌ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ۝١٩

• تاسي لره په دغو باغو کي، او د دې نباتو د مېوو او د کښتو چي د اوبو سره تړون لري لکه غنم، جوار، ورجي، اوربشي او نور تاسي خوراک کوئ لپاره د تغذيې يا تفکه، او د دې باغو مېوې او د دې کښتو حاصلات ستاسي ماتحتاجون اليه هم پوره کوي يعني په دغو حاصلاتو د باغو او ځمکو مذکوره شيان رانسئ لکه کالي، قالين، سپين زر، سره زر وانيول الى غير ذالک.

**درويش وايي:** چي فواکه جمع د فاکهة ده، هغه مېوې ته وايي چي خلک يې

صرف د خوند او مزې لپاره خوري يعني نه د غذائيت لپاره لکه مالتې، کېلې، سېب، شفتالو، الوبالو، ګړنګيچ. انار زردالو، الوګردګو الی غير ذالک من انواع الفواکة المعلومة.

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير نخيل او اعناب څخه دي مستثنی دي، ولي چي په هغو کي په زياته توګه غذائيت سته.

**فائده:** کلمه د من داخله پر منشاء ده قال المظهري وخص النخيل والاعناب بالذکر لانهما من اعز فواکه العرب انتهی.

**درويش وايي:** چي په قول کي د مظهري له فواکه څخه معنی مذکوره نه ده مراد بلکې نفس خوراکي مواد مراد دي فافهم.

**بوستنه:** خدای ﷻ په دې آيت کي لکم ده ځايه ذکر کړی. نو سره د هغه خدای ﷻ پاک انسانان په زهد سره امر کړي دي چي له دنياوي نعمتو څخه دي بې پروايي اختياره کړي الا بقدر الضرورة؟

**ځواب:** د يو چا په واده کي چي د زوم پر سر خلګ د نقلو او چاکليټو بلکې د روپو خونی وکړي زوم يې په خپله نه ټولوي او حملې نه پر وهي لعلو همته. او که يې څيري زوم په خپله ټولوي خلګ دده عيب بولي، نو اولياء الله هم په سبب د لوړ همت ددوی خپل ځانونه يې له طيباتو څخه د دنيا منع کړي دي بلکې په لږ څه يې قناعت کړي دي رجاء رفع الدرجات في النعيم المقيم، وجاء في الحديث النبوي[۴] اخترت جوع الدنيا علی شبعها. وفي حديث آخر خطابًا لامته جوعوا انفسکم لوليمة الفردوس، پوهان وايي چي که د چا مېلمه سوې د ښوروا له کاسې څخه غټې غټې ګولې مه پورته کوه يعني چي په ښوروا ځان موړ کړې. ولي چي غوښې هم را روان دي بلکې ورجي، پېرني او مېوې هم را رواني دي نو هغه به بيا چېرې ځايوې نس خو (کاکښنه) نه ده.

وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُورِ سَيْنَاءَ تَنْبُتُ بِالدُّهْنِ وَصِبْغٍ لِلْآكِلِينَ ﴿۲۰﴾

(وشجرة) بالنصب عطف علی جنات او دا درخته چي زيتون يې بولي چي خاص يې کړه په ذکر سره من بين سائر الاشجار، ولي چي په دې درخته کي منافع معروفه سته کما سيأتي. تاريخ وايي چي زيتون اوله درخته ده چي وروسته تر طوفان نوح پر

مځکه شنه سوې ده، او په انسان العيون کي وايي چي درخته د زيتون درې زره کاله طبعي عمر کولای سي چي څوک يې قطع نه کړي (تخرج من طور سيناء) چي شينه کېږي له طور سينا څخه، دا هغه غر دی په منځ کي د مصر او ايله موسی ؑ ته خدای ج نداء وکړه، وقصة معروفة. دې غره ته طور سنين او طور سينا دواړه وايي. معنی يې الحسن والمبارک ده. قال اهل التفسير اما ان يکون الطور اسم الجبل وسيناء البقعة اضيف اليه الطور او المرکب منهما علم له کامرئی القيس وسيناء بالفتح على وزن صحراء غير منصرف للالف الممدودة القائم مقام السببين. او که سينا بکسر السين لکه اهل الحرمين چي وايي، نو فعال دی پر وزن د ديماس، نو عدم الصرف يې يا له جهته د علميت او عجمه دی او للتعريف والتانيث بتاويل البقعة لا للالف.

**درويش وايي:** چي مظهري او روح البيان طور سنين او طور سينا سره يو بولي. او روح المعاني د بعض علماؤ څخه روايت کړی دی چي طور سيناء په فلسطين کي دی من ارض الشام ويقال طور سنين والاول هو الاصح، او مظهري رح کما هو عادته قيل وقيل ډېر راوړی دی. لا فائدة في ايرادها الا تشويش ذهن المتعلم لهذا التفسير فافهم.

**پوه سه:** چي (تنبت بالدهن) بل صفت دی د شجرة ضمير مؤنث راجع و شجرة ته دی. او کلمه د باء متعلق ده په محذوف پوري، حال دی له ضمير څخه د تنبت. والتقدير تنبت متلبسة ومصتصبحة بالدهن کما قال الراغب تنبت والدهن موجود فيها بالقوة. (وصبغ للآکلين) صبغ عطف دی پر الدهن. صبغ په لغت کي رنګ ته وايي او په اصطلاح کي د عربو هغه شي ته وايي چي ډوډۍ په پوري کېږي چي په فارسي يې نان خورش بولي. لکه دوښا. چټني، مستې وغيرها او په عربي يې ادام بولي يعني ډوډۍ په هغو غوړو کي د زيتون غوټه کړي بيا يې خوري لکه په سرکه کي ډوډۍ غوټه کړي بيا يې خوري. والمعنى چي د زيتون روغن هم دهن دی چي څراغ په بلېږي او هم د ډوډۍ د پوري کېدو ادام دی.

**پوه سه:** چي د ډوډۍ د پوري کېدو په شي رنګ نه دی شرط. ولي چي بعض ادام رنګ لري لکه دوښا او بعض رنګ نه لري لکه سرکه.

**پوښتنه:** زيتون يې ولي په طور پوري خاص کړی؟

**ځواب:** اوله درخته د زيتون په طور کي پيدا سوې ده، ورنه د زيتون درختي په نورو ممالکو کي موجودي دي، حتى چي په جلال آباد کي چي د افغانستان يو ولايت دى هم سته.

## وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً

په تحقيق تاسي لره په انعامو کي چي مراد ځندي دلته ښځه اوښه، ښځه غوا، ښځه مېږ او ښځه بزه ده بقرينة مابعد هذه الآية. عبرت سته يعني تاسي دغه حالات دليل وګرځوئ پر کمال قدرت او حکمت د خداى ﷻ.

**پوهه:** چي دا جمله عطف ده پر انشاءنا لکم آه باندي.

**سوال:** په نحو کي وايي چي لفظ د ان پر هغه جمله داخلېږي چي مخاطب ځندي منکر وي، په ما نحن فيه کي څه ځاى د انکار دئ؟

**ځواب:** چونکه خلک د دې حکمت او قدرت الهي څخه غافل وه نو دوى يې نازل د منزلة المنکر کړه او ان د تحقيق يې راوړى.

## نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهَا

چي موږ تاسي اوبه وو (مما في بطونها) چي عبارت له شيدو څخه دى.

**پوهه:** چي دا جمله تر (وعليها آه) پوري جمله مستانفه ده په جواب د سوال د سائل چي په انعام کي څه عبرت دى، وحاصل الجواب ان فيها عبر لاعبرة واحدة کما ستسمع من القران. کلمه د من په مما کي تبعيضي ده، ولي چي ټوله مافي بطون الانعام خو د څښلو شي نه دى کما لايخفى. يا عبارت له وينو او غذايي موادو څخه د انعام، نو کلمه د من ابتدائيه ده ولي چي منشاء د شيدو وابنه دي.

## وَلَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ كَثِيرَةٌ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿٢١﴾

او تاسي لره په انعامو کي نور هم ډېر منافع سته (چي پر بعضو به سپرېږئ لکه اوښه، او د اوښې وړۍ، چي په عربي يې وبر بولي او د مېږي وړۍ چي په عربي يې صوف بولي، او پر وجڼو د بزې چي په عربي يې شعر بولي) او د دغو انعامو څخه تاسو خوړک کوئ يعني غوښي يې خورئ.

**پوهه:** چي دا فائده مشترکه ده د ټولو انعامو.

# وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُونَ ﴿٢٢﴾

او پر دغو انعامو او پر کښتيو تاسي وړل کېږئ يعني سره د ډرنو ډرنو بارو.

**فائده:** بعض مفسرين وايي چي فائده خاصه په ابل او بقر پوري ده، ولي پر پسو او بزو باندي بار نه وړل کېږي، لکن صحيح داده چي مراد څندي يوازي ابل دی، ولي چي عرب يوازي پر ابل بارونه وړي نه پر بقر، او د فلک سره هم مناسب اوښان دي، ولي چي عرب وايي چي اوښان کښتئ د بر يعني د وچي ځمکي دي او فلک د بحر دي، ذو الرمة چي يو شاعر دی وايي: سفينة برٍ تحت خدي زمامها.

**سوال:** ضمير د عليها خو راجع و انعامو ته دی او ټوله کمامر قابل د بار وړلو نه دي؟

**ځواب:** هذا الضمير على منوال الضمير في قوله تعالى وبعولتهن احق بردهن ولي هو ري ضمير د مؤنث راجع و مطلقاتو ته دی چي هغه عامي دی بائناتو رجعياتو دواړو ته شامل دی، لکن ضمير يوازي د مطلقاتو رجعيه وو ته راجع دی، ولي چي په بائن مخفف يا مغلظ کي خو رجوع کول يوازي د مېړه په اختيار کي نه ده فعلی هذا قياس کړه ضمير د عليها ههنا فتدبر.

**پوښتنه:** تا دمخه وويل چي مراد له انعامو څخه ښځينه ددوی دي او دا دي هم وويل بقرينة مابعد هذه الآية او سره ددې چي ولکم فيها منافع ومنها تاکلون الى اخيره خو نر او ښځه د انعامو برابر دی؟

**ځواب:** ما صرف د نسقيکم لپاره چي شيدې څندي مراد دي دا خبره کړې ده لکن په ورو ستنه ضمائرو کي صنعت استخدام دی.

**پوه سه:** چي صنعت استخدام د محسناتو د عربيت دی کما تقرر في علم البديع، دا صنعت دوه قسمه دی، يو دا دی چي اسم ظاهر چي ذکر سي يوه معنی د لفظ څندي مراد وي او چي ضمير ورته راجع سي بله معنی د لفظ مذکور څندي مراد ده او بل دا دی چي په يوه ضمير کي يوه معنی مراد وي او په بل ضمير کي بله معنی مراد وي، دلته هم چي انعام په اسم ظاهر ذکر سوه مراد څندي ښځي د انعامو دي بقرينة نسقيکم او په ضمير کي ولکم فيها منافع او دغه رنګه په ضمير کي د منها تاکلون او د وعليها آه معنی عام ده چي شامل نر او ښځو دواړو لره ده فافهم هداک الله لدرک مضامين العربية.



Scanned by CamScanner

# وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ

**بوه سه:** چي لام موطئه د قسم محذوف دی اورده للاهتمام بقضية نوح او دا آيت عطف دی على قوله تعالى ولقد خلقنا الانسان.

**بوه سه:** چي خدای ﷻ په اول كي د سورت حال د مؤمنانو مطيعانو بيان كړی وروسته هغه دلائل وښوول چي مقتضي د ايمان او د طاعت هم دا او س په ذكر د كفارو چي سر كښه بندګان د خدای ﷻ وه او اخير كار د دوی بيان كړی وفي كل ذالك تحذير لكفار قريش. بيت:

پند گير از مصائب ديگران.... تا نگيرند ديگران زتو پند

**نكته:** شروع يې له قصې څخه د نوح وكړه ولي چي (۹۵۰) كاله د قوم په تبليغ او دوی په قسم قسم ربړولو تېر كړه. ترجمه: بالله چي استولی موږ نوح و قوم ته دده.

# فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۲۳﴾

نو ده ورته وويل چي ای قوم زما (كسره د ميم عوض د ياء ده يعني قومي) توحيد وكړئ د خدای ﷻ يعني خدای[2] په وحدانيت وپېژنئ او طاعت يې وكړئ.

**بوه سه:** چي په خطاب كي د مشركانو مراد له عبارت څخه توحيد دی او دا اول نصيحت دی د ټولو انبياء عليهم السلام. نشته تاسي لره هيڅ معبود بالحق ماسوی له خدای ﷻ څخه (كلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده، نو ځكه ما هيڅ لفظ ووايه. دا جمله بيان د علت د امر بالتوحيد ده) آيا تاسي له خدای ﷻ څخه نه ببريږئ. استفهام په معنی د امر دی يعني بايد وببريږئ.

**قانون نحوي:** وروسته تر همزه د استفهام چي يو د حروف عاطفه راسي معطوف عليه به يې حتمًا محذوف وي لئلا يفوت صدارة الاستفهام، والتقدير اتشركون به فلا تتقون، له دې څخه چي خدای ﷻ خپل نعمتونه در څخه واخلي او په عذاب د نيوي د شرك به مو اخته كړي.

# فَقَالَ الْمَلَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۙ

نو په ځواب كي د نوح[4] وويل رئيسانو د قوم دده.

**بوه سه:** چي اول مقابل د هر نبي اشراف د قوم د هغه ګرځېدلي دي تكبرًا عن

الاطاعة للنبي فيما يامرهم به كما يدل عليه تواريخ الانبياء عليهم السلام.

**پوه سه:** چي دا خبره ماهذا آه دوی په خپل منځ کي سره وکړه او نوح ؑ يې مخاطب نه کړی چي داسي يې ويلي وای ما انت الا بشر مثلنا تکبرًا عن مخاطبة نوح ؑ ومعنى الآية نه دی دغه نوح مگر بشر په مثل ستاسي يعني ياكل ويشرب وينام الى غير ذالک من خواص البشرية، نو دی څرنګه رسول د خدای ﷻ ځان بولي بناءً على زعمهم الفاسد ان الرسول لابد انيكون ملكًا قاتلهم الله، دوی څرنګه الوهيت او معبوديت چي ډېره عالي درجه ده وجماداتو، بتانو روا بلل او رسالت چي تر الوهيت ډېره کښته درجه ده وذوی العقل والعلم ته چي رسول دی روا نه بلل؛ ع: برين عقل ودانش ببايد گريست.

**يُرِيدُ اَنْ يَّتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ ۭ وَلَوْ شَاۗءَ اللّٰهُ لَاَنْزَلَ مَلٰۗىِٕكَةً**

اراده لري په دعوی کي د رسالت چي پر تاسي تفضيل پيدا کړي او تاسي خپل تابع وګرځوي او دی سردار وګرځي.

**پوه سه:** چي دا جمله يا صفت بعد الصفت دی لبشر او يا جمله مستانفه ده في جواب ماقيل مايريد بادعاء الرسالة.

**پوه سه:** چي مفعول د شاء محذوف دی، والتقدير که اراده وايي د خدای ان لايعبد غيره نازل کړي به يې وای ملکي د رسالت په حيث دا مفعول محذوف دی.

**مَّا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِيْٓ اٰبَاۗىِٕنَا الْاَوَّلِيْنَ ۝۲۴**

موږ نه دی اورېدلی دغه چي نوح ؑ دعوی کوي (من توحيد المعبود ورسالة الانسان والبعث بعد الموت) زموږ په نيکه ګانو کي چي تر موږ د مخه وه، وذالک اما لفرط عنادهم او بطول زمانهم في فترة الرسل.

**پوه سه:** چي جمله د ما سمعنا نه فاعل څخه د يريد حال ده، والجملة الشرطية معترضة بين الحال وعامله.

**اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلٌۢ بِهٖ جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوْا بِهٖ حَتّٰى حِيْنٍ ۝۲۵**

نه دی نوح مګر يو سړی دی چي د ده سره مرض د جنون موجود دی (يعني چي دعوه د رسالت د خدای کوي د ځان لپاره، دا جمله تاکيد د نفي د رسالت ده له نوح

شخه لان المجنون لايكون رسولاً) تاسي انتظار وکړئ تر يو وخت پوري چي يا پر
دی کبري او يا په دغه جنون کي مري، وانما قالوا ذالک لان المجنون يجب ان
لايتعجل في تعذيبه والانتقام منه لان المجنون معذور واذا زال جنونه فالغالب
ترک هذه الدعوى لانه کذب بحت في زعمهم الفاسد والمفيق يتبرء عن اللكذب
البواح. حافظ شيرازي رح وايي:

در راه منزل ليلی که خطرهاست درو ..... شرط اول قدم آنست که مجنون باش

**درويش وايي:** چي نوح ؑ طويل العمر د عمر په اوږدو کي ډېر نصائح و قوم ته وکړه او د قوم د خوا يې ډېر کړاوونه پر ځان يوړه اخير الامر رب العزت وه ده ته د نا اميدی خبره د قوم له ايمان څخه واوروله بقوله جل ذکره انه لن يؤمن من قومک الا من قد آمن. نوح ؑ چون اين خبر اياس از رب العزت شنود دست انابت بدرگاه رب العزت بالا نمود و گفت.

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِي بِمَا كَذَّبُونِ ﴿٢٦﴾

نوح ؑ وويل اې ربه زما زما سره کومک وکړه يعني باهلاکهم وبانزال العذاب الموعود عليهم. کلمه د باء سببيه ده او کلمه د ماء مصدريه ده او کسره د نون عوض د مضاف اليه ده يعني بسبب تکذيبهم ای ما.

فَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ أَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا

نو موږ وحي وکړې وده ته (هذه الجملة معطوفة على مقدر يعني استجبنا دعائه فاوحينا اليهم) چي جوړه کړه کښتي. (باعيننا) ای په حفاظت سره زموږ يا له خطاء څخه په جوړيدو کي او يا دا چي څوک به د تخريب لار نه ورته لري (ووحينا) ای امرنا وتعليمنا کيف تصنع.

**فائده:** چونکه مطلب د نوح ؑ په دغه عبارت مجمل کي يعني رب انصرني استيصال دد وی ؤ نو د ټولو په يوه وار هلاکول کما جاء في موضع آخر رب لاتذر على الكافرين دياراً. نو له دي کبله خدای ﷻ د عذاب د استيصال لپاره سبب ورته بيان کړی.

**پوهه:** چي ايحا او وحي په لغت کي خبر ته وايي په خفاء کي.

# فَإِذَا جَآءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّورُ

نو چي راسي امر زموږ په نزول سره د عذاب موعود يا امر بالركوب فيها (وفار التنور) دا علامه د رکوب په کښتۍ کي يعني چي اوبه راووتلې له تنور څخه د ډوډۍ پخېدلو، نو ته او من معك من المؤمنين به کښتۍ کي سپاره سئ.

**درويش وايي:** چي ځاى دد غه تنور هغه ځاى دئ چي اوس مسجد کوفه هلته جوړ دى پر راسته جانب د داخل وه مسجد کوفه ته د باب کندة له خوا څخه، په تفسير حسيني کي وايي: وبجوش شد تنور بوقتيکه زن نو نان پزد از ميان آتش آب برآيد، والفور الغليان في النار چي لمبې يې پورته سي وفي الماء اذا جاشت، وفي الغضب اذا بلغ النهاية، نو د نوح مايني چي پر تنور ډوډۍ وهلې په منځ کي د اوريې اوبه وليدلې، فوراً يې نوح ته خبر ورکړى، نو دوى په کښتۍ کي سپاره سوه.

# فَاسْلُكْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ

نو داخل کړه ته يا نوح په فلک کي (تانيث په اعتبار د معنى د سفينة دى).

**درويش وايي:** چي په اتفاق د روح المعاني، روح البيان، مظهري، بيضاوي وغيرها من التفاسير سلك لازمي هم راغلى دى کما يقال في العربية سلكت في سكة كذا اى دخلت فيها، وهذا مثال اللازمي وقال الله تعالى ماسلككم في سقر وهذا مثال المتعدي (من كل زوجين اثنين) له هر صنف څخه د حيواناتو (نو تنوين د كلٍ عوض د مضاف اليه دى اى كل صنف) دوه جوت يعني نر او ښځه، نو اثنين يې تاكيد دى، مفسران وايي چي خداى ج په خپل قدرت سره ټول درندگان او مرغان وغير ذالك، والحاصل چي هغه نر او ښځه چي ولادت پيدا کېږي او يا له هگۍ څخه پيدا کېږي لکه خر او خره، اوښ اوښه، چرگ چرگه الى غير ذالك، او هغه حيوانات چي د تعفن څخه پيدا کېږي لکه غوماشه، مچ، چينجى هغه يې نه دى پکښي داخل کړى، داغه رنګه غاطره يې هم نه ده پکښي داخل کړې، ولي غاطره له نسل څخه د آس او خرې پيدا کېږي، نو هغه خو حمل کړه سوه فلا حاجة الى حمل البغال.

**حکمت:** چي امر ورکړل سو نوح ع ته د حمل د نر او ښځي د هر صنف تاچي دا نوع ختم نسي، ولي بيا به خلق جديد غواړي كما في ابتداء الامر كذا في روح المعاني، او په تفسير تيسير کي هم و دغه مضمون ته اشاره ده، در کشتي نياورد

مگر آنها را که می زائید یا بیضه می نهد انتهی. تفاسیر په یوه خوله وایي چي
نوح په دوا ره لاسه وهري نوع ته ور وغځول په راسته لاس کي به یې نر ور غلی او
په چپه لاس کي به یې ښځه هغه به یې کښتی ته پورته کړه.

## وَأَهْلَكَ إِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ مِنْهُمْ

او ستا اهل بیت و من آمن معک (الا من سبق) یعني په ازلي علم کي د خدای
له مغرقین څخه به وُ (علیه القول) بالاهلاک لکفره (منهم) ای من اهل بیتک چي
د نوح ماینه کافره وه او یو زوی کنعان کافر وُ، نو د نوح درې اولاد حام، سام و
یافث او د هغو زوجاتي مؤمناتي په کښتي کي سپاره کړه سوه. بیت:

سگ اصحاب کهف روزی چند ...... پی مردم گرفت مردم شد
پسر نوح (علیه السلام) با بدان بنشست ...... خا نه نبو تش گم شد

## وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا إِنَّهُمْ مُغْرَقُونَ ﴿٢٧﴾

او ته ما ته خواست مه کوه د هغو کسانو په باره کي چي ظلم یې پر خپلو ځانو
کړی دی په کفر سره (انهم مغرقون) دا دلیل دی د لاتخاطبني و معنی انهم مغرقون
یې دوی محکوم په اغراق سره بسبب شرکهم.

**پوه سه:** چي (ولاتخاطبني) عطف دی یا پر اصنع الفلک یا پر فاسلک من عطف
الانشاء علی الانشاء وان اختلف الانشاء ان امرًا ونهیًا لان ذالک یجوز في النحو.

## فَإِذَا اسْتَوَيْتَ أَنْتَ وَمَنْ مَعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي نَجَّانَا مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿٢٨﴾

هغه وخت سم سوې ته او هغه څوک چي ستا سره دي په کښتي کي، نو ووایه
یعني د شکر د دې نعمت حمد دې وي خدای ﷻ لره هغه خدای چي نجات یې
راکړی مونږ ته له هغه قوم څخه چي ظالمان وه یعني مشرکان وه.

**پوه سه:** چي انت تاکید دی د ضمیر متصل د استویت دا تاکید د دې لپاره دی
چي په علم نحو کي وایي چي عطف پر ضمیر مرفوع متصل نه دی روا بیله تاکیده
په ضمیر منفصل سره یا په فصل په منځ کي د معطوف او معطوف علیه.

**پوښتنه**: څه حکمت دی چي نوح ؑ خدای پاک امر کړی په حمد سره پر نجات د قوم ظالمین او داسي نه وویل سول الحمد لله الذي اهلک القوم الظالمین؟

**ځواب**: که څه هم حمد پر انجا متضمن دی حمد لره پر اهلاک د ظالمانو، ولي نجات د نوح ؑ ومن معه خو نه کېده بېله اهلاک د ظالمانو لکن مع هذا نعمت د انجا، اهم دی. او خفاجي رح وایي چي په حمد کي پر نعمت د انجا، دون اهلاک الاعدا، الظالمین اشاره ودې ته ده چي انه لاینبغي المسرة بمصیبة احد ولو کان عدواً من حیث کونها مصیبة له بل ینبغي الحمد علی السلامة من ضرره وهو بالانجاء یا پر دې باندي چي ځکه پاک سوه له خیرو څخه د شرک او اضلال د عدو فافهم فانه دقیق.

## وَقُلْ رَّبِّ اَنْزِلْنِیْ مُنْزَلًا مُّبٰرَكًا وَّاَنْتَ خَیْرُ الْمُنْزِلِیْنَ ﴿۲۹﴾

اې خدایه نازل کړې ما (یعني ومن معي) بعد الرکوب في السفینة او بعد الخروج من السفینة (منزلاً) مصدر میمي ای انزالاً (مبارکاً) چي برکت د دنیا او د اخرت پکښې وي (نو د کښتی په سپرېدلو کي برکت د دنیا دادی چي له مصاحبت څخه د ظالمانو خلاص سوم او د اخرت برکت یې دادی چي زړه مي ستا و عبادت ته فارغه سو، او برکت د خروج له کښتی څخه دنیاوي برکت کثرت النسل و الرزق الحلال او اخروي برکت یې دادی چي د خدای ﷻ په عبادت زه او من معي فارغ البال مشغول یو) ته اې خدایه خیر د منزلینو یې، په جلالین کي وایي چي دا دعاء د نوح ؑ قبوله سوه حیث قال الله تعالی: اهبط بسلام وبرکات علیک، فبارک فیهم بعد انزالهم من السفینة. ولي چي تول د مځکي خلک له نسل څخه د نوح ؑ ومن کان معه في السفینة دي.

**بوه سه**: چي دا جمله ثناء د خدای ﷻ ده د نوح ؑ له خوا څخه مطابق لدعائه بقوله فقل رب انزلني آه، نکته: په دعاء کي یوازي نوح ؑ خپل ځان یاد کړی، یو خو له دې سببه چي دا امر الهي دی کما یدل علیه وقل او بل د دې لپاره چي په دعاء کي دده کفایة لمن معه یعني خدای ج په دغه سره امر کړی کما یدل قوله وقل رب انزلني آه.

## اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ وَّاِنْ كُنَّا لَمُبْتَلِیْنَ ﴿۳۰﴾

(ان في ذالک) ای الذي فعلنا بقوم نوح (لایات) دلائل علی کمال قدرته تعالی ورافته بالمؤمنین وغضبه علی الظالمین یعتبر بها اولو الابصار.

**درويش وايي:** چي په اتفاق دآراء د مفسرين په (وان كنا آه) كي كلمه د ان مخفف له مثقل څخه ده چي كلمه لام په خبر كي يې فارقه ده په منځ كي ان مخفف د مثقل او د ان نافيه لكن مظهري يې تقدير داسي وايي: وانا بتشديد النون كمنا آه وهو خلاف المتعارف في كلمة ان مخففه عن المثقلة، او روح البيان داسي وايي چي اصل انه والضمير للشان اى وان الشان، او روح المعاني وايي: والجملة حالية اى وان الشان كنا لمصيبين قوم نوح ببلاء عظيم وعقاب شديد، او مختبرين بهذه الآيات عبادنا لننظر من يعتبر ويتذكر.

**سوال:** اختبار خو امتحان ته وايي خداى ج خو عالم الغيب والشهادة دى، نو امتحان ته څه ضرورت دى؟

**ځواب:** نعامل معاملة المختبر لا حقيقة الاختبار.

**درويش وايي:** چي ومثل هذا كثير في القرآن كما في قوله تعالى (ولقد تركنا آية فهل من مُدَّكِرٍ)

**پښتو ژباړه:** په تحقيق په دغه كي چي د قوم د نوح ؑ سره مو وكړه يعني په طوفان مو غرق كړه او نوح ؑ او د ده سره مؤمنان مو د كښتۍ په ذريعه له غرقه وساتل دلائل دي د كمال قدرت د خداى ج او د كمال مهرباني د خداى ج پر مؤمنانو او لوى غضب پر ظالمانو او په تحقيق شان دادى چي موږ لويه بلا رسونكي يو قوم نوح ؑ ته او يا امتحان كونكي يو د بندګانو.

**درويش وايي:** چي مظهري رح يو قول په قيل را نقل كړى دى چي كلمه د ان نافيه ده او لام په معنى د الا دى يعني وما كنا بارسال نوح ؑ و وعظه وتذكيره الا مبتلين قومه آه، لكن روح المعاني دا وجه رد كړې ده حيث قال وليست ان نافية واللام بمعنى الا انتهى.

**درويش وايي:** چي دليل د رد يې دادى چي داسي توجيه هلته روا ده چي نوري لاري تولي بندي وي او دلته خو د توجيه لار خلاصه ده كمامر من قبل قريباً.

**تبصره:** پوه سه! چي علماء راشدين وايي ان العطايا على متن البلايا، والا لما حصل الفرق بين الصديق الاكبر ﷺ وبين ابى جهل فرعون هذه الامة، وايضاً قالوا البلاء كالملح في الطعام بقدر الحاجة وقد ورد في الحديث الصحيح اشد الناس بلاءً الانبياء ثم الاولياء ثم الامثل فالامثل او كما قال.

**درويش وايي**: چي سر گزشت د انبياء عليهم السلام او د اولياء كاملينو رحمهم الله كه په تواريخ اسلاميه وو كي مطالعه كړل سي ددې خبرو تصديق به وكړل سي. بيت:

بر فلک بر تر بود اسرار او .......... شيئًا لله شيئًا لله كار او

**حكايت**: له حسن بصري رحمه الله څخه نقل دى چي زه په كاروان كي د حج د بيت الله شريفې راهي وم، په كاروان كي او ښان آسان موجود وه، يوه ورځ تر كاروان دمخه يو انسان چي د نر او ښځي فرق يې نسواى كېداى پياده روان دى، نو آس مې پسې ورچابک كړى چي ورورسېدم يوه عمر رسيده ښځه ده په لاس كي يې لكړه ده او په بله لكړه پوري يوه كوزه يا مشكوله د اوبو او څه د خوړک شى په يوه سر او بل سر پوري ځړېږي او پر وړه يې هغه لكړه اچولې ده. نو ما پوښتنه ځندي وكړه اين تريد يا اماه؟ دې راته وويل مكة ان شاء الله تعالى. ما دراهم ورته راوكښل او بودۍ ته مي وويل چي دلته ودرېږه كاروان د حاجيانو را روان دى او د كرايې بوده پكښې سته يو بوده به كرايه كړې او د قافلې سره به را راهي سې، دې راته وويل چي د حج تر وخته زمانه ډېره باقي ده ان شاء الله پر خپلو پښو به ورسېږم، حسن رحمه الله وايي چي ما اصرار پر وكړى چي دغه دراهم به اخلې، دې راته وويل چي زما سره دراهم سته لكن د پښو سفر و حج ته مي خوښ دى، ما ورته وويل كه رشتيا ستا سره دراهم موجود وي ته يې ماته رابنكاره كړه نو زه به مطمئن سم، دې لاس پورته كړى و؛ يې ويل خدايه ته دراهم راكړه چي حسن يې ومنې، وروسته يې په لاس كي د دراهمو په ځاى كي دنانير وه رابنكاره يې كړه، حسن رحمه الله وايي فتعجبت لاخلاصها في عبادة الحج مع القرب مع الله عزوجل.

ثُمَّ أَنشَأْنَا مِن بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ﴿٣١﴾

بيا موږ پيدا كړه (ثم انشأنا) عطف دى پر مقدر باندي تقديره فاغرقناهم ثم انشأنا) وروسته تر دوى بل قرنًا چي ظاهره داده چي مراد ځندي قوم عاد دى.

فَأَرْسَلْنَا فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ

نو موږ واستاوه په رسالت په دوى كي يو رسول د دوى له قوم څخه چي دوى اخلاق او عدالت ښه پېژندى وهو هود [۴].

**بوه سه:** چي اَنْ مفسر د اَرسلنا دی ای قلنا لهم علی لسان الرسول وحدوا الله کما هو معنی د عبادت ده په خطاب کي د مشرکانو.

مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥٓ ۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٣٢﴾

نشته تاسي لره یو معبود بالحق غیر له خدای ﷻ څخه آیا تاسي له خدای نه بیریږئ چي ده لره شریک وایاست یعني له عذابه د خدای ﷻ و بیریږئ (کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده)

وَقَالَ ٱلْمَلَأُ مِن قَوْمِهِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟

وویل هغو اشرافو له قوم څخه د ده چي کافران وه.

**پوښتنه:** په قصه کي د نوح ؑ فقال الملاء آه کي یې کلمه د فاء راوړه او دلته یې کلمه د واو راوړه، حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** حکمت یې دا دی چي دلته کلام د ملاء القوم متصل نه دی بکلام الرسول، ولي چي په منځ کي مالکم من اله غیره آه واقع سو بخلاف کلام نوح ؑ، نو کلمه د واو چي لپاره د مطلق جمع دی راوړه سو ای اجتمع في الحصول هذا القول الحق وهذا القول الباطل کذا قال روح البیان والمظهري فتدبر.

وَكَذَّبُوا۟ بِلِقَآءِ ٱلْـَٔاخِرَةِ وَأَتْرَفْنَٰهُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا

او دوی کاوه په ملاقات د ورځ د قیامت ای البعث بعد الموت وکذا بما في هذا الیوم من الثواب والعقاب، لان تکذیب الظرف یستلزم تکذیب المظروف، او موږ نعمتونه یعني اموال او اولاد ورکړي وه دوی ته دد ې دنیا په ژوند کي وهم المراد بالملاء من قومه.

مَا هَٰذَآ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ

**بوه سه:** چي دا مقوله د قول د اشرافو ده، والمعنی نه دی دغه چي دعوی د نبوت کوي مگر نه بشر په مثل ستاسي په صفاتو کي د بشریت.

يَأْكُلُ مِمَّا تَأْكُلُونَ مِنْهُ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُونَ ﴿٣٣﴾

خورک کوي له هغه شي څخه چي تاسي خورک څني کوئ او څښنل کوي د هغه شي څخه چي تاسي څښنل څني کوئ.

**پوه سه:** چي کلمه د ما په مما تشربون کي موصوله ده عائد يې محذوف دی بقرينة ماقبله ای مما تشربون منه کما في الموصول السابق، وعائد محذوف منصوب ای تشربونه.

وَلَئِنْ أَطَعْتُمْ بَشَرًا مِّثْلَكُمْ إِنَّكُمْ إِذًا لَّخَاسِرُونَ ﴿۳۴﴾

او که تاسي اطاعت وکړئ د بشر چي مثل ستاسي دی نو په تحقيق سره تاسي په سبب د متابعت دده به په خسران کي واقع سي.

**پوه سه:** چي کلمه د لام موطئه د قسم محذوف ده ای والله لئن اطعتم. ددوی له خسران څخه مراد دادی چي ځانونه مو سره دد چي اشراف او رئيسان د قوم ياست ذليل کړه و مثل ته خپل بلکې په ژوندانه چارو کي تر تاسي کم دي.

**درويش وايي:** چي دا ددوی غايت حماقت ونهايت جهالت دی د مثل متابعت نه کوي او جماداتو بتانو ته سجدې کوي او خپل آلهه يې بولي.

أَيَعِدُكُمْ أَنَّكُمْ إِذَا مِتُّمْ وَكُنتُمْ تُرَابًا وَعِظَامًا أَنَّكُم مُّخْرَجُونَ ﴿۳۵﴾

آيا دی وعده درکوي تاسي ته (استفهام لپاره د انکار دی يعني دا وعده خو ډېره غلطه ده) چي تاسي چي مړه سئ او وګرځئ خاوري يعني غوښي مو خاوري سي او پلې وړکونه مو وشکېږي او صرف هډوکي به پاته سئ (چي هغه به هم په مرور د زمانو خاوري سي) انکم مخرجون: يعني من القبور مع اللحم والعروق ونفخ الروح فيکم کما في الدنيا.

هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ ﴿۳۶﴾

هيهات اسم فعل دی په معنی د بعد و فاعله الضمير المستکن فيه ای بعد وقوع هذا الوعد عن العقل والتصور، او يا معنی داده بعد التصديق والايمان بهذا الموعود من العقل (هيهات) دا تاکيد دی للاول لاجل المبالغة في الانکار.

**پوه سه:** چي لماتوعدون خبر د مبتداء محذوفي دی ای هذا الاستبعاد لما توعدون چي د تاسي سره وعده کړل کېږي چونکه دوی او از پورته کړی په کلمه د استبعاد يعني هيهات، نو ګويا چا له دوی څخه پوښتنه وکړه فما له هذا الاستبعاد فاجابوا لما توعدون.

## إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا

نه دي جنس د حيوة هيڅ شی ، كلمه ان نافيه ده والاستثناء متصل ، ومعنى الدنيا القربى الفانية من الدنو وهو القرب او من الدنائة اى الخساسة لكونها فانية زائلة.

**پوهه:** چي اصل د كلام داسي ؤ ان الحيوة الا حيوة آه ، نو ضمير د هي يې په ځاى كي د حيوة راوړى لدلالة الحيوة المذكورة في الاستثناء عليه دفعًا لشاعة التكرار.

**فائده:** ان النافية دلته لكدلا د نفي جنس دلالت پر نفي د جنس كوي.

## نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ ﴿۳۷﴾

موړ مرو يعني بعض زموږ او ژوندي كيږو يعني بعض زموږ زيږي او د ژوند په لړ كي راځي (بغوي رح يوه د تعجب وړ خبره كړې ده او دده لوى معتقد مظهري رد كړې ده فارجع الى تفسير المظهري) او نه يو موږ چي ژوندي دي سو بعد الموت كما يقوله الرسول.

## إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا وَمَا نَحْنُ لَهُ بِمُؤْمِنِينَ ﴿۳۸﴾

نه دی دغه څوک چي دعوه د رسالت كوي او د بعث بعد الموت او د جنت او دوږخ خبري كوي ، مگر نه سړى دى چي پر خداى ﷻ دروغ وايي يا په رسالت كي او يا په بعث بعد الموت كي (كذبًا) تاكيد دى د معنى د افتراء) موږ نه يو چي دده د خبري تصديق دي وكړو ، دا جمله تاكيد ده د هغه قول ددوى ما هذا الا بشر.

**درويش وايي:** چي ددوى جهل د افسوس وړ دى : ولي چي دوى خو مشركين وه خداى يې منی كما يدل عليه قولهم على الله او دا يې هم منل چي خالق زموږ خداى ﷻ دى : ولئن سئلتهم من خلقكم ليقولن الله ، او سره ددې چي تر ابتدائي خلق خو اعاده اسانه ده ، نو هغه ذات مقتدر جلت قدرته چي دوى يې له كتم څخه د عدم بحت ميدان ته د وجود راويستل او بيا يې تر وجود وروسته په خونه د عدم بالموت ننه ايستل هغه قادر پر اعاده ددوى دى بعد الموت.

## قَالَ رَبِّ انصُرْنِي بِمَا كَذَّبُونِ ﴿۳۹﴾

(قال) وويل رسول هود ؑ اې زما ربه ته زما سره كومك وكړې پر دوى باندي او زما انتقام له دوى څخه واخلې ، په سبب (د نه منلو) ددوى ما لره ، نو با سببيه ده

او كلمه د ما مصدريه ده او كسره د نون دال پر يا د متكلم ده والمعنى بسبب تكذيبهم اياي.

## قَالَ عَمَّا قَلِيلٍ لَّيُصْبِحُنَّ نَٰدِمِينَ ۝

قال: اى الله تعالى اجابةً لدعائه وعدةً بقبوله (يوه سه! چي كلمه د ما مدغمه فيه النون لان اصله عن ما، كلمه د ما زائده ده په منځ كي د جار او مجرور د تاكيد ده په معنى د قلت او مراد له قليل څخه زمان قليل دى) وبه ګرځي كفار مكذبين پښيمان پر خپل كفر او تكذيب ستا يعني چي عذاب نازل سي پر دوى، لكن په هغه وخت كي پښيماني دوى ته فائده نه كوي.. بيت:

تو پيش از عقوبت درى عفو كوب ...... كه سودى ندارد فغان زير چوب

## فَأَخَذَتْهُمُ ٱلصَّيْحَةُ بِٱلْحَقِّ

**پوه سه:** چي مظهري رح د صيحة معنى په هلاک سره كړي ده، لكن قاموس والا وايي: الصيحة والصياح الصوت باقصى الغاية، او مظهري وايي چي د صيحة معنى دلته عذاب دى ددې سبب دادى چي قصه خو دلته د عاديانو ده او هلاک د عاديانو خو په ريح عقيم سره تر سره سو كما سيئاتي في القرآن او په صيحه د جبرئيل ؑ خو ثمود هلاک سوه، ولله در صاحب روح البيان حيث قال فان قلت هذا يدل على ان المراد بالقرن المذكور في صدر القصة ثمود قوم صالح ؑ فان عاداً اهلكوا بالريح العقيم قلت لعلهم حين اصابتهم الريح العقيم اصيبوا في تضافها بصيحة هائلة ايضاً انتهى.

**درويش وايي:** چي د روح البيان پر دې جواب دا سوال واردېږي چي د هلاک د عاد په بل ځاى كي د قرآن وريځ عقيم ته ولي يوازي كړى دى؟

**ځواب:** چونكه معظم حصه د هلاک د قوم عاد ريح عقيمؤ نو ځكه يې نسبت و هغه ته وكړى او صيحه جزوي سبب د هلاک ده والله اعلم.

**درويش وايي:** چي صاحب د روح المعاني هم دا سوال راوړى دى، او ځواب يې داسي وركړى دى چي جبرئيل ؑ پر عاديانو چغه هم وكړه د ريح عقيم په دوران كي كما روى في بعض الاحاديث انتهى.

**سوال**: په ذکر کې د ریح عقیم او د صیحة دواړو څه فائده ده؟
**ځواب**: روح المعاني وايي چې اشاره ودې ته ده چې هر يو د ريح عقيم او د صيحة د جبرئيل ؑ کافي وه په هلاک د عاديانو فافهم انتهى.
بالحق: اى بالوجه الثابت الذي لادافع له (او يا يې معنى داده بالعدل يعني خداى ﷻ پر دوى ظلم نه دى کړى بلکې دوى د دغه عذاب مستحق وه)

فَجَعَلْنٰهُمْ غُثَآءً فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۱﴾

نو موږ وګرځول دوى تو له هلاک.

**پوه سه**: چې غثآء د سيل د اوبو پساؤ ته وايي چې په عربي يې حميلة السبيل هم بولي، عربي محاوره د دوى و هغه چاته چې هلاک سي صار حميلة السبيل.
**پوه سه**: چې بعدًا مصدر دى د بعد بمعنى هلک، قالوا ان بعدًا مصدر وجب اضمار فعلها في الاستعمال او دى سادمسد د فعل دى، او القوم الظالمون فاعل دى د مصدر چې بعدًا دى چې پر ځاى ده فعل ولاړ دى، او کلمه د لام لپاره د تقوية د عمل د مصدر ده کما في قولهم اعجبني جلوس لزيد وقيام لعمرو.
**سوال**: بعدًا لهم يې ولې نه وو ايه اسم ظاهر يې راوړى؟
**ځواب**: لپاره د تعليل د بعدًا چې دوى ظلم ؤ.
**فائده**: دا جمله يا اخبار دى يا ښېرا ده، ترجمه: لېري والى دى له رحمت څخه د خداى ﷻ قوم ظالمينو لره چې قوم هود ؑ وه چې هلاک سوه، در حال ظالمان گفته اند:

چو منعم کند سفله را روزه گار ...... نهد بر دل تنگ درويش بار
چو بام بلندش بود خود پرست ...... کند بول وخاشاک بر بام پست

ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قُرُوْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿۴۲﴾

يا موږ پيدا کړي دي يعني وروسته تر هلاک د قرون مذکوره ؤ (وهم عاد على الاشهر کمامر، عطف على جعلناهم) وروسته تر عاد نور قرنونه وهم قوم صالح ولوط وشعيب وغيرهم عليهم السلام.

مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ اَجَلَهَا وَمَا يَسْتَاْخِرُوْنَ ﴿۴۳﴾

نسي وړاندي کېداى (اجلها) يعني الوقت المقدر لهلاکها، معنى دا چې هيڅ

امت تر وقت مقرر لهلاکها نه هلاکیږي، او نه تر وقت مقرر د مخه هلاکیږي ای لایبقی بعد الاجل.

**پوه سه**: چي کلمه د من زائدة لاستغراق النفي او امة محلاً مرفوع دی فاعل د تسبق دی.

**فائده**: ضمیر یې مذکر راوړی په یستاخرون کي او د مخه ضمائر مؤنث وه نظرًا الی معنی الامة یعني القرن. ماتسبق جمله معترضه ده.

ثُمَّ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَا

وروسته راواستل رسل زموږ پرله پسې.

**پوه سه**: چي اصل د تترا وترا ؤ من الوتر بمعنی ضد الشفع بیا یې واو په تاء بدل کړی لکه په تراث کي چي اصل یې وراث دی، او لفظ د تتری منصوب محلاً دی حال من مفعول ارسلنا وهو رسلنا.

**پوه سه**: چي تترا مشتق له متواترة څخه دی وهو التتابع مع فصل و مهلة کذا قال الاصمعي واختاره الحریري رح في الدرة. او په صحاح کي د جوهري رح وایي چي مواترة بین الاشیاء نه ویل کیږي بیله دې چي په مابین کي فصل او مهلت وي، ولي چي فصل نه وي هغه ته مدارکة وایي ومثله في القاموس، او له ابو علي څخه روایت دی چي مواترة ان یتبع الجز الجز والکتاب الکتاب ولا یکون بینهما فصل کثیر ومنه حدیث ابی هریرة رضي الله عنه لاباس بقضاء رمضان تتری ای متفرقاً غیر متتابع کذا في النهایة.

**درویش وایي**: وما نقل في البحر عن بعض ان المواترة التتابع من غیر مهلة انتهی فلا یصح تفسیر هذه الآیة بهذا المعنی، وفي تفسیر الحسیني پی درپی یعني یکی درعقب دیگری آه، وهو معنی المهلة. مظهري رح وایي چي له دې سببه چي په تواتر معنی کي مهلت شرط دی علماء محدثینو په خبر متواتر کي یعني په حدیث متواتر کي دا شرط کړی دی چي روایت به یې له جهات شتّٰی ؤ څخه وي، او راویان د حدیث متواتره به سره مجتمع نه وي بحیث لایتصور اتفاقهم علی الکذب انتهی.

**فائده**: اکثر قاریان لفظ د تترا په الف مقصوره د تانیث وایي پر وزن د سکری بیله تنوینه لانه غیر منصرف لما تقرر في کتب النحو ان المؤنث بالالف الممدودة

او المقصورة للزوم التانيث قائم مقام السببين لعدم الانصراف.

**فائده:** تترا مؤنث راورل سو لان الرسل بتاويل الجماعة مؤنث، قرونًا آخرين جمع دی، او رسلنا هم جمع دی ففیه مقابلة الجمع بالجمع بارادة انقسام الآحاد على الآحاد كما في ركبوا دوابهم ولبثوا ثيابهم، ن و معنى د تراخي اوس لازم سوه كانه قال ثم انشاءنا قرنًا ثم ارسلنا فيه رسولاً ثم انشاءنا قرنًا ثم ارسلنا فيه رسولاً وهكذا، ولي چي بې تقسیمه د احاد پر احاد خو معنى د آيت داسي كېږي ثم انشاءنا قرونًا كثيرةً وبعد القرون ارسلنا رسلاً وهذا المعنى غير صحيح في الآية فافهم هداك الله.

**فائده:** ابن كثير، ابو عمر، قتاده، ابو جعفر، شعبه، ابن محيص او امام شافعي رحمه الله تترًى په تنوين وايي وهو لغة بني كنانة، په تفسير بحر العلوم كې د سمرقندي رح وايي چي هغه څوک چي تترىً په تنوين وايي الف يې د تانيث نه بولي بلكې د الحاق يې بولي لكه الف د ارضى وغلقى انتهى.

كُلَّمَا جَآءَ أُمَّةً رَّسُولُهَا كَذَّبُوهُ

هر وخت چي په ورغلى يو امت ته رسول د هغه امت، دوى په نسبت د كذب وكړى و هغه ته.

**سوال:** ټولو خو نسبت د كذب نه كاوه بلكې د امت بعض وګړو پر هغه ايمان راوړى؟

**ځواب:** نسبت د تكذيب يې و ټول امت ته په دې سبب وكړى چي اكثرو خلګو د هغه امت به يې تكذيب وكړى وللاكثر حكم الكل.

**پوهه:** چي جمله د كلما جاء آه استيناف دى لپاره د بيان د حال د مجئ هر رسول و امت ته او چي له امت څخه څه شى صادر سو عند تبليغ الرسول، حسين كاشفي رح په تفسير حسين كي وايي: تكذيب كردند اورا وآنچه گفت از توحيد ونبوت وبعث وحشر دروغ پنداشتند. وبتقليد پدران ولزوم عادات ناپسنديده از دولت ايمان وتصديق محروم ماندند.

فَأَتْبَعْنَا بَعْضَهُم بَعْضًا وَجَعَلْنَٰهُمْ أَحَادِيثَ

تابع وګرځول موږ بعض د دې قرون د كفر د نورو بعض (يعني په هلاک چي يو د بل پر له پسې مو هلاک کړه لكه په انشاء كي د بعث د رسولانو يو په بل پر له پسې

چي دوی ته ورتله، فائده: دا جمله عطف ده پر كذبوه) وجعلناهم احاديث: وګرځول موږ دوی صرف حكايات يعني بل اثريې نسو پاته.

**پوه سه:** چي احاديث جمع د احدوثة ده وهو مايتحدثه الناس لپاره د ساتېري چي په عربي يې سمر هم بولي او په پښتو يې د پخوانيو خلګو نقلونه لکن بعضې خلګو به له دې حكاياتو څخه عبرت اخستی او بعضو به تعجب ورته کاوه. بيت:

نرود مرغ سوی دانه فراز .... چو ديګر مرغ بيند اندر بند

**فائده:** اخفش رح وايي چي استعمال د كلمه د احدوثة او هغه د جمع آحاديث په شر کي کېږي واما في الخير فلايقال جعلتهم آحاديث واحدوثة، وانما يقال صار فلان حديثًا يعني د خير په كارو کي ومن ذالک آحاديث النبي عليه السلام.

فَبُعۡدٗا لِّقَوۡمٖ لَّا يُؤۡمِنُونَ ﴿٤٤﴾

لېرې والی دی له رحمت څخه د خدای جل جلاله هغه قوم لره چي ايمان پر رسولانو نه راوړي.

**فائده:** دا جمله اخبار هم کېدای سي او ښېرا هم، حسين كاشفي رح په ښېرا ترجمه کړې ده حيث قال: پس دوری باد از رحمت حق مر ګروهی راکه نمی ګردند بانبياء وتصديق ايشان نمی کنند آه، اذ لو كان اخبارًا لكان معناه بالفارسية پس دوری بود از رحمت حق مر ګروهی را انتهٰی.

**سوال:** ايوبي ته خو پښتون يې، نو ولي ته موږ پښتنو ته پښتو فرق د اخبار او د ښېرا نه بيانوې؟

**ځواب:** ستاسي سوال پر ځای لکن پښتو ژبه ډېره تنګه ژبه ده حتی چي پښتو ويل غالبًا له ګډون څخه د بعض عربي الفاظو يا فارسي الفاظو چاره نه لري. لکن زه به ددې آيت په ترجمه د اخبار او د ښېرا فرق درته بيان کړم (لېرې والی دی له رحمت څخه د خدای جل جلاله هغه دلې لره چي د انبياء تصديق نه کوي او ايمان نه پر راوړي) دا ترجمه د اخبار په دې آيت کي (يا لېرې والی دی وي هغو کسانو لره الخ) دا د ښېرا معنی ده په دې آيت کي.

**فائده:** تاريخ پوهان وايي چي فراخه د ژبو چي د بلې ژبې د الفاظو و ګډون ته ضرورت نه لري عربي ده او وروسته تر عربي فراخه ژبه فارسي ده.

**تنبیه:** الفاظ او نومان د بعض شیانو چي انګلیسي وي مستثنی دي.

**درویش وایي:** چي دغه رنګه اردو او هندي ژبه لګه پښتو د عربي یا فارسي الفاظو ګډون ته ضرورت لري والتجربة شاهدة لصدق ما قلنا.

ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ وَأَخَاهُ هَارُونَ بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿٤٥﴾

وروسته را واستاوه موږ موسٰی (ثم ارسلنا موسٰی) عطف دی پر ثم ارسلنا رسلنا آه) او ورور دده هارون (هٰرون عطف بیان یا بدل دی له اخاه څخه) په معجزاتو سره (چي نهه (۹) وې په اوږدو کي د تبلیغ د موسٰی و هارون و فرعون او دده و قوم ته) وسلطان مبین: یعني حجت واضحه په خوله ددوی چي د خصم فرعون الزام لپاره کافي ؤ. او دا هم احتمال سته چي مراد دي له سلطان څخه عصاء وي.

**پوښتنه:** په آیاتنا کي عصاهم داخل وه، نو بیرته د تخصیص بالذکر حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** وجه یې داده چي عصٰی اوله معجزه وه د موسٰی، او ددې په ضمن کي سوی د نهه معجزو څخه نوري معجزې هم وې (۱) د ساحرانو مقابله چي فرعون راغونډ کړي وه د موسی لکړي د هغو ټولي لکړي او رسۍ وخوړلې (۲) موسٰی چي له مصر څخه سره د بني اسرائیلو ووتی او په مخ کي یې بحر راغلی موسٰی هم په دغه لکړه دریاب وواهه، دریاب وچه لار ورکړه (۳) موسٰی سره د بني اسرائیلو وروسته تر غرق د فرعون وقومه چي د تیه په دښت کي یې سفر کاوه چي قصه یې ډېره اوږده ده چي د اوبو ضرورت به یې پیدا سو هم په دغه لکړه به یې ډبره ووهل فانفجرت منه اثنتی عشرة عینًا کما جاء في موضع آخر من القرآن العزیز (۴) چي موسٰی به بیرته په هغه لکړه چي د اوبو ضرورت به د دفع سو هغه ډبره ووهل د اوبو چینې به وچي سوې (۵) او دا لکړه به د شپې څراغ ګرځېدله (۶) او که به پر یو څاه رسۍ وه سولاغه به نه وه دا لکړه به سولاغه سوه (۷) که پر څاه به سولاغه وه مرانده به نه وه دا لکړه به مرانده سوه الی غیرها مما جاء في کتب التفاسیر المعتبرة. پوره سه: چي تفصیل د آیات نهه په تفسیر کي د سورة البقرة تېر سوی دی.

إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا قَوْمًا عَالِينَ ﴿٤٦﴾

و فرعون او دده د قوم و اشرافو ته، نو دوی کبر وکړی له ایمان راوړلو څخه پر رسول د خدای ﷻ موسٰی، او دوی وه پر خلکو بلند یعني پر خلکو یې ترفع کول

كبرًا او په دوی يې خدمتونه کول ظلمًا خصوصًا بني اسرائيل، فرعون خو ځان خدای باله، کريمه: مالكم من اله غيري او قوم دی په خدايي هم منلی ؤ.

فَقَالُوٓا أَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عَٰبِدُونَ ﴿٤٧﴾

نو فرعون او دده اشرافو وويل، آيا موږ به ايمان راوړو (استفهام لپاره د انكار دی يعني نه موږ اقرار كوو او نه موږ تصديق كوو په فضل او نبوت سره) د دوو انسانانو چې زموږ رنګه دي، او د دوی دوو قوم يعني بني اسرائيل زموږ خادمان لكه مريان دي (والعرب تسمى كل من اطاع وتذلل لاحد انه عبد له)

**پوښتنه:** مثلنا خو صفت د بشرين دی، نو ولې يې تثنيه نه راوړی؟

**ځواب:** نحات وايي چې مثل وغير يوصف بهما الواحد والمثنى والجمع والمذكر والمؤنث فحكم مثل حكم المصدر.

**فائده:** دا خبره انؤمن آه دوی په خپل منځ كې مشوره وكړه.

**فائده:** وقومهما لنا عٰبدون: حال دی له فاعل څخه د نؤمن لپاره د تاكيد د انكار له ايمان څخه اشاروا لعنهم الله دې ته چې موسی او هارون ؑ ذليل خلک دي.

فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُوا۟ مِنَ ٱلْمُهْلَكِينَ ﴿٤٨﴾

دوی تكذيب وكړی د موسی او هارون عليهما السلام (عطف دی پر ارسلنا باندې) نو دوی وګرځېدل له هلاک شده ګانو څخه يعني بالغرق كمامر مرارًا قصته تفصيلاً.

**پوهه:** چې ځای د هلاک د فرعونيانو بحر القلزوم دی.

**سوال:** په نحو كې وايي چې كلمه د فاء عاطفه لپاره د تاخير ده بلا فصل او سره دد ې چې د دوی تر تكذيب وروسته فلا فصل زمان دوی نه دي هلاک سوي؟

**ځواب:** د كذبوهما معنی داده چې فرعونيانو استمرار پر تكذيب وكړی كريمه: واصروا واستكبروا استكبارًا، نو اخيره زمانه د دوی د تكذيب ممتد سنوات متصل شوه د اهلاک سره د دوی فلا فصل زمان، واجيب ايضًا ان معنى فكانوا من المهلكين انهم صاروا بعد التكذيب فلا فصل زمان محكوم عليهم بالاغراق، او حكم د اغراق من الله ﷻ مقدم على الاغراق، واجيب ايضًا ان الفاء ههنا ليس للعطف بل لمجرد السببية اى صاروا بسبب التكذيب للرسولين من المهلكين فافهم.

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوسَى الْكِتٰبَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُوْنَ ﴿۴۹﴾

لام موطئه د قسم حذوف دی، مونږ ورکړی و موسٰی ته کتاب يعني التوراة وروسته تر غرق د فرعون وقومه ونجات بني اسرائيل من تسلطهم، لعل: په معنی د لام کی دی او ضمير د هم راجع دی و قوم ته د موسٰی ؑ لا الى فرعون وقومه لان التوراة انما نزل بعد غرق فرعون وقومه.

**فائده**: پوه سه! چي اعطاء د تورات و موسٰی علیہ السلام ته لپاره د هدايت د قوم وُ كما هو شان الكتب الالهية، نو اعطاء و قوم ته ده، نو ځکه يې داسي وويل لعلهم يهتدون، والمعنى ددې لپاره چي قوم د موسٰی ؑ و حق ته لار پيدا کړي علمًا وعملاً، ولي په تورات کي اعتقاديات او عمليات دواړه سته.

وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ وَاُمَّهٗٓ اٰيَةً

او وګرځول مونږ زوی د مريم او مور دده آية يعني دليل د قدرت تامه د خدای ج بسبب ولادتها اياه من غير مسيس شخص.

**سوال**: عيسی ؑ او مور دده خو دوه آيته دي، نو آية يې ولي مفرد راوړی؟

**خواب**: آية د قدرت خو يو دی مضاف دی و دواړو ته يعني زېږول د مريم عيسی ؑ بيله مسس د چا، دويم ځواب دادی چي په آيت کي تقدير سته يعني وجعلنا بن مريم آية بان تكلم في المهد وظهر منه معجزات اخر وامه آية بان ولدت من غير مسيس، تكلم في المهد يې حذف کړی لدلالة الثانية عليه، كذا في روح البيان، روح المعاني، قرطبي، تفسير الرازي، مظهري وغيرهما.

وَاٰوَيْنٰهُمَآ اِلٰى رَبْوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ وَّمَعِيْنٍ ﴿۵۰﴾

او ځای مو ورکړی دوی دوو ته په يو مکان مرتفع کي د ځمکي، عبد الله بن سلام رض وايي چي مراد دمشق دی وهو قول سعيد بن المسيب ومقاتل رح، او ضحاک رح وايي چي په غوطه کي د دمشق چي قريب ښار دی د دمشق كذا في مجمع البحار، او ابو هريرة رض وايي چي رمله ده، عطاء له ابن عباس رض څخه روايت کړی دی چي مراد بيت المقدس دی وهو قول قتادة وكعب رض.

**درویش وايي:** چي اطلاق د ربوة چي لوړي ځکي ته وايي پر بيت المقدس د پر زيبا دى، ولي كعب رحمه الله وايي چي بيت المقدس اته ميله تر نوري ځمکي و اسمان ته نژدې دی، او ابن زيد وايي مصر دی او سدي وايي فلسطين دی. حسين كاشفي وايي ما درو پسر را وقتيكه از يهود فرار كردند وباز آورديم بسوى ربوه از زمين بيت المقدس. حسين کاشفي رحمه الله په تفسير حسيني كي وايي اورده اند كه مريم با پسر خود وپسر عم خود يوسف بن ماهان ١٢ سال در آن موضع بسر بردند وطعام عيسى ومادروى از بهايي ريسمان بود كه مادرش مى رشت وعيسى ؏ دربازار ميفروخت لكن اين ريسمان از قطن وكتان بوده انتهى.

(ذات قرار) چي هغه ځکه ځاى د قرار وه، يعني سمه او اره ځکه چي شيګي او ډبري نه وې پکښې او اوسېدونکي يې په ارامه پر اوسېدل. او بعض مفسرين وايي چي ځاى د مېوو او د كښتو ؤ چي خلګ د مېوو او كښتو له سببه پکښې اوسېدل (معين) او به او ويالې جاري يې درلودې، عرب وايي: معن الماء اذا جرى، نو د معين وزن د فعيل دى په معنى د فاعل اى ظاهر جار.

**فائده:** جاري اوبو ته ولي معين وايي؟ ددې لپاره چي په سترګو ليدل کېږي بخلاف القنوات (کارېزونه)

يٰٓاَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ

**پوه سه:** چي دا حكايت دی و عليه الصلوة والسلام ته على وجه الاجمال د هغه شي چي په هغه مخاطب سوى دى هر رسول په عصر كي، غرض زما دا دی چي داسي خطاب نه دی چي ټول ته په مخاطب سوي دفعةً واحدةً، ولي چي رسولان خو په متفرقه زمانو كي راستول سوي وه فلا يمكن الخطاب الى الكل دفعةً في زمان واحد بلكې هر رسول په خپله زمانه كي په هغه وروستني آيت كي داسي مخاطب سوي وه امرًا تكليفًا يعني مكلف وه په ما سيناتي سره (كلوا من الطيبات) يعني تاسي خوراک كوئ د حلالاتو شيانو څخه دون المحرمات ولذا قلت امرًا تكليفًا له دې څخه دا معلومه سوه چي خورک د حلالاتو شرع قديم ده.

**فائده:** مظهري رحمه الله د طيباتو په حلالاتو مقابل د محرماتو سره كړى دى، نو ځکه موږ دا ووېل چي دا امر تكليفي دى، او روح البيان د طيباتو تفسير داسي

کړی دی مایستطاب ویستلذ من مباحات المکائل والفواکه، نو ځکه یې داسي ویلي دي چي په دې آیت کي بیان دی د اباحت د لذائذو او فواکه ورسولانو ته، او په دې آیت کي دا هم اشاره وده ته ده چي اباحت شرع قدیم ده، او بعض مفسرين وايي چي دا خطاب دی و رسول الله ﷺ ته، پر قانون د عربو چي یو سړي ته خطاب د جمع کوي تعظیمًا (لکه په پښتو کي هم ورته الفاظ سته لکه یو شاګرد چي استاذ ته ووایي چي تاسي نن چېري تللي واست مثلاً په ځای کي ددې چي ته نن چېري تللی وې) وهکذا خطابات الادب بین الابن والاب فافهم، نو په دې آیت کي اظهار لفضله ﷺ وقیامه تمام الکل في حیازة کما لاتهم.

ع:...... آنچه خوبان همه دارند تو تنها داری

**فائده:** پر تقدیر د اراده د مستلذاتو او فواکهو خو امر ترفیه دی، په دې رد دی د رهبانیه وو چي ترک د مستلذاتو کوي د بزرګی لپاره کما في رهبان النصاری، کریمه: ورهبانیة ابتدعوها ماکتبناها علیهم الآیة، او بعض مفسرین وایي چي د طیبات معنی ده الحلال الصافي القوام، نو د حلال مراد دادی چي معصیت د خدای ﷻ نه وي پکښې چي ضد یې حرام دی، او د صافي معنی داده چي خدای پاک په هغه کي نه هېرېږي او ضد یې هغه دی چي سړی چي سړی په انهماک کي د شهواتو اخته کوي لکه بعض پیدالانو چي مختار کړی دی چي پر سترخان د نعمتو د کاسو او غابو سره جنګ وي، او د قوام معنی داده چي دو مره خوراک کول چي قوام د نفس او حفظ د عقل او د قوای ظاهره او باطنه په وسي، او ضد د قوام خوراک دی فوق الشبع.

**حکایت:** زما یو شاګرد ؤ چي ښخي ډېره ډوډی یې پر یوه ځای خوړله، نو ده ماته وویل چي ما هیڅ کله تېغ (اروی) نه دی کښلی! ما ورته وویل چي تېغ خو هلته سړی کاږي چي په معده کي خالي ځای وي، ته خو ډوډی تر ستوني پوري خوري، نو تېغ به په کوم ځای کي پیدا سي، دا وه فاکهه د تفسیر ایوبي چي په عین حال کي منع د خورک څخه فوق الشبع.

وَاعْمَلُوا صَالِحًا ۖ إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ﴿٥١﴾

او تاسي عمل کوئ صالح.

**فائده:** صالح عمل هغه دی چي مراد ځني وجه الله وي پر موافق د امر د

خدای ج خالصًا له تعالی چي نه شرک جلي لکه بت پرستي پکښې وي او نه شرک خفي چي رياء ده پکښې وي (اني بما تعملون عليم) تعليل ده د (واعملوا) يعني فاجازيكم حسب اعمالكم.

**بوه سه:** چي کلمه د ما که مصدريه وي، نو معنی یې داده اني بعملكم عليم او کلمه د ما که موصوله وي، نو عائد و موصول ته محذوف دی، والتقدير اني بالذي تعملونه عليم فتدبر.

**وَإِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱتَّقُونِ ﴿٥٢﴾**

ای اکل الطيبات والعمل بالصالحات شريعت او ملت دی ستاسي ټولو يعني مؤمنانو (ملةً واحدةً) وهي الاسلام چي يو دی په معتقداتو کي او په اصولو کي د شرائعو والعمل بالفروع على حسب ما امر الله به.

**فائده:** جمله د وان هذه آه محلاً منصوب ده حال ده له فاعل څخه د کلوا، قوله امة واحدة حال مؤکده دی لقوله امتكم مثل زيد ابوک عطوفًا او عامل د حال معنی د اشير ده چي د هذه څخه وفهمېدله کما في قوله تعالى وهذا بعلي شيخًا.

(وانا ربكم فاتقون) او زه خدای ج مربي ستاسي يم، نو زما څخه وېرېږئ، والفاء للسببية يعني زه مو رب يم، نو زما د عذاب څخه وېرېږئ.

**بوه سه:** چي اکل د لقمه حلال په انسان کي علم او حکمت پيدا کوي کما في المثنوي:

علم وحکمت زايد از لقمه حلال ....... عشق ورقت آيد از لقمه حلال

**فائده:** كان رزق نبينا ﷺ من غنائم الكفار وهذا الرزق اطيب الطيبات.

**فَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا ۖ**

نو سره ټوک ټوک کړی هغو کسانو چي دوی ته رسل ورا استول سوي وه وروسته تر ارسال امر د دين خپل يعني دېر دينونه یې ځندي جوړ کړه چي مختلفه وه په اصول کي د دين، نو بعضو له دوی څخه ايمان راوړی پر ټولو رسولانو او په ټوله ما ارسل اليهم وهم اهل الحق في كل قرن، او بعض ايمان راوړي پر بعض رسولانو او پر بعضو کتابو کاليهود آمنوا بموسى ع وبالتورات دون غيره

كالانجيل وعيسى ؑ، او نصارى چې ايمان يې پر عيسى ؑ او انجيل دون غيره اى موسى ؑ و تورات، او بعضو كفر وكړى په ټولو كتابو او په ټولو رسولانو لكه مجوس او بت پرستان.

**فائده**: باب د تفعل په معنى د تفعيل دى. ضمير د تقطعوا وه مرسل اليهم ته راجع دى المذكورين في القصص المذكورة حيث قال الله تعالى: ولقد ارسلنا نوحًا الى قومه وانشاء قرونًا فارسلنا فيهم رسلاً تترى وغير ذالک، نو جمله د تقطعوا عطف ده پر ارسلنا في قوله تعالى ولقد ارسلنا آه (زبرًا) جمع د زبور ده بمعنى الفرقة يعني دوى فرقه فرقه او طائفه وګرځېدل كما مر آنفًا.

**فائده**: زبرًا يا منصوب دى مفعول مطلق د تقطعوا من غير لفظه نحو انبته الله نباتًا، او عين ممكنه ده چې زبرًا دي په معنى د كتبًا وي من قولهم زبرت الكتاب اذا كتبته كتابةً غليظةً وكل كتاب يكون غليظ الكتابة يقال له زبور، نو معنى دا ده چې دوى خپل دين وګرځاوه كتابونه كتابونه چې تحريفات يې پكښې وكړه بعد ماكان كتابًا واحدًا من الله منزلاً على رسوله.

كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿۵۳﴾

هره ډله ددې متفرقو ډلو څخه په هغه دين كې كه څه هم في الواقع باطل او مبني پر هوا نفسي وي خوشاله وي او عقيده يې دا وي چې موږ پر حق يو.

**بوه سه**: چې دا جمله مستانفه ده او څرنګه هره فرقه وايي چې زه خداى پېژنم او پر حق يم. شيخ مصلح الدين شيرازي رحمه الله وايي:

عاكفان كعبه جلالش بتقصير عبادت معترفند كه ماعبدناک حق عبادتک،
وواصفان حليه جمالش بتحير منسوب كه ما عرفناک حق معرفتک.

گر كس وصف ز من پرسد ........ بيدل از بى نشان چه گويد باز
عاشقان كشته گان معشوقند ........ بر نيايد ز كشتگان اواز

فَذَرْهُمْ فِي غَمْرَتِهِمْ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿۵۴﴾

پرېږده ته يا محمد ؑ دوى په خپل كفر او ضلال كې او په غفلت او جهالت كې جهلاً مركبًا يعني چې نه په حق پوهېږي او نه په خپل جهل.

**پوه سه:** چي د جهل مرکب والا ته هدايت ډېر مشکل کار دی، ولي چي دی ځان پر حق بولي ... بيت:

آن کس که نداند وبداند که بداند ...... درجهل مرکب ابد الدهر بماند

البته هغه څوک چي پر خپل جهل علم ولري د هغه هدايت ته لار سته ... بيت:

آن کس که نداند وبداند که نداند ...... او اسپ خود از گنبد پيروزه جهاند

**پوه سه:** چي غمرة هغو ابو ته وايي چي د سړي قامت پکښي پټيږي، نو ددوی جهالت او کفر يې مشابه کړی د هغو سره ولي چي دوی هم په خپل کفر او ضلالت کي پټ دي تر وخته پوري د قتل يا موت پر کفر باندي پر پرېږده فهذا وعيد لهم بعذاب الدنيا والآخرة وتسلية لرسول الله ﷺ ونهي عن استعجال عذابهم والجزع من تاخير العذاب.

**اَيَحۡسَبُوۡنَ اَنَّمَا نُمِدُّهُمۡ بِهٖ مِنۡ مَّالٍ وَّبَنِيۡنَ ۙ﴿۵۵﴾**

آيا گمان کوي هغه کسان چي په مال ديهم دوی خوشاله دي او متابعت د رسولانو نه کوي، بلکې تکذيب يې کوي (والهمزة للانكار الواقع يعني دا گمان دي نه کوي)

**پوه سه:** چي کلمه د ان لپاره د تحقيق ده او کلمه د ما موصوله ده يعني په تحقيق هغه شي چي موږ يې دوی ته ورکوو او دوی ته کومک ور رسوو په هغه شي، ضمير د به عائد دی و ما موصوله ته.

**سوال:** کلمه د ما چي موصوله ده ولي په ان متصل نوشته کړې ده، قانون د نحو فصل دی يعني هكذا ان ما؟

**ځواب:** د اتصال په سبب د رسم د مصحف عثماني دی چي امام يې بولي وان لانعلم حكمته، هكذا في روح المعاني.

(من مال وبنين) بيان د ما موصوله دی يعني مال او زامن.

**فائده:** مال يې تر زامنو دمخه کړی مع ان البنين اعز من الاموال باعتبار الوجود، ولي چي په مال سره ماينه پيدا کېږي او د هغې نفعه وروسته بنين او بنات پيدا کېږي.

**سوال:** چي اولاد ويل سوی وای بنين او بنات دواړو ته به شامل وای. حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** دا مخاطبه قرآنيه ده د کفارو سره او هغو ته بنات سر درد وه.

نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرَاتِ ۚ بَل لَّا يَشْعُرُونَ ﴿٥٦﴾

(نسارع لهم آه) دا جمله خبر د ان ده او عائد پکښې محذوف دی ای نسارع به او ان سره د اسم او خبره قائم مقام د مفعولي د يحسبون دی، ترجمه: آيا دوی دا گمان دی چې دوی ته مونږ په دنيا کې اموال او بنين ورکوو دا مبادرت دی زمونږ د خوا دوی ته په خير سره او اکرام او اعزاز د دوی دی يعني ثواب د دوی د عملو او عقائدو دی چې خدای ﷻ له دوی څخه راضي دی، نو ځکه دوی په خوشاله دي ومعنى الاستفهام ان الامر ليس کذالک (بل لايشعرون) بلکې دوی شعور نه لري يعني حيوانات يې لري، کريمه: هم کالانعام بل هم اضل، ولي دوی که فطنة، فهم او شعور درلودای دا به ورته معلومه سوې وای چې عقائد او اعمال زمونږ خو مستوجب د ثواب او د مرضات الهي نه دي بلکې دا استدراج دی مبادرت الی الخيرات نه دی.

**فائده:** په آيت کې رد دی پر معتزله وو چې دوی وايي چې هر شی چې اصلح وي د بندګانو په دين کې هغه پر خدای ﷻ واجب دی چې د بنده سره به يې کوي، په شرح العقائد کې وايي چې شيخ ابو الحسن الاشعري وخپل استاذ الجبائي المعتزلي ته وويل چې هغه د دې مسئلې چې اصلح پر خدای ﷻ واجب دی بيان کاوه، چې ته څه وايه په هغو درو ورڼو کې چې يو مؤمن تقي وي مړ سي او بل کافر فاجر مړ سي او بل په کوچني والي مړ سي؟ جبائي ورته وويل چې مؤمن تقي به په جنت کې وي خدای ﷻ خپل واجب د ده سره پای ته ورساوه، او کوچنی که خدای ته ووايي چې زه دې ولې په کوچني والي مړ کړم زه به دې لوی کړی وای او دين به دې پر ما عرض کړی وای چې ما ايمان راوړی وای اوس به زه په استحقاق سره په جنت کې وای، خدای ﷻ به څه جواب ورکوي؟ جبائي ورته وويل چې خدای به ورته ووايي چې زه په تا خبروم چې ته که لوی سوی وای ته کافر کېدې او په دوږخ کې به وای، نو اصلح ستا دغه وه چې په کوچني والي مې مړ کړې. شيخ اشعري رح وويل چې هغه کافر ورور چې په دوږخ کې دی که يې خدای ﷻ ته وويل چې په ما خو هم خبر وې چې زه کافر کېږم، نو ما لره خو هم اصلح دا وه چې په کوچني والي دې وژلی وای، له دوږخ څخه به خلاص وای، خدای رح به څه جواب ورکوي؟ فتحير الجبائي وترک الاشعري رحمه الله مذهبه انتهى بتغير فافهم.

إِنَّ الَّذِينَ هُم مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِم مُّشْفِقُونَ ﴿٥٧﴾

په تحقیق هغه کسان چي له ېږي څخه له عذابه د خدای ﷻ خان ساتي د اسبابو څخه د عذاب د خدای ﷻ من المعاصي. قال الحسن البصري رح المؤمن جمع احسانًا (ای العمل بالاخلاص كما في الحديث الطويل المتفق عليه الاحسان ان تعبد الله كانه تراه فان لم تكن تراه فانه يراک) او ېږه د خدای ﷻ څخه سره د عمل بالاحسان لري، والمنافق جمع اسائة (ای الکفر المبطن) وامنًا او بېغمه دی.

وَالَّذِينَ هُم بِآيَاتِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٨﴾

او هغه کسان چي پر آیاتو قرآنیه د رب د دوی یې ایمان وي (دا عطف دی پر الذين) او يا مراد له آياتو څخه علامات منصوبه دي في الانفس والافاق الدالة على وجود الصانع وتوحيده وكمال علمه وقدرته يعني پر دې آياتو يې ايمان راوړی وي... بيت:

برگ درختان سبز در نظر هوشیار.... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

وَالَّذِينَ هُم بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُونَ ﴿٥٩﴾

او هغه کسان چي دوی د رب سره د دوی شریک نه وایي.

**سوال**: په مخني آیت کي داسي راغله والذين هم بآيات ربهم آه، چي د تفسير سره ئېر سو چي توحيد د خدای ﷻ پکښي ذکر سو فما الحكمة في ذكر هذه الآية؟

**ځواب**: مراد په دې آیت کي عام دی که شرک جلي وي که خفي كالرياء، نو توحيد د خدای ﷻ مستلزم عدم شرک لره نه دی كالعلماء المرائين.

وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ

او هغه کسان چي ورکوي هغه شی چي دوی يې ورکوي من الزكوة والصدقات وصلة الرحم وتوسلوا بها الى مرضات الله.

**پوه سه**: چي صيغه د مضارع لپاره د استمرار ده، يعني همېشه يې دغه کار وي او صيغه د ماضي يعني ما اتوا لپاره د دلالت پر تحقق ده (وقلوبهم وجلة) الواو للحال عن فاعل يؤتون او زړونه د دوی ببرېږي چي دا صدقات به زموږ نه وي قبول

سوي، ولي چي دوی پر خپل ځان دا يقين نه لري چي دا عمل دې په اخلاص كړی وي يا يې دا خيال وي چي دا زما عمل به شايان د شان د خدای ﷻ نه وي، نو زه به په عمل ونيول سم يعني بالعذاب. او يا پر دې ېرېږي چي دا اعمال زما په سبب د خلاصون زما د اوره نه وګرځي لكثرة الخطايا. سيد طايفة الصوفية بايزيد البسطامي رحمه الله په خپل يوه مناجات كي وايي:

چار چيز اورده ام شاها كه در گنج تو نيست
عاجزی و مسكينی فقر و گناه اورده ام

په عمل به غرور مغرور كوي.

تكبر عزازيل را خوار كرد ......... بزندان لعنت گرفتار كرد

انا خير منه خلقتني من نار وخلقته من طين. قاله ابليس عليه اللعنة حين امره الله تعالى بالسجود لآدم وقد مر تمام تفسيره في سورة البقرة.

**أَنَّهُمْ إِلَىٰ رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ ۝٦٠**

ای لان رجوعهم الى الله وهو يعلم ما يخفى. او حسن بصري رح وايي چي دوی عبادت كوي او په عبادت كي ډېر كوشان وي او ېرېږي چي را باندي رد نه سي. د سيدتنا ام المؤمنين عائشة رضي الله عنها څخه روايت دی. دا وايي چي ما پوښتنه وكړه د دې آيت په باره كي (والذين يؤتون ما اتوا وقلوبهم وجلة) چي دا هغه كسان دي چي شراب څښي (ويسرقون قال عليه السلام لا يا ابنت الصديق ولكنهم يصومون) يعني روژې نسي او لمونځونه كوي او زكواتونه وركوي او دوی ېرېږي چي را څخه قبول به نه سي (اولئك يسارعون في الخيرت) رواه احمد والترمذي. د بعض صوفيه كبارو څخه روايت دی چي ېره د عارف بالله خپل د طاعت څخه ډېر وي تر معصيت لان المعصيت يمحو بالتوبة والطاعة يطلب بتصحيح اركانها وغيرها والاخلاص والصدق في كل ذالك وتلك امور الدقيقة قلما يدركها صاحبها.

**درويش وايي:** چي فاذا كان فاعل الطاعات فائقا مضطربا فكيف حال العاصي المتوغل في العصيان، سعدي شيرازي وايي:

در ان كزقول پرستار و فعل ........ اولوا العزم راتن بلرزد زهول
بجای كه دهشت خورد انبياء ........ تو عذری گناه را چه داری بيا

**فائده**: موصوفات متعاطفه تو له اسم د ان دي او خبر يې راتلونكى آيت دى.

# أُولَٰٓئِكَ يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلۡخَيۡرَٰتِ وَهُمۡ لَهَا سَٰبِقُونَ ٦١

دغه كسان چي موصوف په دغو صفاتو سره وي رغبت كوي اشد الرغبة في الطاعات او مبادرت كوي په كولو كي د طاعاتو مذكوره وو وغيره كي چي را ځخه فوت نسي. او يا معنى داده چي تلوار كوي په نيل كي د خيراتو الاخروية من الجنات ورضى الله الرحمن وبشارة في ذالك ان لاخوف عليهم ولاهم يحزنون چي د خيرات موعود پر كولو د طاعاتو مذكوره وو. او دا حتمال هم سته چي مراد له خيراتو ځخه دي خيرات دنيويه وي چي موعود دي پر صالح اعمالو په دنيا كي كما قال رسول الله ﷺ (لايرد البلاء الا الدعاء، ولايزيد في العمر الا البر اى صلة الرحم مع الاقارب) آية كريمه: فاتاهم الله ثواب الدنيا وحسن ثواب الآخرة.

**پوښتنه**: په آيت متلوه كي موصول يعني الذين يې مكرر راوړل سو. او كه يې د اول موصول پر صله نوري صلات عطف كړي واى او موصول يې نه واى راوړى مثلاً داسي ويل سوي واى ان الذين هم من خشية ربهم مشفقون وهم بآيات ربهم يؤمنون وهم بربهم لايشركون. ويؤتون ما اتوا الى اخيرها. نو اختصار به هم واى نو حكمت د اعاده د موصولاتو ځه دى؟

**ځواب**: په اعاده كي د موصولاتو تنبيه پر دې ده چي هر يو ددې صفاتو مستقل دى په ثبوت كي د خبر يعني يسارعون في الخيرات. او كه يې صلات سره عطف كړي واى او موصولات يې نه واى راګرځولي توهم به ددې كېداى چي دا مجموع الصلات سبب دى د مسارعت الى الخيرات فتامل غاية التامل.

**پوښتنه**: چي لام په (وهم لها سبقون) كي لپاره د اجل او د سابقون مفعول محذوف دى. والمعنى دوى اى المتصفون بالصفات المذكورة لاجل الخيرات المذكورة چي ددوى د خول د مخه دى تر خلكو و جنتو ته او دا هم احتمال سته چي دوى له سببه د خيراتي كارو چي ذكر سوه سابقون دي وخيراتو ته ددې دنيا قبل الآخرة كمامر ذكرها. او بعض مفسرين وايي چي لام په معنى د الى دى، نو معنى داده چي دوى د خير و كارو ته سابقون دي تر نورو امتو.



Scanned by CamScanner

وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا

او موږ تکلیف نه کوو (مضارع لپاره د استمرار ده یعني دا عادت مستمره زموږ دی) پر نفس مگر په هغه شي چي هغه نفس يې توان او طاقت لري (ولي چي زكوات يې پر اغنياؤ فرض كړي دی دون الفقراء. او لمونځ قياماً پر هغه چا فرض دی چي طاقت د قيام لري والا فقاعداً والا فمضطجعاً او روژه يې پر هغه چا فرض كړې ده چي طاقت يې لري او شيخ فاني يې له روژې څخه په فديه د نصف صاع خلاص كړی وهكذا مسافر او مريض يې له روژې څخه په قضاء د عدت من ايام اخر معاف كړي دي الى غير ذالک من التكاليف الشرعية) او دا هم احتمال ذكر كړل سوی دی چي دا جمله مستانفه ده يعني وا و استينافي دی كما في كثير من مواضع الهداية، لپاره د باعثه كولو د مؤمنانو پر اعمال مذكوره وو په دې معنى چي تاسي خپل سعي مبذول كړئ دا خيرات مذكوره له دائره څخه د توان او طاقت نه دي وتلي.

وَلَدَيْنَا كِتَٰبٌ يَنطِقُ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٦٢﴾

او په نېز زموږ يو كتاب سته چي مراد ځني لوح محفوظ دی (نو تنوين د كتاب لپاره د تعظيم دی ای كتاب عظيم الشان. او يا مراد ځني صحائف د اعمالو دي چي كرام كاتبين د هر بنده اعمال پكښي ثبت كړي دي، نو پر دې تقدير تنوين لپاره د تكثير دی ای صحائف كثيرة محفوظة تحت العرش كما يقول الرجل افتخاراً عندي دراهم ودنانير ای كثيرة) چي خبري كوي يعني په هغه كتاب كي ثبت دي فالنطق كناية په حق متحقق في الواقع يعني اعمالهم ثابتة لدينا لا يضيع منها شيء. او پر بندګانو ظلم نه كړل كيږي يعني نه يې په حسناتو كي نقصان راځي عما فعلوا. او نه يې په سيئاتو كي زيادت راځي پر ما فعلوها. كريمه: فمن يعمل مثقال ذرة خيراً يره ومن يعمل مثقال ذرة شراً يره.

**فائده**: د لقد ارسلنا نوحاً څخه بيان د حال د كافرانو ؤ الى قوله تعالى بل لا يشعرون. او په اثناء كي د حال د كافرانو چي حكمت يې انذار ؤ، د هغه قول څخه د خدای ﷻ ان الذين هم من خشية ربهم څخه الى قوله تعالى وهم لا يظلمون، پر طور د جمل معترضه بيان د حال د مؤمنانو ؤ بشارةً لهم. اوس بيرته حال د كفارو ذكر كوي يعني بقوله تعالى.

بَلْ قُلُوبُهُمْ فِي غَمْرَةٍ مِّنْ هَٰذَا

تر پایه پوري نو دا آیات متصل دي بقوله تعالى بل لايشعرون (في غمرة) يعني زړونه د هغو کفارو چي پر هغو تاپه د لايشعرون ولګول سوه په غمره يعني غفلت غامره کي دي (من هذا) يعني د خپل عدم شعور څخه نو دوی لکه چي شعور نه لري پر خپل عدم شعور هم شعور نه لري. وهذا معنى الجهل المركب كمامر تفصيله.

وَلَهُمْ أَعْمَالٌ مِّن دُونِ ذَٰلِكَ هُمْ لَهَا عَامِلُونَ

او دوی لره يعني مشركي مكة لره عملونه دي يعني خبيث (من دون ذالک) اى كائنة من آه بيله هغه عملو چي په هغه سره مؤمنان موصوف وه كمامرت يا معنى داده چي زائد تر شرک نور خبيث عملونه لري، چي دوی د هغو اعمال خبيثه وو عمل كونكي دي يعني چي دوی پر هغو عملو عادت نيولى دى.

**پوه سه:** چي وهم لها آه صفت دی د اعمال.

حَتَّىٰ إِذَا أَخَذْنَا مُتْرَفِيهِم بِالْعَذَابِ

**پوه سه:** چي حتى غاية ده لاعمالهم المذكورة او شروع ده د وروسته لپاره چي مضمون د شرطيه دى كذا في روح المعاني وتفسير الكشاف. ترجمه: تر هغه وخته دوی هغه عملونه كوي چي ونسو موږ رئيسان د دوی چي متنعمين وه مشتق من الترف بمعنى النعمة (بالعذاب) ابن عباس رض وايي وهو السيف يوم بدر. او ضحاک رح وايي چي مراد له عذابه لوږه وه چي پر دوی مسلطه سوه په سبب د ښېرا د عليه الصلوة والسلام اللهم اشدد وطئتک على مضر (ته سخت کړې عذاب خپل پر مضر يعني قريش) واجعلها عليهم سنين كسني يوسف (او وګرځوې پر دوی كلونه د كاختي لكه كلونه د كاختي د يوسف ع) فابتلاهم الله بالقحط حتى اكلوا الكلاب والجيف والعظام (نو دوی مبتلاء كړه خداى پاک په كاختي او لوږه سره حتى چي د سپو غوښي به يې خوړلې او نور مردار شيان او هډوكي به يې ايشول هغه غوړي او به به يې څښلې، كما في البخاري ومسلم برواية ابن مسعود.

إِذَا هُمْ يَجْأَرُونَ ﴿٦٤﴾

كلمة اذا للمفاجئة والجئر رفع الصوت بالاستغاثة. دا جمله جواب د شرط ده يعني اذا اخذنا آه.

**فائده:** اذا للمفاجات پر جمله اسميه قائم مقام د فاء جزائيه دی كما في كتب النحو.

لَا تَجْأَرُوا الْيَوْمَ إِنَّكُمْ مِنَّا لَا تُنْصَرُونَ ﴿٦٥﴾

مقدر بقيل يعني د ملكو د خوا به ورته وويل سوه چي تاسي استغاثې او نارې مه وهئ نن ورځ ای حين نزول العذاب (انكم منا لاتنصرون) علت دی د نهي د جوار څخه يعني د تاسي سره زموږ د خوا كومک نه كول كېږي فلا ينفعكم الجوار لعدم الفائدة ولي چي زموږ نصرت او كومک نه در سره كېږي په دفع د عذاب وارد. ولهذا قيل:

تو پيش از عقوبت دری عفو كوب...... كه سودی ندارد فغان زير چوب

قَدْ كَانَتْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ

په تحقيق وه آيات القرآن چي پر تاسي تلاوت كېدله.

**پوه سه:** چي جمله (تتلى عليكم) تر پايه پوري علت دی د لاتنصرون.

فَكُنْتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ تَنْكِصُونَ ﴿٦٦﴾

نو تاسي به واست حين تلاوة آيات القرآن عليكم د پند و پر خوا يعني د شا پر خوا به مو رجوع كول يعني وسماع الآيات ته به مو شا وركرځول نه مو اورېدی او نه مو تصديق پر كاوه او نه هم عمل.

مُسْتَكْبِرِينَ بِهِ سَامِرًا تَهْجُرُونَ ﴿٦٧﴾

(مستكبرين) كبر به مو كاوه له متابعت څخه د عليه الصلوة والسلام چي تاسي به ځانونه لوړ بلل له متابعت څخه د عليه الصلوة والسلام.

**پوه سه:** چي مظهري رح وايي چي (به) ضمير راجع دی وغير مذكور لفظ ته وهو الحرم. نو تاسي كفر كاوه په حرم سره يعني دوی به ويل چي موږ د حرم اوسېدونكي يو او جيران د بيت الله يو، لايظهر علينا احد ولانخاف احدًا كذا قال

ابن عباس رضي الله عنه ومجاهد وجماعة رحمهم الله، ولما كان افتخارهم واستكبارهم بالبيت الشريف مشهوراً اغنى عن ذكر المرجع. وقال روح البيان به حالكونهم مكذبين بكتابي الذي عبر منه بآياتي. نو تكذيب مبني على تضمين الاستكبار معنى التكذيب ولهذا اعبر عن التكذيب بالاستكبار. نو ضمير په نيز د روح البيان راجع دى قرآن ته چي د هغه دليل ذكر د آياتو دى. او روح المعاني د مظهري د توجيه سره موافقت كړى دى والله اعلم بالصواب وعنده علم الكتاب

(سٰمِرًا) حال دى له فاعل ځخه د مستكبرين اى حال كونكم تسمرون (خبري كوي د شپې) في مجالسكم حول البيت. والسمر في اللغة الحديث بالليل والسامر اسم جمع كالبقر للباقر. والحاصل يقال سمر القوم يسمرون فهم سمار (دا جمع ده) وسامر دا اسم جمع ده كذا في النهاية (تهجرون) اى تفحشون وتسبون النبي ﷺ واصحابه حاصل دا دى چي قريش چي به د شپې حول البيت سره جمع سول عام مجلس او خبري ددوى به بد ويل وه پر عليه الصلوة والسلام بكونه شاعراً كاذباً مجنوناً كاهناً او قرآن يې شعر او كهانت باله او د عليه الصلوة والسلام د خوابې باله.

**فائده:** كان عليه الصلوة والسلام يصلى العشاء الى ثلث الليل ويكره النوم قبلها والحديث بعدها. قرطبي په خپل تفسير كي وايي اتفق العلماء پر كراهيت د خبرو وروسته تر ماخستن د لمانځه. دى وايي چي لمونځونه حد دى د بخښني د خطايا وو د انسان (يعني الصغائر) فينام على سلامة وقد ختم الكرام الكاتبين صفحية بالعبادة وهي صلوة العشاء فان سمر بعدها فقد لغا وجعل خاتمة صحيفة اللغو والباطل. تاريخ وايي چي امر المؤمنين عمر رضي الله عنه لايدع سامراً بعد العشاء ويقول ارجعوا فلعل الله يرزقكم صلوة وتهجداً. لكن فقيه ابو الليث سمرقندي رحمه الله په بحر العلوم كي وايي چي سمر يعني بعد صلوة العشاء خبري درې قسمه دي (۱) چي په مذاكرة كي د علم دين وي فهو افضل من النوم وليس بمنهى عنه. او پر دې قياس دى مذاكره په يو امر كي چي په هغه كي خير د مسلمانانو وي لكه غزوات وغيره. او په صحيح حديث كي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام سمر كاوه بعد العشاء في بيت ابى بكر رضي الله عنه ليلاً في الامر الذي يكون من امر المسلمين (۲) مايكون اساطير الاولين (يعني د پخوانيو خلكو د درواغو قصې) درواغ او

مسخري، ټوکي ټکالي او خنداوي فهو مکروه جدًا (۳) چي د الفت لپاره خبري سره کوي يا مېړه او مايينه د جماع په باب کي خبري سره کوي. ويجتنبوا الكذب وقول الباطل فلا باس به، او وروسته بايد ذکر د خدای ﷻ تسبيح او تهليل روايي حتى يكون رجوعهم بالخير، وفي الحديث الصحيح كان رسول الله ﷺ اذا اراد القيام من مجلسه (ليلاً كان او نهارًا) قال سبحانک اللهم وبحمدک اشهد ان لا اله الا انت استغفرک واتوب اليک وروسته به يې وويل چي دا کلمات ماته جبرئيل رابښوولي دي، وفي روضة الاخيار من قال تلک الكلمات قبل ان يقوم من مجلسه كفر الله ما كان في مجلسه (من اللغو) كذا في الحديث.

**تنبيه**: درويش وايي چي چونکه بحث د سمر منهي عنه راغلی او اوس د شعبان د مياشتي (۲۱) نېټه (۱۴۳۰ هـ ق) ده. نو د مبارکي مياشتي د روژې سمر منهي عنه ته به نظر وکړو، نو پوه سه! چي يوه طبقه د ځوانانو خلکو، نو د هغو طريقه کار دادی چي په يوه جامع مسجد کي د الم ترکيف آه تراويح کېږي هوري تراويح وکړي، وروسته په يوه کوټه يا يو کور کي ډش چالان کړي چي عريان نمايش د خارجيانو دی يا کېبل چالان کړي، بله بيا يوه ميانه طبقه عوام دي هغه په دکان يا کوټه کي پټي يا کتار کوي يا شترنج او کم از کم ټي وي خو ورته چالان وي، دا دواړي طبقې د پېشلمي تر وخته پوري په دا فسق او فجور اخته وي سحري يا پېشلمی چي وکړي بيده سي د سهار لمونځ قضاء کړي ځابنت راکښېني مخ پر پېمنځي هر کار چي يې کاوه په هغه کار پسي روان سي، يوه د بعض ملايانو طبقه ده هغه چي تراويح وکړي يو مقتدی ورته ووايي راځه مولوي صاحب يا قاري صاحب يا مفتي صاحب زموږ سراچې ته به ولاړ سو چای، مېوه وغيره به وخورو او يو ګړی به باندار هم وکړو، خير مذکوره ملاصاحبان ورسره ولاړ سي هوري قهقه خندا، ټوکي ټکالي او غيبت د يو چا سره وکړي تر دې پېشلمي ته کور ته راسي لږ بيده سي يا نه پيش لمی وکړي يو څو رکعته نفل يا تلاوت د قرآن کريم وکړي سپېدو ته منتظر وي، څرنګه چي سپېدې راوچوي د سهار لمونځ مقتديانو ته ورکړي سمدستي په يوه حجره کي د مسجد يا په کور کي تلتک پر ځان واچوي چونکه د شپې بيداري پر تېره سوې وې نه په عبادت بلکې په لهو لعب کي، نو تر

یا څه څابښته بیده وي، که څوک پوښتنه څندي وکړي چي د سهار لمونځ ولي په سپیدو کي کوي؟ دی ورته وایي چي علیه الصلوة والسلام د سهار لمونځ په اول کي د صبح صادق کاوه، لکن پر ده دوه سواله بلا امکان الجواب وارد یږي، اول دا چي علیه الصلوة والسلام یوازي په روژه کي داسي وخت د سهار لمونځ کاوه که ټوله عمر؟ چاره نسته چي دی به وایي چي همیشه د علیه الصلوة والسلام داغه عادت ؤ کما ثبت في الاحادیث الشریفة الصحیحة، نو د ملا صاحب څخه دا پوښتنه کیږي چي ته چي داغسي د سیرت النبوي عاشق یې، نو ته ولي ګرده کال دغسي عادت نه لرې؟ دویم د ملا صاحب څخه پوښتنه کیږي چي په کوم حدیث کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام په روژه کي یا په نورو میاشتو کي د سهار تر لمانځه متصل به بدیدی؟ بلکې احادیث صحیحه د شیخانو بخاري او مسلم پر دې شاهد دي چي علیه الصلوة والسلام وایي چي څوک د سهار لمونځ وکړي او هورې په تسبیح او تهلیل سره مشغوله وي تر څو چي لمر یوه یا دوې نېزې مقدار راپورته سي، نو هلته صلوة الاشراق دوه یا څلور رکعته وکړي کان له کذا وکذا من الاجر والثواب او کما قال رسول ﷺ، نو مذکوره ملایان به د دغو دوو سوالو څه جواب وایي، حاصل دادی چي د بعض ملایانو طریقه داده چي دین یې تابع د خپل هوا او هوس ګرځولی دی ... ع: بدین علم و دانش باید ګریست

ع: چو کفر از کعبه برخیزد کجا ماند مسلمانی

**درویش وایي:** چي ماه رمضان د برکت او مغفرت او د عبادت خصوصي میاشت ده باید حتی الوسع سړی په عبادت یومًا ولیلاً صرف کړي تر بلې روژې ژوند معلوم نه دی ... بیت:

تو ګوئی آنچه دانی سخنند سود مند ..... اګر هیچ کس را نیاید پسند

أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ أَمْ جَاءَهُم مَّا لَمْ يَأْتِ آبَاءَهُمُ الْأَوَّلِينَ ﴿٦٨﴾

**پوهه سه:** چي همزه لپاره د انکار دی او انکار د نفي اثبات دی، او اصل د (یدبروا) یتدبروا ؤ تاء یې په دال کي مدغمه کړه، او کلمه د فاء عطف ده پر مقدر، والتقدیر الم یسمعوا فلم یدبروا، او مراد له قول څخه قرآن کریم دی یعني لام لپاره د عهد دی لانه المفهوم من الکلام مع کفار مکة یعني القول الذي جاء به محمد ﷺ

والحاصل چي دوی واوريدی قرآن او دوی فکر هم پکښې وواهه په اميد د معارضة القرآن لکن دوی قادر نه سوه پر اتيان د مثل د اقصر سوره. نو عليه الصلوة والسلام پر دوی غالب سو په دعوه کي د رسالت. او ددې چي قرآن کريم کلام الله المعجز دی وليس من کلام البشر کما زعموا ان محمداً ﷺ دا قرآن په خپله جوړوي او خلکو ته بې د کلام الله په نامه معرفي کوي لانه لو کان کک لما عجزوا عن اتيان مثل اقصر سورة فضلاً عن اطول سورة کسورة البقرة مثلاً، او روح البيان او روح المعاني وايي چي همزه لپاره د انکار ده واقع من المشرکين واستقباحه والفاء للعطف على مقدر يدل عليه الآيات السابقة. والتقدير افعلوا ما فعلوا من النکوس کما يدل عليه تنکوصون والاستکبار کما يدل عليه مستکبرون، والهجر کما يدل عليه تهجرون، نو همزه لپاره د انکار د دغو افعالو ددوی دی يعني دوی بايد دغه افعال نه وای کړي فلم يتدبروا القرآن تاچي دوی په بلاغت کامله د قرآن او قصص د امم ماضيه مطابقاً لمايدل عليه التواريخ القديمة مع کونه ﷺ امي، نو که دوی دغه فکر وهلی وای، نو په دې به پوه سوي وای چي قرآن حق او له جانبه څخه د خدای ﷻ دی نو بې ايمان پر قرآن او پر عليه الصلوة والسلام راوړی وای.

**درويش وايي:** چي دا ؤ تفصيل د روح البيان او روح المعاني د دوو ليکو د بيان فارجع الى التفسيرين المذکورين وادع لي لما عانى الفقير في هذا التفسير

**پوه سه:** چي ام په معنى د بل او همزه دی يعني منقطعه دی، بل لپاره د انتقال دی او همزه لپاره د انکار دی، والمعنى بل لم يجئهم مالم يات آبائهم الاولين يعني بل جاء هم ما اتى آبائهم اسماعيل عليه السلام او وروسته تر ده من الرسول والکتاب محمد ﷺ مثل ابراهيم واسماعيل عليهما السلام ولا شقاق في ذالک.

**پوه سه:** چي ددې کلام مبنى پر دې ده چي قريش په نبوت د ابراهيم او اسماعيل عليهما السلام واعقابهما قائل وه، نو تاسي ولي د محمد ﷺ له نبوت څخه انکار کوئ، او يا معنى داده چي راتگ د رسولانو له جانبه څخه د خدای ﷻ دی او انزال د کتبو پر هغو لپاره د انزار د خلکو سنت او عادت قديمه د خدای ﷻ دئ کما لايخفى على من طالع التواريخ القديمة، فليس نزول القرآن على محمد عليه السلام موضع التعجب والانکار.

أَمْ لَمْ يَعْرِفُوا رَسُولَهُمْ فَهُمْ لَهُ مُنكِرُونَ ﴿٦٩﴾

**درویش وایي:** چي دلته هم کلمه د ام منقطعه ده په معنی د بل للانتقال من توبیخ الی آخر، والهمزة للانکار عن عدم معرفة رسولهم یعني قد عرفوا رسولهم محمداً ﷺ في حال صغره وکبره وعرفوا نسبه بانه من بني هاشم من قریش. او صدق دده او ښه اخلاق او کمال علم و ادب دده او وفاء بالعهد دده او امین والی دده حتی چي قریشو به علیه الصلوة والسلام ته قبل دعوی النبوة په نامه نه ویل بلکي امین مکه به یې یاله او سره ددې چي علیه الصلوة والسلام نه په حال کي د صغر او نه د کبر و کوم بشرته د شاگردی په توگه کښېنستلی دی وهذا معنی کونه امیًا، نو سره ددې ټولو معلوماتو ستاسي په احوال کي د علیه الصلوة والسلام څرنگه دی ساحر بولئ یا شاعر یا مجنون یا یعلمه البشر یې بولئ.

ع....: بدین علم و دانش باید گریست........ بیت:

آفاقها گردیده ام مهر تبان و رزیده ام
بسیار خوبان دیده ام اما تو چیزی دیگری

(فهم له منکرون) نو دی وروسته تر معرفت تامه دده د نبوت (نو په کلام کي مضاف و ضمیر ته محذوف دی) ای لنبوته منکر یاست.

**درویش وایي:** چي په صحیح حدیث کي راغلي دي چي ابو طالب په ورځ د نکاح د نبي علیه السلام یوه بلیغه خطبه په حضور کي د رئیسانو او مشرانو د مضر او قریش په دې الفاظو وویل: الحمد لله الذي جعلنا من ذریة ابراهیم ؑ (ای اولاده ولو بالوسائط) وزرع اسماعیل ؑ (له کښته څخه د اسماعیل ؑ چي د ابراهیم ؑ مشر زوی ؤ) وضئضي معد وعنصر مضر (او له نسل څخه د معد بن عدنان او له اصل څخه د مضر د قبیلې) وجعلنا من حضنة بیته (موږ یې گرځولي یو له ساتونکو څخه د خپلي خوني یعني کعبې) وجعل لنا بیتًا محجوجًا (موږ ته یې راکړی یو عظیم الشان بیت چي خلک یې حج ته راځي) وحرامًا آمنًا (او حرم یې کړی دی چي ذات امن دی له قتل او غاراتو څخه) وجعلنا حکامًا علی الناس (او موږ قریش یې حاکمان پر خلکو گرځولي یو) ثم ان ابن اخي محمد بن عبد الله (ﷺ) لایوزن برجل الا رجح به (نه اندازه کېږي دی په یو سړي سره مگر زما وراره به پر درونډ

وي) فان كان في المال قل فان المال ظل زائل (كه وي په مال كي زما لږوالى يعني پرواه نه لري ولي چي مال خو لكه سايه زائلېږي) ومحمد (ﷺ) من قد عرفتم قرابته (او محمد ﷺ هغه څوک دى چي تاسي يې په قرابت يعني زما سره چي وراره مي دى خبر ياست) وقد خطب خديجة بنت خويلد وبذل لها من الصداق ماعاجله وآجله من مالي (او ده مركه كړې ده و خديجې بنت خويلد ته او دې ته ولور اينبى دى چي عاجل او آجل يې زما له مال څخه دونه دى "هغه مقدار يې په حديث كي نه دى بيان كړى" وهو والله بعد هذا له نباء عظيم وخطر جليل (او ده لره يعني عليه الصلوة والسلام لره وروسته تر دې قسم په خداى يو خبر ستر لوى او يو حال ستر د پر د ويار ډک انتهى خطبة ابى طالب.

وفي هذا دليل واضح على انهم عرفوه صلى الله عليه وسلم بغاية الكمال والا لانكروا قول ابى طالب.

**درويش وايي:** چي دا حديث روح المعاني نقل كړى دى ما سره د عربي ښايا عبارته وتاسي ته ترجمه كړى.

## أَمْ يَقُولُونَ بِهِۦ جِنَّةٌۢ ۚ

او كه دوى وايي چي د محمد (ﷺ) سره ليونتوب ملگرى دى يعني انه مجنون.

**پوه سه:** چي دا ام دلته هم منقطعه ده بل آه كلمه د بل لپاره د انتقال ده وبل توبيخ ته د دوى او همزه لپاره د انكار ده واقع يعني جنون نسته ولي قريش په دې ښه پوهېدل چي عليه الصلوة والسلام ارجح د دوى دى عقلاً او دوى خبري د عليه الصلوة والسلام لاسيما القرآن بعيد من كلام المجانين بمراحل لكن بيا هم دوى نسبت د جنون ورته كاوه عناداً وتكبراً.

## بَلْ جَآءَهُم بِٱلْحَقِّ وَأَكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كَٰرِهُونَ ﴿٧٠﴾

بل سبب د عناد او د مكابره د دوى د عليه الصلوة والسلام سره دا دى چي عليه الصلوة والسلام دوى ته راتګ وكړى په حق سره چي توحيد دى چي د دوى د تقليدي دين شرک څخه خلاف دى او د توحيد صدق ظاهر دى عقلاً ونقلاً وذالک ميراث الانبياء عليهم السلام من لدن آدم عليه السلام الى يوم ظهور محمد ﷺ.

(واكثرهم للحق كرهون) الواو للحال من مفعول جائهم يعني جائهم الحق وهو له كارهون عنادًا وطلبًا للرياسة واتباع الشهوات وعبادة الجمادات تقليدًا لآبائهم الجهال.

**فائده:** قيد د اكثريې وو ايه، ولې چې بعض د كفارو دين اسلام يې د كراهت د حق د سبب نه ؤ پرې ايښي بلكې د ډېرې د توبيخ د قوم يا د عدم فكر له سببه يا د حماقت له كبله.

وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ أَهْوَآءَهُمْ لَفَسَدَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْأَرْضُ وَمَنْ فِيهِنَّ

بعض مفسرين وايي چې معنى د دې آيت داده كه چېرې حق مطابق سي د خواهشاتو سره د مشركينو بان في الواقع آلهة متعددة (لفسدت السموات آه) يعني پر عالم به نه واى پاته هيڅ شى د اسمانو او د مځكې او چې په اسمانو كې د ي من الشمس والقمر والنجوم والملائكة او په مځكه كې من الحيوانات والنباتات وغيرها، يعني هيڅ چې به د كتم د عدم و عرصه ته د وجود نه واى راوتلاى لدلالة برهان التمانع عليه، وهو قوله تعالى لو كان فيهما آليهة الا الله لفسدتا كمامر تفصيله في تفسير سورة الحج. او ابن جريج او مقاتل وجماعة من المفسرين رحمهم الله يې داسې تفسير كوي چې الحق هو الله تعالى، او فراء او زجاج وايي چې مراد له حق څخه قرآن دى، نو معنى د آيت داسې ده كه متابعت وكړي خداى ﷻ د مراد د مشركانو يعني على فرض المحال چې ځان لره شركاء وګرځوي او يا نازل كړي قرآن پر موافق د شهواتو د دوى ونطق القرآن بالقبائح والشرک لم يكن الله الهًا فان الالوهية لايحتمل الشركة والله لايامر بالفحشاء والمنكر، ولې چې امر بالفحشاء يو رزيل كار دى والالوهية يقتضى التنزه عن الرزائل وكذا القرآن تو اتبع اهوائهم من الشرک والقبائح لم يكن كلام الله واذا خرج الله من البين لبطل وجود الممكنات لانها تقتضى الصانع الحق.

**درويش وايي:** چې دا تولې خبرې بناء پر فرض المحال دي تبكيتًا للمشركين القائلين بان الله شريكا وكذا يقولون للنبي ﷺ ائت بقرآن غير هذا او بدله يعني بحيث لم يكن فيه ذم آلهتهم وغير ذالک.

**فائده:** دا تفسیرونه فقیر د دغو تفاسیرو څخه رانقل کړي دي روح المعاني، روح البیان، تفسیر مظهري، تفسیر قرطبي، بحر العلوم للسمرقندي والبیضاوي بعضها عن بعض وبعضها عن بعض لکن اقول الله اعلم بمراده في کتابه.

بَلْ اَتَيْنٰهُمْ بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَنْ ذِكْرِهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۷۱﴾

عطف علی قوله بل جائهم بالحق الآیة، وجملة لو اتبع الحق آه معترضة بین المعطوف والمعطوف علیه لبیان بطلان اهوائهم (بذکرهم) یعني هغه کتاب چي خدای ج ودوی ته وعظ په هغه کوي، او یا مراد له ذکر څخه وعظ دی، او یا مراد هغه ذکر دی چي کفارو د قریشو دمخه تر نبوت د علیه الصلوة والسلام تمنی کوله، کریمه: لو ان عندنا ذکرًا من الاولین لکنا عباد الله المخلصین: ترجمه که وای زموږ په نیز ذکر یعني کتاب د اولو امتو لکه یهود او نصاری یعني مثل د هغو، او رئیس المفسرین عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما یې داسي تفسیر کړی دی بما هو ذکرهم ای بما فیه فخرهم (ای قریش) وشرفهم لان القرآن نزل بلسانهم العربیة والمنزل علیه یعني رسول الله ﷺ من قومهم ولا شرف اعظم من هذا الشرف، کریمه: لقد انزلنا الیکم کتابًا فیه ذکرکم (ای شرفکم الی یوم القیامة) کریمه: وانه (ای القرآن) لذکر لک ولقومک، وذالک ان القرآن نزل بلغة قریش وجعل الله الناس تبعًا لقریش کما جاء في الحدیث الصحیح.

(فهم عن ذکرهم معرضون) او دوی د خپل شرف څخه مخ اړوي یعني ددې شرف شکر نه وایي والا لآمنوا جمیعًا.

اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَّهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۷۲﴾

عطف علی قوله ام به جنة.

**پوهه:** چي ام منقطعه دی، نو په معنی د بل توبیخ دی د قریشو او معنی د همزه انکار دی، یعني ته سوال نه کوې ددوی څخه پر وعظ او تبلیغ ودوی ته د مزدورۍ او اجرت نو له دې سببه که تا مزد زړي غوښتلای دوی به ویلای چي ستا اجرت پر موږ درونډ دی نو ځکه موږ ایمان نه راوړو، کریمة: فهم من مغرم مثقلون (فخراج ربک خیر) ای ثوابه تعالی الذي یعطیک علی التبلیغ في الآخرة خیر.

**فائده**: اضافت د خراج چې پې ربک ته وکړی تنبه ده پر کثرت کما وکيفا لان خراج العظيم عظيم کثير.

**فائده**: دا جمله يعني فخراج آه علت ده د نفي د سوال اجرة عنهم الذي هو معنى د همزة الاستفهام الانكاري الذي تضمنه كلمة ام (خير) يعني بهتره ده د دوی تر عطاء او خراج، ولي چې د خدای ﷻ اجرت دائم او فراخه دی کما مر آنفا، نو د خدای ﷻ په ثواب سره ته د دوی و خراج ته ضرورت نه لري.

(وهو خير الرازقين) او خدای ﷻ خير د رازقانو دی، عطف على قوله فخراج ربک.

**سوال**: رازق خو يوازي خدای ﷻ دی فما معنى جمع الرازقين؟

**ځواب**: د رزاق څخه مراد په عموم مجاز سره يعني نفس المعطي عام دی که رازق مجازوي او که حقيقي. يقال فلان يرزق عياله وايضا يقال رزق فلان في زمتي الى غير ذالک من امثال الرزق المجازي.

وَإِنَّكَ لَتَدْعُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٧٣﴾

او په تحقيق ته رابولې دوی و هغې لارې ته يعني التوحيد والاسلام چې هغه سمه برابره لار ده چې عقول سليمه چې عناد او تکبر نه لري د هغې لارې په استقامت شاهدي ورکوي.

**پوهه**: چې علامه زمخشري رح او امام مظهري رح په شريکه توګه داسي ويلي دي او روح المعاني د زمخشري د کلام تاکيد کړی دی وحاصل عباراتهم المختلفة دادی چې خدای ﷻ اول بيان کړه چې هغه اسباب د انکار د قريشو د نبوت څخه د عليه الصلوة والسلام د هغه اسباب خو نسته البته په قريشو کي كراهة الحق، تکبر او عناد او ناپوهي سبب د عدم تسليم د نبوت د عليه الصلوة والسلام موجود ؤ او دی. وروسته خدای پاک باعث د ايمان راوړلو بيان کړی وهو كون المدعو اليه يعني التوحيد صراط المستقيم ده چې مرغوبه ده تولـه اهل عقل سليم من العناد والتكبر، او بل باعث دادی چې نزول د قرآن په ژبه د دوی شرف د دوی دی او داعي د اسلام ته قريش دي بالخصوص. فظهر ان انكارهم لم يكن الا لكراهة الحق عندهم عنادا وقلة فهمهم وخفة عقولهم وعدم التدبر في احواله عليه الصلوة والسلام واحوال النازل عليه من القرآن انتهى محصل عباراتهم.

وَإِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ عَنِ الصِّرَاطِ لَنَاكِبُونَ ﴿۷۴﴾

او په تحقيق هغه كسان چې ايمان نه لري پر ورځ د آخرت يعني بعث بعد الموت د لارې څخه يعني مستقيم هر آئينه مائلين دي بسوء استعدادهم فيكرهون الحق بعد ظهوره حبا للدين آبائهم.

وَلَوْ رَحِمْنَاهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِم مِّن ضُرٍّ لَّلَجُّوا فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿۷۵﴾

او كه رحم وكړم پر دوى او لېرې كړم له دوى څخه هغه ضرر او عذاب چې پكښې واقع وه، بعض مفسرين وايي چې مراد له ضرر څخه هغه قحط او لوږه وه چې پر دوى مسلط سوه په سبب د ښېرا د عليه الصلوة والسلام (رب اعني عليهم بسبع كسبع يوسف) او ابن عباس رضي الله عنه وايي چې ضر مسلط پر دوى قتل د اشرافو د دوى په شمول د فرعون الامة ابو جهل په بدر كې.

**بوه سه**: چې لجاج دوام وركول دي وعناد ته او تمادي وركول دي و هغه فعل ته چې دوى په څنډې زجر كېدل (في طغيانهم) په سر كښي كې يعني په استكبار كې د قبول څخه د حق او تر حد تجاوز په كفر كې او په عداوت كې د عليه الصلوة والسلام (يعمهون) دا جمله حال ده له فاعل څخه د لجوا.

**بوه سه**: چې عمه په بصيرت او عقل كې لكه عمي په بصر او سترګو كې يعني لكه ړوند د بصر چې لار نه ويني ړوند د بصيرت هم حق لار نه ويني بلكې ړوند د سترګو بهتر حالاً دى تر ړانده د بصيرت، ولې د سترګو ړوند كه بل سړى تر لكړه ونسي چټك پسې روان وي. او د بصيرت ړوند لكه كفار د قريشو كه څه هم آنحضرت ﷺ و صراط مستقيم ته راوبلل دوى تر شا تيالى، وهلې د عصاكش پر لار نه تله اعاذنا الله من العمي والعمه.

**سوال**: د بدر ضرر چې و كفارو ته د مكې ورسېدى، نو د هغه كشف به څرنګه وسي؟

**ځواب**: كشف يې دادى چې عليه الصلوة والسلام وروسته تر او ويا كسه مقتولينو امر وكړى چې نور قتل بند كړئ په سبب لاسونه پورې كړئ نو هغه باقي مانده اشراف له قتله خلاص سوه، او روح المعاني وايي چې كشف د ضر د بدر دادى چې كه فرضاً عليه الصلوة والسلام خداى ﷻ ته زارئ وكړي او د دوى اشراف وروسته تر قتل راژوندي هم كړي للجوا الخ.

**پوښتنه**: دغه ښېرا د علیه الصلوة والسلام په قحط د سبع سنین سبب یې څه وو چي د ونده درد و علیه الصلوة والسلام ته ورغلی؟

**ځواب**: ابو حیان وایي چي سبب د دې ښېرا د علیه الصلوة والسلام دا دی لکه ابن عباس رض او ابن جریج رح چي ذکر کړی دی چي علیه الصلوة والسلام په حرم محترم کي د څاښت په وخت کي پر لمانځه ولاړ وٗ او هورې یعني د باندي تر مسجد یو چا اوښه حلاله کړې وه، نو ابو جهل د قصابی خلګو ته وویل چي څوک به د دغه د اوښي لړی سره د خوشیو او پېروان د اوښي ورواخلي او محمد (ﷺ) ته مهلت ورکړي چي دی پر سجده پرېوځي دا لړی او پېروان په مغزي کي ورکښېږدي فقام اشقاهم یعني عقبه بن ابی محیط او ولید بن مغیره او غیرهما فاخذ النجاسات المذکورة فطرحه بین منکبی رسول الله ﷺ ساجداً، په یوه روایت کي راغلي دي چي فاطمه رض چي په دغه وخت کي کوچنۍ وه راغله هغه نجاسات یې د خپل پلار د ورېو څخه وغورځول وجعلت تسب القریش الذین هنالک، راوي وایي چي په هغه وخت کي دا نجاسات د علیه الصلوة والسلام په مغزي هغه اشقی القوم وغورځول، نو د قصابی سره ناست کافران به له ډېري خندا څخه یو پر بل غورځارېدل، نو څه وخت چي علیه الصلوة والسلام سر مبارک راپورته کړی هغه ښېرا یې وکړه اللهم اعني علیهم بسبع کسبع یوسف آه، نو خدای ﷻ باران نه بند کړه، نو کفار مکه به مردار شیان خوړل او وړی به یې په وینو کي ووهلې چي علهز یې په عربي بولي په اوبو که به یې وه ایشول هغه به یې څېښلې الی غیر ذالک.

**سوال**: په مکه کي خو د کښت مځکه نه وه خشک سالي دوی ته ولي تاوان وررساوه؟

**ځواب**: دا خشک سالي عامه سوه اطرافو ته د مکې یې هم تجاوز وکړی، نو هغه کسان چي مکې ته یې خوارکي مواد واردول هغو خپل دغه تجارت بند کړی، ولي چي په لارو کي به اوبه نه وې چي دوی د تندي په وخت کي د هغو اوبو څخه استفاده کړې وای، راوي وایي چي ابو سفیان و علیه الصلوة والسلام ته راغلی چي ته خلګ په صلة الرحم سره امر کوې او ستا قوم له قحط سره لاس او ګرېوان دی ته خواست وکړه که دا قحط پورته سو موږ به ایمان راوړو، علیه الصلوة والسلام په امید د ایمان د قریشو دعاء وکړه قحط دفع سو لکن قریشو ایمان نه

راوړي. کریمه: انا کاشفوا العذاب قليلاً انهم عائدون الى اخير الآية.

او روح البيان او روح المعاني شان نزول د آيت داسي بيان کړی دی چي دا آيت د جوع د اهل مکه په سبب د منع د ثمامة بن اثال چي د بني حنيفه له قوم څخه وه چي هغه تجار منع کړه د وارد ولو څخه د خوارکي موادو اهل مکه ته، وقصته چي عليه الصلوة والسلام چي په مدينه منوره کي ؤ يوه کوچنۍ ډله چي په عربي يې سريه بولي په مشرۍ د محمد بن مسلمة رض و بني بکر بن کلاب ته استولې وه چي هغې سريه ثمامه بن اثال بندي راوستلی ؤ. عليه الصلوة والسلام وويل چي ثمامه په يوه ستنه پوري وتړئ، عليه الصلوة والسلام چي له کوره راووتی ثمامه ته يې وويل ما عندک يا ثمامه؟ ثمامة وويل ان تقتلني تقتل ذا دم (که تا مه مړ کړې زه وينو والا يم يعني زما قوم زما د قتل کسات کاږي) وان تمنن تمنن على شاکر (او که ته احسان وکړې يعني ما مفت خوشي کړې زه شاکر يم يعني ستا د احسان عوض به په شکر سره درکړم) وان کنت تبتغي مالاً فقل اعطک مالاً (او که نقود غواړې وايه چي زه يې درکوم) او کما قال رسول الله ﷺ، نو عليه الصلوة والسلام نور څه ورته ونه ويل، نو دابله ورځ بيا عليه الصلوة والسلام دا غه د مخه خبره ثمامه ته تکرار وکړه، ثمامه هم هغه مذکوره قبلاً جواب ورکړی، بيا عليه الصلوة والسلام څه نه ورته وويل، دريمه ورځ بيا دو طرفه خبري سره تکرار سوې، څلورمه ورځ عليه الصلوة والسلام و اصحابو ته وويل اطلقوا ثمامه يعني مفت يې خوشي کړئ، ثمامه چي يې خوشي کړی نو دی نژدې يو باغ ته د خورما ولاړی چي هورې اوبه وې، نو غسل يې وکړی راغلی کلمه يې وويل (لا اله الا الله محمد رسول الله) مسلمان سو بيا د عمرې په قصد مکې ته ولاړی بطن مکه ته چي ورغلی تاريخ وايي چي ثمامه اول سړی ؤ چي مکې ته په نيت د عمرې بيله اجازې د اهل مکې ورغلی. د بني حنيفه ؤ يو شاعر وايي:

ومنا الذي لبي بمكة معلنا ........ بزعم ابى سفيان في الاشهر الحرم

قريشو دی ونيوی چي تا ډېره دلاوري وکړه پر موږ يعني چي زموږ بې اجازې عمرې ته راغلې او موږ خبر يو چي قد صبوت يا ثمامه يعني ته مرتد سوې دين د آباؤ دې پرې ايښی دی، ثمامه ورته وويل اسلمت واتبعت خير دين دين محمد ﷺ.

او ثمامه و اهل مکه ته وویل: والله لا یصل الیکم حبة من الیمامة حتی یاذن فیها رسول الله ﷺ او اکثره خوراکي مواد و اهل مکه ته د یمامه د لاري راتله، بیا ثمامه و یمامه ته ورغلی او دوی یې منع کړه چي مکې ته به خوراکي مواد نه صادروي حتی چي د یمامه خوراکي مواد منع سوه اهل مکه ډېر د لوږې سره لاس و ګرېوان سوه حتی چي قریشو به العلهز خوړی کما مر تفسیره عن قریب، نو قریشو و علیه الصلوة والسلام ته خط نوشته کړی چي تا دا نه وه ویلي چي زه رحمت للعالمین مبعوث یم فقد قتلت الاباء بالسیف یعني في بدر و الابناء بالجوع وانک تامر بصلة الرحم وانت قطعت ارحامنا؟ فکتب علیه الصلوة والسلام الی ثمامه ؓ خل بین قومي وبین مریتهم (یعني خوراکي مواد چي د یمامه څخه یې صادروي فنعل ثمامه ؓ ذالک) وفي روایة ان ابا سفیان جائه الی المدینة فقال الست آه.

**درویش وایي**: چي د دغو دوو روایتو تر منځ منافات نسته، وجه الجمع ان قریش بعثوا بالمکتوب مع ابی سفیان وکان هذه الواقعة قبل فتح مکة بقلیل من الزمان.

**پوښتنه**: سورة المؤمنین کما مر مکیة و واقعة ایمان ثمامه بن اثال ؓ خو په مدینه کي ؤ، نو روح البیان او روح المعاني دا واقعه د ثمامه ؓ څرنګه شان نزول د دې سورت بللې ده؟

**ځواب**: احتمال سته چي دا آیت دې دوه واره نازل سوی وي اولاً في مکة کما مر ان رسول الله ﷺ د علی علیهم (یعني و اهل مکه ته یې ښېرا وکړه اللهم اعني علیهم بسبع کسبع یوسف الخ) ومرة ثانیة في المدینة عند واقعة ثمامة بن اثال ؓ کما قالوا في سورة الفاتحة انها نزلت اولاً بمکة ثم نزلت بالمدینة عند تحویل القبلة نحو الکعبة، او بل ځواب دا دی چي عنقریب قصه د ثمامه ؓ و فتح ته د مکې واقع سوه، نو ګویا قصه د یمامه هم مکي ده فافهم.

وَلَقَدْ أَخَذْنَٰهُم بِٱلْعَذَابِ فَمَا ٱسْتَكَانُوا۟ لِرَبِّهِمْ وَمَا يَتَضَرَّعُونَ ﴿٧٦﴾

ای بالله په تحقیق موږ قریش د مکې ونیول په عذاب سره یعني یوم بدر او الجوع، نو دوی رجوع و خدای ﷻ ته ونه کړه بالتوبة من الشرک بلکې پر خپل عتو او سرکښی او تمرد و عناد ثابت قدم وه.

**پوه سه**: چي استکانة خضوع او ذلت ته وایي، والتضرع اظهار الضراعة ای

الضعف و الذلة، او وزن د استکان استفعل دی مجرد یې کون دی لان الخاضع ینتقل من کون الی کون آخر کما یقال استحال ای انتقل من حال الی حال.

حَتّٰىٓ اِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيْدٍ اِذَا هُمْ فِيْهِ مُبْلِسُوْنَ ﴿٧٧﴾

تر هغه وخته پورې چې خلاصه کړه موږ پر دوی دروازه د عذاب سخت.

**پوهه:** چې د عذاب څخه مراد عذاب د لوږې دی که چېرې مراد په هغه آیت کې حتی اذا اخذنا مترفیهم آه مراد ځندي عذاب د قتل او اسر وي په بدر کې کما قاله ابن عباس رضی الله عنه لان عذاب الجوع اشد و ادوم تر قتل او اسر.

(اذا هم فیه مبلسون) ناګاه دوی نا امید وه له هر خیر څخه، حتی چې ابو سفیان تاته درغلی مدینې ته ستا عطف او مهرباني یې غوښتله کما مر في قصة ثمامه بن اثال رضی الله عنه، او که مراد له عذاب څخه فیما سبق عذاب الجوع وي کما قاله الضحاک، نو مراد په دې آیت کې له عذاب څخه عذاب القبر دی او یا قیام د قیامت او عذاب النار دی.

**سوال:** اذا فتحنا آه خو ماضي ده او عذاب النار مستقبل في یوم القیامة؟

**ځواب:** فتحنا چې ماضي په معنی د مستقبل ده لان الامر المستقبل اذا کان متحقق الوقوع کالماضي کما في قوله تعالی اذا الشمس کورت مع ان تکویر الشمس مستقبل عبر منه بالماضي.

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ۭ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿٧٨﴾

او خدای جل جلاله هغه ذات مقتدر دی چې ستاسي د نفع لپاره یې تاسي ته پیدا کړې ده سمع.

**پوهه:** چې سمع عبارت دی له یو قوت څخه په غوږو کې چې په هغه قوت سره اوریدل کیږي د اصوات او نفس اوریدلو ته هم سمع وایي، او کاهي غوږ ته سمع وایي (یعني ګوش) (والابصار) جمع د بصر ده چې جارحة ناظره ته وایي (یعني چشم) او قوة موضوعة في البصر ته هم وایي (والافئدة) جمع د فواد ده بالفارسیة (دل) په (قلیلاً ما تشکرون) کې کلمه د ما زائده ده لتاکید القلة ای شکرًا قلیلاً، تشکرون تلک النعم الجلیلة او یا قلیلاً منصوب دی علی الظرفیة ای زمانًا قلیلاً تشکرون.

**پوښتنه:** خدای پاک انسان ته نور اعضاء هم ورکړي دي، نو ددې درو تخصيص يې د څه حکمت لپاره وکړی؟

**ځواب:** أكثره منافع دينيه او دنيويه مربوط دي په دغو درو سره كما لايخفى على المتفكر.

**پوه سه:** چي شكر د نعمت ددې اعضاء ثلثه ؤ استعمال د هغو دی په طاعت کي منعم و عبوديت ته، نو شكر د سمع ان لايسمع الا لله وبالله وعن الله وحفظه عن استماع المنهيات... بيت:

گذرگاه قرآن وپند ست گوش ......... بياطل وبهتان شنيدن مكوش

وشكر البصر حفظه عن النظر الى المحرمات وان ينظر بنظر العبرة في الآيات المنصوبة في الانفس والافاق... بيت:

دو چشم ازپی صنع باری نکوست ...... زعيب برادر فرو گير و دوست

وقال الشيرازي رحمه الله:

برگ درختان سبز در نظر هوشيار .... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

وشكر القلب ساتل د زړه د خيرو ځخه د اخلاق ذميمه ؤ كالكبر والريا والعجب وحب الشهوات والحسد الى غير ذالک او قطع د تعلق د زړه په غير الله سره فلا يشهد بقلبه الا الله ولا يحب الا الله.

وَهُوَ الَّذِي ذَرَأَكُمْ فِي الْأَرْضِ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٧٩﴾

او خدای جل جلاله هغه والا قدرت دی چي تاسي يې پيدا کړي ياست په ځمکه کي او سره پاشلي يې ياست په تناسل بمرور الايام والازمنة، او خاص و خدای جل جلاله ته وروسته تر تفرق جمع کېږي يعني په ورځ د قيامت للمجازات.

وَهُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ وَلَهُ اخْتِلَافُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٨٠﴾

او خدای جل جلاله هغه ذات دی چي ژوندي کوي نطفې د ښځو په رحمو کي بعد الاطوار العديدة او بيا يې وژني بعد انقضاء الآجال.

او د خدای جل جلاله په تصرف کي دی اختلاف د شپې او د ورځي بالسواد ليلاً والضياء نهاراً وبالطول والقصر صيفاً وشتاءً.

**پوه سه:** چي په (افلا تعقلون) کي همزه د استفهام توبيخي دی او فا عطف ده پر مقدر بعد الاستفهام ای اترون تلک الاختلافات فلا تعقلون.

**فائده:** تعقلون يا منزل منزلة اللازم دی ای فلا عقل لکم لتدرکوا به آيات قدرته تعالی او يا يې مفعول محذوف دی ای لا تعقلون تلک الاختلافات لتعرفوا بها صانعها.

**پوښتنه:** په قرآن کريم کي همېشه ليل تر نهار دمخه راوړي حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** قرآن مبارک پر اصطلاح د عربو نازل دی. عرب ابتداء د مياشتو او د هفتو له شپې څخه کوي کما هو الظاهر (۲) شپه وخت د وصل دی د محب د محبوب سره او ورځ زمانه د فراق ده، ولهذا وقع معراج النبي ﷺ ليلاً (۳) شپه وخت د ارام ده د تعب څخه ورځي نو شپه نمونه د جنت ده چي په جنت کي هيڅ تعب او تکليف نشته او ورځ وخت د سرګرداني ده په امورو کي د دنيا او تعب ده نمونه د دوزخ ده، ځای د سرګرداني او عذاب دی (۴) شپه پرده الهي ده پر بر او فاجر باندي د خدای ﷻ دوستان په شپه کي په عبادت د تهجد او په عجز او نياز او په طلب د مغفرت بوخت وي، او د خدای ﷻ ګمراهان په شپه کي په طلب د زنی او غلا او واه زني الی غير ذالک مبتلا وي. ولهذا قال العلماء افضل النوافل صلوة الليل ای التهجد لکونها ابعد من الرياء واقرب الی الاجابة الی غير ذالک من حکم الليل والنهار.

**فائده:** من قوله تعالی هو الذي انشاکم الی ههنا جمله معترضه ده لپاره د بيان د نعمتو د خدای ﷻ او شکايت دی د خدای ﷻ له کافرانو څخه چي سره ددې چي دوی دغه نعمتونه د خدای ﷻ ويني بيا هم پر خپل شرک او کفر ولاړ دي.

بَلْ قَالُوا مِثْلَ مَا قَالَ الْأَوَّلُونَ ﴿٨١﴾

عطف دی پر هغه قول د خدای ﷻ بل آتيناهم بذکرهم. والمعنی ههنا چي کفار مکة مثل د ما قال الاولون يعني کفار الامم الماضية.

قَالُوا أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿٨٢﴾

وايي کفار مکه (پوه سه! چي دا جمله بدل د قالوا مثل آه يعني د کفارو د امم سابقه وو چي اهل مکه يې هم کوي داده) آيا چي موږ مړه سو او موږ وګرځو خاوري آيا بيا به موږ ژوندي کېږو لکه چي محمد (ﷺ) وايي.

**پوه سه**: چي همزه ثاني لپاره د استفهام انکاري دی یعني دوی بعث بعد الموت ډېر بعید شی وګڼه او ځندي منکر وه لکن کاشکي دوی فکر وهلی وای په ابتداء کي د خلق خپل چي ددوی جد امجد آدم علیه السلام هم خاوري وُ وروسته انسان جوړ سوا و دوی هم قبل الحیوة الدنیوة صرف نطفه وه چي جماد شی وُ خدای جل جلاله دوی احیاء ځندي پیدا کړه، کریمه: الیس ذالک بقادر ان یخلق مثلهم بلی وهو الخلاق العلیم.

**لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَآبَاؤُنَا هَٰذَا مِن قَبْلُ**

په تحقیق وعده کړل سوې ده د موږ سره (لفظ د نحن تاکید دی د ضمیر د نا تاجي عطف و آبائنا پر صحیح سي. ولي چي نحات وایي چي عطف پر مرفوع متصل که څه رفع یې په سبب د مفعول مالم یسم فاعله وي کما في مانحن فیه بیله تاکید و په ضمیر منفصل سره چي دلته نحن یا بیله فصله نه ده روا) او زموږ د پلرو یعني نیکه ګانو سره د دغه بعث بعد الموت.

**پوښتنه**: قائم د دغه قول خو کافران د مکې دي، نو دوی څرنګه نحن و آبائنا وایي سره د دې چي وعده بعث بعد الموت خو د دوی سره فقط علیه الصلوة والسلام کړې ده، او علیه الصلوة والسلام د دوی د آباء په وخت کي نه وُ؟

ځواب: معنی د آیت داده چي وعدها قوم ذکروا انهم رسل الله، د مخه زموږ تر زماني او سره د دې چي زموږ د نیکه ګانو تر دا اوسه په سلهاؤ کلو نه تېر سوي دي او هیڅ بعث بعد الموت نه دی واقع سوی.

**إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٨٣﴾**

نه ده دغه وعده د بعث بعد الموت مګر د درواغو نوشته ده د اولو خلګو چي ځانو نه به یې رسولان معرفي کول.

**فائده**: اساطیر جمع د اسطار ده، او مبرد رح وایي چي اساطیر جمع د اسطورة ده نحو احدوثة واحادیث واعجوبة واعاجیب واضحوکة واضاحیک، واستعمالها فیما یکتب کذبًا یتلهی به. ولهذا فسروه بالاکاذیب.

**درویش وایي**: چي په نامه د احمد جان یو نغریو کتاب په پښتو تصنیف کړی دی چي اکثره یې کذب بحت دی، نمونه مشت خروار، یوه خبره ده پکښي لیکلي ده چي سیدنا وسید الشهداء حمزه رضي الله عنه چي له موره پیدا کېدی نهه ګزه یې د سینې

عرض ؤ. او دده په باره کي یې لیکلي دي چي اوویا خرواره دده ګرز ؤ یعني سندان چي کفار به یې په وهل الی غیر ذالک من الاکاذیب الصرفة.

**درویش وایي:** چي هم دا سبب دی چي ملایان د پښتو کتابو څخه بد وړي که څه عین صواب وي، نو دا افراط او تفریط دی والحق بینهما.

**فائده:** جمله د لقد وعدنا الخ دلیل دی د کفارو د مکې چي انکاریې د بعث بعد الموت څخه کاوه بقولهم اءنا لمبعثون آه.

## قُل لِّمَنِ الْأَرْضُ وَمَن فِيهَا إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨٤﴾

ته ورته ووایه یا محمد (ﷺ) چي چا لره دي یعني خلقًا وملګًا مځکه او هغه مخلوق چي په مځکه کي دي من ذوی العقول والحیوانات وغیرها (نو په کلمه کي د من تغلیب دی د ذوی العقول پر نورو باندي)

**پوه سه:** چي دا جمله مستانفه ده ګویا رسول ﷺ له خدایه څخه پوښتنه وکړه چي دوی انکار د بعث بعد الموت وکړی، نو زه څه ورته ووایم؟ فقال الله تعالی: قل آه.

**پوه سه:** چي دا استفهام لپاره د تقریر دی ای حمل المخاطب علی الاقرار (ان کنتم تعلمون) ای ان کنتم من اهل العلم، نو تعلمون منزل منزلة اللازم دی او یا یې مفعول محذوف دی یعني انت کنتم تعلمون ای جواب هذا السوال.

**فائده:** په (ان کنتم تعلمون) کي بیان د غایت جهل دی ددوی چي د داسي بدهي شي پوښتنه یې څندي وکړه چي د هغه په جواب لېونیان صبیان هم پوهېږي او د انکار هیڅ لار ورته نسته او د هغه سره دوی ملزم په انکار کي د بعث بعد الموت سوه، نو ځکه دوی بلا توقف کما اخبر الله.

## سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٨٥﴾

ژر دی چي دوی به وایي چي مذکوره شیان خدای ﷻ لره دي یعني خالق یې خدای ﷻ دی مالک یې خدای ﷻ دی بلا شرکة احد في ذالک (قل) ته ورته ووایه وروسته تر اعتراف ددوی، والاستفهام للانکار والفاء عطف علی محذوف، والتقدیر اتعرفون فلا تذکرون ان من خلق الارض وما فیها قادر علی الاعادة ثانیًا فانکارکم عن البعث بعد الموت منکر جدًا.

## قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ ﴿٨٦﴾

ته ورته ووايه چي څوک خالق د اسمانو او خالق د عرش عظيم دی.

**پوه سه:** چي دا استيناف آخر دی لپاره د تلقين د الزام آخر بعد الالزام الاول يعني تلقين و عليه الصلوة والسلام ته دی.

**درويش وايي:** چي اول سوال خو په لمن الارض په لام جاره ددوی څخه سوی ؤ نو ځکه د دوی په ځواب کي لله په لام جاره راغلی په موجوده ايت کي خو لام جاره نسته، نو حق د ځواب خو دا ؤ.

## سَيَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ ۚ قُلْ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿٨٧﴾

(سيقولون لله) بدون الجارة بلکې بالرفع بايد ويل سوی وای کما في مصحف اهل البصرة، لکن نور ټوله مصاحف په لام جاره نوشته دي کالاول فما توجيه اللام الجارة في هذه الآية؟

**ځواب:** روح المعاني وايي چي ځواب بغير اللام کما هو قرائة ابو عمرو يعقوب مبني پر ظاهر د سوال لعدم اللام في السوال او قرائت باللام مبني دی پر معنی و کلا الامرين جائزان مثلاً که يو څوک بل چاته ووايي من صاحب هذه الدار؟ فقيل زيد، کان جوابًا عن لفظ السوال. ولي چي دواړه بغير اللام دي، ولو قيل لزيد کان جوابًا مبنيًا على المعنى لان السوال بمن صاحب هذه الدار ولمن هذه الدار واحد، او صاحب د روح المعاني پر دې باندي عربي محاوره په يو شعر کي شاهد راوړې ده، او مظهري هم دغه جواب ته اشاره کړې ده، او روح البيان هم په اختصار سره و هغې توجيه ته اشاره کړې ده.

(قل افلا تتقون) ته ورته ووايه چي سره دد غه اعترافه ستاسي چي خالق السموات السبع الخ خدای ﷻ دی لاغيره نو تاسي د هغه خدای ﷻ له عقابه نه بيريږئ حيث تشرکون بعض مخلوقاته معه وتنکرون قدرته على بعض مقدوراته کالبعث بعد الموت.

## قُلْ مَنْ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ

**پوه سه:** چي د ملکوت وزن فعلوت دی واو او تاء يې د مبالغي لپاره دي، نو معنی يې غاية ما يتصور من الملک والسلطان له دي سببه ملکوت خاص دی په

ملک پوري د خدای ﷻ وکذا الجبروت فعلوت مختص بکبریائه ﷻ.

وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨٨﴾

او دی دی ساتونکی او امن ورکونکی ومن یشاء ته (ولا یجار علیه) عطف علی ماسبق او نه منع کړه کېږي پر خدای ﷻ هغه څوک چي خدای ﷻ د سوء اراده ورته وکړي، او یا معنی داده لایقدر احد پر دې چي خدای ج ته دي ضرر ورسوي حتی یجار علیه یجار چي متعدي یې په علی سره کړی لتضمنه معنی النصرة.

سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ فَأَنَّىٰ تُسْحَرُونَ ﴿٨٩﴾

ژر دی چي دوی به ووایي په جواب کي د قل من بیده آه چي خدای ﷻ لره دي.

**درویش وایي**: چي وړاندي نژدې تېره سوه وجه د راوړلو د لام په نقل د روح المعاني، روح البیان او مظهري (قل فانی تسحرون) ته ورته ووایه دوی ته چي سره د اعتراف مذکوره له کومه ځایه څخه تاسي غولېدلي یاست او له حق څخه مصروف سوي یاست، او څرنګه حق باطل درته معلومېږي او جمادات د خدای ج شریک بولئ.

بَلْ أَتَيْنَاهُم بِالْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ﴿٩٠﴾

کلمه د بل لپاره د انتقال ده د الزاماتو مذکوره وو څخه او د دوی د اعترافاتو څخه و بیان ته د اصل منشاء د دوی د انکار، یعني راتګ کړی دی موږ دوی ته په حق سره چي توحید د خدای ﷻ دی او وعده د بعث بعد الموت ده او جزاء د شرک په دوږخ سره ورکول دي.

**فائده**: دا جمله عطف ده علی قوله تعالی: بل قالوا مثل ما قال الاولون، او اضراب دی د هغه څخه، او په منځ کي د معطوف او معطوف علیه جمل معترضه دي لپاره د الزام د دوی فافهم.

(وانهم لکاذبون) في انکارهم من التوحید وانکارهم عن البعث والنشور تقلیداً لآبائهم الاولین وعناداً وتکبراً عن اطاعة الرسول ﷺ.

مَا اتَّخَذَ اللَّهُ مِن وَلَدٍ

خدای ﷻ نه دی اخستی یعني د ځان لپاره من ولد (من زائد لپاره د استغراق د نفي دی) کما یقول النصاری ان عیسیٰ ابن الله والیهود ان عزیر ابن الله یا بعض

مشرکان د مکې ان الملائکة بنات الله لتقدسه تعالی عن المماثلة والمجانسة لاحد والولد لابد ان یکون مماثلاً ومجانسًا للوالد ومع ذالک لم یکن له صاحبة. دا جمله علت دی د وانهم لکاذبون یعني دروا غ خو يې دغه دي.

**وَمَا كَانَ مَعَهُۥ مِنْ إِلَٰهٍ**

او نشته سره د خدای ﷻ مشارک په معبودیت کې لا في الذات ای وجوب الوجود کما یقوله الثنویة ای المجوس ان خالق الخیرات والنور واجب الوجود اسمه یزدان وخالق الشرور والظلمات واجب الوجوب اسمه اهرمن، او نه په استحقاق د عبادت لکه وثنیه چي وايي یعني پرستان د بتانو.

**إِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍۭ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ**

(اذا) جواب لمن اشرک وجواب لشرط محذوف تقدیره لو کان معه اله اذا (لذهب آه) تګ به کړی وای هر خدای په ما خلق سره خپل یعني استقلالاً بې د خپل مخلوق تصرف کولای ومنع غیره من التصرف فیه، او غلبه به غوښتلای هر خدای پر هغه بل خدای که ددوی تر منځ مخالفت راغلی وای او جنګ ته مفضي سوي وای کما یقع بین ملوک الدنیا لامکان ذالک التمانع والاختلاف. نو په صورت کې د حرب به حتمًا یو مغلوبه کرځیدی فلا یکون المغلوب الهًا لانه امارة العجز والحدوث.

**سُبْحَٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝٩١**

پاک دی خدای ﷻ (من الولد والشریک) چي کفار توصیف د خدای ﷻ په کوي یعني خدای پاک ته يې نسبت کوي.

**پوښتنه**: د ثنویه پر مذهب چي دواړه خدایان واجب الوجود بولي خو دا برهان تمانع جاري کېږي، اما د وثنیه یعني بت پرستانو پر مذهب خو دا دلیل نه جاري کېږي. ولي دوی خو خپل بتان خالق د هیڅ شي نه بولي. واذا قیل لهم من خلقکم لیقولن الله؟

**ځواب**: د هغو ځواب د نوموړي آیت څخه نهمېږي لان العاجز من کل الوجوه لایستحق العبادة مع المعبود بالحق کما هو ظاهر للصبیان بدون البیان.

عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٩٢﴾

**پوه سه:** چې مراد د غیب والشهادة څخه نسبت و موږ ته دی، ولې چې خدای پاک ته علم د غیب والشهادة علی السواء دی.

**فائده:** قراء د اهل مدینې او د کوفې عالم په رفع سره وایي او خبر د مبتداء محذوفي یې بولي، او نور قراء یې په جر سره وایي چې صفت د لفظ الله یې بولي اویا بدل دی من لفظ الله في قوله سبحان الله.

**پوه سه:** چې دا بل دلیل دی پر امتناع د شریک خدای ته ولې علم د غیب او شهادت بالاتفاق مخصوص په خدای پورې دی ځکه وروسته یې فاء د تفریع راوړې یعني (فتعالی عما یشرکون) کلمه د ما یا مصدریه ده والمعنی تعالی الله عن اشراکهم او یا موصوله ده والعائد محذوف والتقدیر تعالی عما یشرکونه به ومعنی تعالی تعاظم.

قُلْ رَّبِّ اِمَّا تُرِيَنِّيْ مَا يُوْعَدُوْنَ ﴿٩٣﴾

ته ووایه اې ربه زما یا ته به وویني په ما هغه شی چې د کفارو سره یې وعده کړل کېږي یعني العذاب.

**پوه سه:** چې اصل د تریني تریننی ؤ فادغم النون في المیم کما هو القانون الصرفي او نون الوقایه یې حذف کړی کراهة توالي النونات ان ما وهذا شرط اکدت بما المزیدة فالمعنی ان کان لابد ان تریني (مایوعدون) چې ددوی سره یې وعده کړل کېږي یعني د کفارو سره من عذاب الدنیا والآخرة.

رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِيْ فِى الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٩٤﴾

(رب) یعني یا رب ما مه ګرځوې قرین لهم في العذاب.

**پوه سه:** چې د (قل رب) څخه تر دې ځایه پورې جمله معترضه ده تلقین د دعاء او تکرار د نداء او تصدیر د هر واحد د شرط او جزاء په نداء د یارب لزیادة العجز والتضرع.

**فائده:** خدای ﷻ چې ښوونه د دعا پر داسې وجع ابلغ و سید البشر ﷺ ته وکړه اشارة الی وجوب الخوف وهضم النفس، او اشاره و دې ته هم ده چې عذاب د ظالمانو ګاهې غیر ظالم هم په لپېټ کې نسي، کریمه: واتقوا فتنة لاتصیبن الذین ظلموا

منكم خاصة، والمراد من الدعاء اخرجني حين نزول العذاب عليهم سالمًا من بينهم.

وَإِنَّا عَلَىٰ أَن نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقَادِرُونَ ﴿٩٥﴾

او موږ پر دې باندې چې په تا ووینو هغه عذاب چې موږ وعده کړې ده د دوی سره هر آئینه قادر یو، لکن موږ عذاب د استیصال پر دوی نه نازلوو یا له دې سببه چې ته په دوی کې موجود یې، کریمه: وما کان الله لیعذبهم وانت فیهم، او یا له دې سببه چې بعض د دغو کافرانو به وروسته ایمان راوړي لکه ابو سفیان، یا په اولاد کې د هغه کافر به مؤمن پیدا سي لکه عکرمه رض بن ابی جهل اسلم عام فتح مکة.

**پوه سه:** چې په دې جمله رد دی پر دوی چې دوی به انکار کاوه له عذاب څخه یا استعجال د عذاب یې کاوه استهزاءً، کریمه: ان کان من عندک فامطر علینا بحجارة او ئتنا بعذاب الیم، قاله الولید بن المغیرة.

اِدْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ السَّيِّئَةَ ۚ

ته دفع کوه یا محمد (ﷺ) په هغه خصلت سره چې هغه احسن لخصال وي چې صفح او اعراض دی والعبر والاحسان دی (السیئة) مفعول د ادفع دی، یعني ادفع بسبب احسان منک شرهم، نو دا آیت تعلیم د صبر دی پر اذیت د دوی یعني جنګ مه ورسره کوه، نو دا آیت منسوخ دی په آیت السیف سره لا کما یقوله بعض معلوم الحال کسان چې وایي علیه الصلوة والسلام ته د توري چلولو اجازه نه وه. او بعض مفسران وایي چې له حسنه څخه کلمة التوحید مراد ده او له سیئه څخه کلمة الشرک مراد ده.

**درویش وایي:** چې له امثله وو څخه د دفع سیئه په حسنه سره یو په زړه پوري مثال دا دی چې یو سړی و بل ته و وایي چې ته خو زاني یې مثلاً، هغه بل ورته و وایي که بد ته کاذب یې خو خدای ﷻ دي تا ته بخښنه وکړي او که به ته صادق یې خدای ﷻ دي ما ته بخښنه وکړي.

نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَصِفُونَ ﴿٩٦﴾

که کلمه د ما موصوله وي، نو عائد یې محذوف دی، نو تقدیر یې داسي دی نحن اعلم بما یصفونک به من انک شاعر، او کاهن، او مجنون الی غیر ذالک، او که کلمه د ما مصدریه وي، نو یې معنا داده نحن اعلم بتوصیفهم ایاک ما الاسماء المذکورة.

وَقُلْ رَّبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ هَمَزَٰتِ ٱلشَّيَٰطِينِ ﴿٩٧﴾

او ته وایه یا محمد (ﷺ) پناه غواړم په تا سره او اعتصام کوم په تا سره.

**پوهه**: چې همز دفع د شدت سره ای من دفع الشیاطین بالاغواء والوساوس الی المعاصي.

وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن يَحْضُرُونِ ﴿٩٨﴾

او پناه غواړم په تا سره اې زما ربه چې شیطانان دې ماته حاضر سي په یوشي کي زما د کارو من الصلوة والصوم وغیر ذالک، ولي شیطانان چې حاضر سي د عبادت په وخت کي سړي ته قسم قسم وسوسې وراچوي او ذوق د عبادت له سړي څخه په تاراک وړي.

**پوهه**: چې جمله د "وقل رب آه" عطف ده علی قوله وقل رب اما ترینی آه.

**فائده**: اجمعت الامة علی عصمت النبي ﷺ، ولي چې دده ملګري شیطان ایمان راوړی ؤ کما في البخاري، ولي چې دده زړه مبارک په هغه وخت کي چې دی نبي کېدی، د وسوسې وینه د شیطان یې دده له زړه څخه ایسته کړه سوې وه کما رواه الشیخان فامره علیه الصلوة والسلام تحذیر امته من شر الشیطان او هضمًا لنفسه المطهرة علیه الصلوة والسلام والتحیة.

حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَهُمُ ٱلْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ٱرْجِعُونِ ﴿٩٩﴾

هغه وخت چې راسي و یوه ته ددې کافرانو مرګ یا سکرات الموت وایي به اې زما ربه ما و دنیا ته بیرته واستوه چې زه ایمان راوړم او عمل صالح وکړم

**پوهه**: چې حتی ابتدائي ده متعلق بقوله یصفون او بقوله کاذبون (قال) نو دی ووایي چې دی ووینې ځای خپل په جنت کي که دی مسلمان وای او ځای خپل یې په اور کي او دا ورته وویل سي چې هغه د جنت ځای دی په دغه ځای د اور بدل کړی (رب ارجعون) مقوله د قال ده یعني ما بیرته راجع کړه و دنیا ته چې زه ایمان راوړم او د اور ځای په جنت بدل کړم.

**پوهه**: چې جمعیت ارجعون سره ددې چې خطاب د خدای ﷻ کما یدل علیه رب لپاره د تعظیم ده، او بعض مفسرین وایي چې صیغه د جمع لپاره د تکریر د فعل ده اصله ارجعني ارجعني کما قیل.

لَعَلِّيٓ اَعۡمَلُ صَالِحًا فِيۡمَا تَرَكۡتُ كَلَّاۗ

شايد زه به عمل صالح وكړم (صالحًا منصوب على المفعولية) في ما تركت: يعني في الايمان الذي تركته في الحيوة الاولى. ومراده چي اولاً به ايمان راوړم وروسته به اعمال صالحه د ايمان وكړم. په حديث شريف كي راغلي دي ابن جرير له ابن جريج څخه روايت كوي چي حضور اكرم ﷺ وويل چي مؤمن چي ملائكة الموت ووينى ملكي ورته وايي چي نرجعك الى الدنيا، دى ورته وايي الى دار الهموم والاحزان بل قدومًا الى الله. واما الكافر فيقول رب ارجعون الخ. (كلا) منع د طلب د رجعت و دنيا و استبعاد اى لا رجعة.

اِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَاۗ

(انها) يعني دا قول دده چي رب ارجعون آه تانيث يې په اعتبار د خبر دى كما تقرر في النحو اذا دار الضمير بين المرجع والخبر يعني يو مذكر وي بل مؤنث لكه دلته چي مرجع مذكر دى وهو القول او خبر يې مؤنث دى فرعاية الخبر اولى لانه محط الفائدة.

**بوه سه:** چي مراد له (كلمة) څخه دلته كلمه نحويه نه ده اى لفظ وضع لمعنى مفردٍ كما في الكافية وغيرها لانها عرف مستحدث للنحاة بل المراد الكلمة اللغوية فان الكلمة في اللغة طائفة من الكلام المنتظم بعضها الى بعض فهو بهذا المعنى لايقع الا على الجملة المركبة المفيدة (هو قائلها) چي كافر ويونكى دى د دغي كلمي لتسلط الحسرة والندامة عليه ومخافة العذاب.

وَمِنۡ وَّرَآئِهِمۡ بَرۡزَخٌ اِلٰى يَوۡمِ يُبۡعَثُوۡنَ ﴿۱۰۰﴾

(ومن ورائهم) او په مخ كي د دوي د كافرانو (برزخ) مجاهد رح وايي چي حجاب بينهم وبين الرجعة. او دا جمله عطف ده پر مضمون د كلا اى لايكون مايطلبون من الرجعة ومن ورائهم برزخ فافهم (الى يوم يبعثون) يعني دا حجاب ممتد دى تر هغه ورځي پوري چي انسانان بعث كبرى، قتاده رح وايي چي برزخ بقية عمر الدنيا فانه لارجوع الى الحيوة مالم ينته عمر الدنيا. او ضحاك رح وايي چي برزخ مابين الموت الى البعث او بعض مفسرين وايي چي برزخ قبر دى وهو فيه الى يوم يبعثون.

**درویش وایي:** چي تفسیر د قیل لیس بشئ لان القبر لبعض الناس، ولي هندوان د لوبي وچي د مځکي خپل مړي په اور سوځي، او بعض انسانان ماهیان خوري چي کښتئ غرقه سي، او بعض انسانان لیویان او حیوانات وخوري. فالتفسیر ان الاولان هما المقبولان فافهم.

**فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ فَلَا أَنسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَلَا يَتَسَاءَلُونَ ﴿١٠١﴾**

یعني چي قیامت سي په قرن کي پوه کړل سي یعني اسرافیل پکښي پوه کړي.

**درویش وایي:** چي سعید بن جبیر له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي مراد نفخة اولی ده چي د نفخة الصعق په نامه یادیږي، لکن روح البیان وایي چي دا نفخه د عندها البعث والنشور، او مظهري وایي والصحیح چي دا نفخه د بعث او نشور ده، وهو المروي عن ابن مسعود رضي الله عنه وقال صاحب روح المعاني وهي النفخة الثانیة التي یقع عندها البعث والنشور.

نو نسبونه نسته په منځ کي ددوی، ولي یو و بل ته د فائدې طمع قطع سي. والمعنی لایتفاخرون بینهم بالانساب کما یتفاخرون بها في الدنیا، او یا معنی داده چي انساب نفع نه ورته کوي، ولي چي دهشت او حیرت دومره پر سري غالب سي کما قال الله تعالی یوم یفر المرء من اخیه وامه وابیه وصاحبته وبنیه لکل امرء شان یغنیه.

**فائده:** ضمیر د بینهم راجع دی و کفارو ته لذکرهم فیما سبق.

**سوال:** نفي د انسابو څرنګه صحیح دی مثلاً کافر زوی او پلار نسب خو یې باقي دی؟

**څواب:** بقاء د نسب چي فائده نه کوي کالعدم ده۔۔۔ ع:

په قیامت نسته داسي پوښتنه ........ چي د چا زوی یې د کوم وطنه.

**پوښتنه:** په بل ځای کي د قرآن کریم راغلي دي: واقبل بعضهم علی بعض یتسائلون؟

**څواب:** د قیامت ورځ ذو احوال ده یو وخت دوی د دهشت په دریاب کي غرق وي فلا یتسائلون وفي موطن په هوش کي راسئ او حیرت او دهشت کم سي فیتسائلون.

**فائده:** موږ د مخه وویل چي ضمیر د بینهم و کافرانو ته راجع دی. ددې تفسیر فائده څه ده؟

**خواب**: د مؤمنانو حال دغسي نه دی، لما روی ابن ابی الدنیا عن عبد الله بن عمرو اللیثی رض قال قال رسول الله ﷺ اذا کان یوم القیامة خرج ولدان المسلمین بایدیهم الشراب. نو خلک ودوی ته وواییي چي مور ته اوبه راکړئ! دوی ورته وواییي ابوینا ابوینا یعني مور د خپل مور او پلار په طلب کي یو چي اوبه ورکړو حتی السقط بباب الجنة یقول لا ادخل الجنة حتی یدخل ابوي (سقط د کم عمر ولد ته وایي چي مړ پیدا سي)

**پوښتنه**: په صحیح حدیث کي چي روایت یې ابن عساکر د ابن عمر رض په صحیح سند سره کړی دی کل نسب وصهر ینقطع الا نسبي وصهري، له دې حدیث څخه خو دا معلومېږي چي د عمومي مؤمنانو نسب فائده نه لري بلکې دا فائده مخصوصه په نسب پوري د علیه الصلوة والسلام ده نظر و مؤمنانو ته د اقرباؤ د علیه الصلوة والسلام؟

**خواب**: نسبه د ټولو مؤمنانو داخل دي په نسب کي د علیه الصلوة والسلام وازواجه امهاتهم (ای المؤمنین) اذا کانت ازواجه المطهرات امهات المؤمنین فهو علیه الصلوة والسلام ابوهم الرحیم فافهم.

فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿۱۰۲﴾

**پوهه**: چي موازین یا جمع د موزون ده، یعني د چا چي دېر سي او راجح سي موزونات ده یعني اعمال صالحه من عقائد واعماله الصالحة الموزونة (چي تلل کېږي) یا جمع د میزان ده (ترازو یعني پله د حسناتو پر پله د سیئاتو).

**سوال**: پر دې تقدیر یې موازین جمع ولي راوړه ترازو به یو وي؟

**خواب**: بعض علماء وایي چي د هر انسان جلا ترازو دی، او بعض علماء وایي چي تعدد د میزان په اعتبار د تعدد د وزن دی یعني څو واره به له سره تلل کېږي، موصول سره د صلې مبتدا، خبر یې ده (فأولئک هم المفلحون) نو هم دغه کسان دي خلاصون موندونکي له عذاب څخه او سرشال په نجات دي او درلودونکي د درجاتو دي په دار الثواب کي.

**مسئله**: ټوله اهل السنة والجماعة اجماع کړې ده چي میزان او تلل د اعمالو حق دی. وانکر ذالک المعتزلة والخوارج والروافض واکثر اهل الاهواء، نو دوی په هغه

صحیح حدیث چي روایت یې بیهقي په باب البعث کي له عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روایت کړی دی په هغه حدیث طویل د جبرئیل علیه السلام چي د علیه الصلوة والسلام څخه یې پوښتني کولې چي یوه په هغو کي داوه، قال ما الایمان یا محمد ﷺ؟ قال علیه السلام الایمان ان تؤمن بالله (بالوجود والتوحید) وملائکته (چي عباد مکرمون دي ولیست بنات الله تعالی) ورسله (چي ټوله رسولان چي رسالت یې په معجزاتو ثابت وي حق دي) وتؤمن بالجنة والنار والمیزان (چي جنت، دوزخ او ترازو سته) وتؤمن بالبعث بعد الموت، وتؤمن بالقدر خیره وشره من الله تعالی .. بیت:

ټوله اندازه د خیر و شر بوله د خدایه څخه
کله پیښیږي نیک و بد د خپلي رایي څخه

قال جبرئیل علیه السلام فاذا فعلت ذالک فانا مؤمن؟ قال نعم، قال صدقت.

**فائده:** صاحب المیزان جبرئیل علیه السلام دی.

**پوه سه:** چي احادیث مبارکه په باره کي د میزان متواترة المعنی دي.

**پوښتنه:** اعمال حسنه او سیئه خو اعراض دي، نو څرنګه تلل کیږي؟

**ځواب:** بعض علماء وایي چي صحیفې د اعمال حسنه او سیئه سره تلل کیږي، او بعض وایي هر عمل حسن او سیئ لره خدای پاک جسد ورکوي هغه اجساد سره تلل کیږي، والله اعلم.

**فائده:** کافر لره وزن نسته، ولي د کفره سره حسناتو لره دده لکه صلة الاقارب او اطعام الطعام للاضیاف وغیر ذالک اعتبار نسته، کریمه: فلا نقیم لهم یوم القیامة وزنا.

**فائده:** کلمه طیبه د هر چا نه تلل کیږي یعني اشهد الا اله الا الله واشهد ان محمداً عبده ورسوله، بدلیل حدیث حدیث ابن عباس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ والذي نفسي بیده (الواو للقسم) لو جیئ بالسموات والارض وما فیهن وما بینهن وما تحتهن ووضعت في کفة من المیزان ووضعت شهادة ان لا اله الا الله الی اخیره في الکفة الاخری لرجحت (غالبه به سي پله د کلمه شهادت پر هغه اسمانو او مځکو باندي، رواه الطبراني.

**درویش وایي:** چي ما وویل چي د هر چا کلمه شهادت نه تلل کیږي، له دې کبله

چې بعض مؤمنانو ته چې خدای پاک اراده د مغفرت وکړي نو کلمه شهادت ورو تلي، بدلیل حدیث ابن عمر رضي الله عنه الذي رواه الترمذي وابن ماجه وابن حبان والحاکم رحمهم الله ابن عمر رضي الله عنه قال رسول الله ﷺ یو سړی به راوستل سي زما د امت څخه په حضور د حاضرینو یوم القیامة، نو ده ته خلاص کړل سي نهه نیوي (۹۹) اوږده اوږده خطونه چې د سجلات په نامه یادیږي او هر سجل دومره اوږد دی لکه سترګي چې دید کوي. خدای پاک ووایي چې ته ددې سجلاتو څخه له یوه څخه منکر یې؟ آیا کرام کاتبون پر تا ظلم کړی دی یعني زائد ګنهونه یې په تا پسې نوشته کړي دي؟ فیقول لا یارب. نو خدای ﷻ ورته ووایي چې تا لره زما په نیز یوه حسنه سته وانه لاظلم الیوم فیخرج له بطاقة یعني رقعةٌ صغیرةٌ فیها اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً عبده ورسوله، او ده ته ووایي چې ورسه په میزان کي یې سره وتله، نو هغه بنده مؤمن ورته ووایي یارب ما هذه البطاقة مع هذه السجلات. خدای پاک ورته ووایي انک لاتظلم، نو هغه مؤمن هم ورسي سجلات تو له په یوه پله کي کښیږدي او بطاقه په بله پله کي، نو هغه سجلات په هواء وي او د بطاقه پله پر مځکه پرته وي، قال العلماء: به بها نمی بخشد و ببهانه می بخشد.

او ابن عبد الرزاق په فضیلت کي د علم داسي وایي په روایت د ابراهیم النخعي رحمه الله چې د یو سړي د حسناتو کاغذ به راوړل سي په یوه پله کي د میزان به کښېښول سي او د سیئاتو دا به په بله پله کي حسنات یې ډېر سپک وي، وروسته په شکل د سپیني وریځي یو شی په پله کي د حسناتو ور ولوېږي، نو یې د حسناتو پله درنه سي، نو دې سړي ته وویل سي ما تدري ما هذا؟ فیقول لا! فیقول هذا فضل العلم الذي کنت تعلم الناس. او امام ذهبي رحمه الله په فضل کي د علم په روایت د عمران بن حصین رضي الله عنه وایي قال قال رسول الله ﷺ یوزن یوم القیامة مداد العلماء (یعني هغه سیاهي چې دوی خط په کاږي د وینو سره د شهداؤ) فیترجح مداد العلماء عن دماء الشهداء.

**درویش وایي:** چې زما په عقیده به دا حال د هغو علماؤ وي چې لله في اللهي تعلیم وي او لله في اللهي تصانیف وي، اللهم اجعلني منهم بجاه نبیک الکریم ﷺ وبحرمة اصحابه الکرام المهاجرین والانصار رضي الله عنهم... بیت:

چون فرو آید بلا بی دافعی ...... جز تضرع نبود دیگر دافعی
قال العلماء لکل شيئ آفة وللعلم آفات.

# وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ

ای خفت اعماله الحسنة او کفة حسناته بحیث لایکون له ثقل اصلاً وهو الکافر لامحالة کما یدل علیه مابعده من الآیة، بزار او بیهقي رح د انس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی عن النبي ﷺ قال یؤتی ابن آدم یوم القیامة فیوقف بین کفتی المیزان ویوکل به ملک فان ثقلت موازینه نادی الملک بصوت یسمع الخلائق سعد فلان فلا یشقی بعده ابداً.

**درویش وایي:** وهو المؤمن الکامل وان خفت موازینه نادی الملک بصوت یسمع الخلائق شقي فلان فلا یسعد بعده ابداً.

**درویش وایي:** چي مراد له خفت څخه په دې حدیث کي هغه خفت دی چي هیڅ ثقل نه لري وهو الفاجر الکامل یعني الکافر.

**پوښتنه:** د مؤمن کامل او د فاجر ای الکافر حال خو معلوم سو، لکن د عصات المؤمنین حال خو نسو معلوم فما حاله؟

**ځواب:** د عصات المؤمنین اعمال دوه واره تلل کېږي که یې په حسناتو کي یو نوع خفت ؤ او یو چا یې شفاعت وکړی گنهونه ورو بخښل سول او یا شفاعت یې ونه کړل سو دوږخ ته واستول سو او گنهونه یې په اور توی سو او له گناه څخه پاک سو پر دواره تقدیره هغه ملک نعره کوي سعد فلان سعادةً لایشقی بعده ابداً فتدبر.

# فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ فِي جَهَنَّمَ خَالِدُونَ ﴿١٠٣﴾

دا هغه کسان دي چي په کامل توان یې خپل ځانونه په خسران کي اچولي وه (یعني په دنیا کي بالکفر والمعاصي) چي په دوږخ کي ابد الآباد به پاته وي.

**پوه سه:** چي کلمه د من موصوله متضمن معنی لره د شرط ده او فاؤلئک آه یې خبر قائم مقام د جزاء دی.

**پوه سه:** چي في جهنم یا خبر د مبتداء محذوف دی تقدیره وهم في جهنم خالدون، یا بدل دی د خسروا څخه چي صله د الذین وه، او یا خبر ثاني د اولئک آه دی.

تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ ﴿١٠٤﴾

ورسوځي مخان ددوی اور د دوږخ ددې معنی داده چي مؤمن عاصي که څه هم دوږخ ته واچول سي لکن مخ يې اور نه ورسوځي په دليل د هغه حديث چي مسلم يې روايت کړی دی له جابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه قال قال رسول الله ﷺ يدخل قوم النار من هذه الامة فتحرقهم الا داراة وجوههم (يعني شاوخوا د مخ) ثم يخرجون منها.

**پوه سه**: چي جمله (وهم فيها كالحون) حال ده له ضمير مجرور څخه د وجوههم. والمعنی په داسي حال چي دوی په نار کي شنډان به يې له غاښو څخه لېري وي لکه د پسه سر چي په اور له وېښتانو څخه پاک کړي.

**درويش وايي**: چي روح المعاني، روح البيان او مظهري يو حديث د ترمذي چي ده د صحيح حکم هم پر کړی دی په روايت د ابی سعيد الخدري رضي الله عنه راوړی دی چي عليه الصلوة والسلام په تفسير کي ددې آيت وهم فيها كالحون وويل چي د کافر سر اور وروسوځي حتی چي لوړه شونډه يې وسط الراس ته ورسېږي او کښته شونډه يې له نامه (نو) څخه منبلي.

أَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فَكُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴿١٠٥﴾

آيا نه وه (استفهام د توبيخ لپاره دی او دوی ته سبب ددې عذاب چي دوی ورسره لاس وګريبان دي بيانول دی. والتقدير يقال لهم من جانب خزنة جهنم الم تكن) زما آيتونه يعني په قرآن کريم کي چي تلاوت به يې کېدی پر تاسي او تاسي به يې تکذيب کاوه يعني دروغ به مو بلله يعني ددې عذاب سبب ستاسي تکذيب د آيات القرآن دی.

قَالُوا رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَالِّينَ ﴿١٠٦﴾

دوی ووايي په ځواب کي د الم تکن، يا رب غلبه وکړه پر موږ زموږ شقاوت او بدبختي حتی حال زموږ د سوء العاقبة سره مخامخ سو.

رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظَالِمُونَ ﴿١٠٧﴾

اې زموږ ربه ته موږ وباسه له اور څخه يعني و دنيا ته، نو که موږ بيا عود وکړی وتکذيب ته، نو په حق چي موږ ظالمان يو يعني پر خپلو ځانو، بيا مو نو له

عذاب څخه د اور مه باسه. قال یعني خدای پاک ورته ووایي یعني په ذریعه د خزنة النار په خواب کي د سوال د دوی.

## قَالَ اخۡسَـُٔوۡا فِیۡهَا وَ لَا تُكَلِّمُوۡنِ ﴿۱۰۸﴾

یعني پټه خوله سئ، د سپکاوي پر ډول چي دا ځای د سوال نه دی دا ځای د مکافات او جزاء دی.

**بوه سه:** چي اصلاً دا کلمه ماخوذ ده له خساء الکلب څخه (یعني چغه کړی سپی) کما في القاموس، او دا قول صاحب قاموس لازمي هم راوړی خساء الکلب برفع الکلب چغه سو سپی، او متعدي هم خسئا الکلب بنصب الکلب چغه یې کړی سپی (ولا تکلمون) او خبري مه کوئ زما سره په دفع کي د عذاب، ولي چي زه ستاسي څخه عذاب نه پورته کوم، نو په دې وخت کي د دوی د امید تناؤ وشکیږي، قال الحسن رح هذا اخیر الکلام یتکلم به اهل النار ثم لایتکلمون بعدها الا الشهیق والزفیر او لکه سپی غاپي او انګولي کذا قال القرطبي.

## اِنَّهٗ كَانَ فَرِیۡقٌ مِّنۡ عِبَادِیۡ

په تحقیق شان دا ؤ یعني په دنیا کي چي وه به یوه ډله زما د بندګانو یعني المؤمنین.

## یَقُوۡلُوۡنَ رَبَّنَاۤ اٰمَنَّا فَاغۡفِرۡ لَنَا وَ ارۡحَمۡنَا وَ اَنۡتَ خَیۡرُ الرّٰحِمِیۡنَ ﴿۱۰۹﴾

دوی به ویل اې زموږ ربه موږ ایمان راوړی دی موږ ته بخښنه وکړه یعني زموږ د ګنهو او پر موږ رحم وکړه او ته یعني یا الله خیر او بهترین د مهربانانو یې، پښتانه وایي: اې ترمور او پلار مهربانه خدایه پر ما رحم وکړه.

## فَاتَّخَذۡتُمُوۡهُمۡ سِخۡرِیًّا

نو تاسي په دوی پسخند واهه.

**بوه سه:** چي اهل مدنیه، حمزه او کسائي سخریا په ضمه د سین وایي او نور قراء یې په کسره د سین وایي.

**فائده:** کسائي او فراء وایي چي سخریه په کسره د سین استهزاء او پسخند ته په خوله وایي او په ضم السین تسخیر او مربې کړخولو ته وایي، او خلیل رح وایي

چي سخری بضم السين وسخريًا بكسر السين دوه لغتنه دي چي معنى يې يو ده چي مترادف په عربي ورته وايي. نحو بحر لجي بضم اللام وكسرها وكوكب دري بضم الدال وكسرها، وفي القاموس نحو ذالک پر هر تقدير سخريًا مصدر دی يا د نسبت پر زياته سوې ده للتاكيد والحمل مبالغة.

**فائده:** په دې آيت سره رد دی د دعا د کافرانو يعني تاسي څرنګه په ربنا غلبت آه خواست کوئ او سره ددې چي په دنيا کي پر ربنا آمنا آه مسخرې کولې او پسخند مو په واهه.

## حَتّٰٓى اَنْسَوْكُمْ ذِكْرِيْ وَكُنْتُمْ مِّنْهُمْ تَضْحَكُوْنَ ﴿١١٠﴾

کلمه د حتى ابتدائيه ده نحو مرض فلان حتى لايرجونه يعني تر دې اندازې چي هېر کړی ؤ مسلمانانو له تاسي څخه زما ذکر يعني چي خوف وکړي او ايمان راوړي او زما په عبادت ځانونه مشغوله کړي او تاسي واست چي پر مسلمانانو به مو خندل. مقاتل ﷫ وايي چي دا آيت په فقراؤ کي د مسلمانانو نازل سوی دی لکه عمار بن ياسر سلمان فارسي او بلال حبشي او صهيب وغيرهم رضی الله تعالى عليهم اجمعين چي ګاهي به دغه فقراء پر مجلس د قريشو تېرېدل يوه به و هغه بل ته وويل چي دا دي جنتيان حورو او غلمانو والا راغله، نو دومره قهقه خندا به يې کول چي يو به پر بل غوځارېدل.

**فائده:** په آيت کي شريف کي نسبت يعني اسناد د انساء وذوا تو ته د مسلمانانو کړی مجازًا ولي چي اصلي سبب د انساء د ذکر الله اشتغال د کفارو ؤ په استهزاء د مسلمانانو او په سخريه او خندا پر مسلمانانو.

## اِنِّيْ جَزَيْتُهُمُ الْيَوْمَ بِمَا صَبَرُوْٓا اَنَّهُمْ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿١١١﴾

په تحقيق ما جزاء يعني ثواب بالجنة ونعيمها سره هغو مسلمانانو ته ورکړی چي تاسي به پسخند په واهه او پر خندل به مو نن ورځ يعني يوم القيامة په سبب د صبر ددوی ستاسي پر ازار او استهزاء باندي (نو باء سببي ده او ما مصدري دی ای بسبب صبرهم على اذاكم اياهم) په تحقيق دغه دله د مسلمانانو دوی دي بری پيدا کونکي پر مطالب اخرويه ؤ، نو ضمير ثاني د هم لپاره د تاکيد د حصر نه دی فتامل.

﴿قٰلَ كَمْ لَبِثْتُمْ فِي الْأَرْضِ عَدَدَ سِنِيْنَ﴾

(قال) یعني خدای ﷻ ووايي و کفارو ته یعني په ورځ د قیامت په واسطه د بعض ملائکه ؤ، کلمه د کم استفهامیه ده، یعني څو مده او زمانه تاسي درنګ په مځکه کي یعني یا ژوندي پر مخ د مځکي او یا په قبر کي، په شمېر د کلو، دا کلمه تمیز د کم ده.

﴿قَالُوْا لَبِثْنَا يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ فَسْـَٔلِ الْعَآدِّيْنَ﴾

وايي کافران په جواب کي موږ درنګ کړی دی په مځکه کي یوه ورځ یعني د ایام د دنیا او یا بعض د ورځي.

**پوښتنه:** کافرانو خو په مځکه کي ډېر عمرونه او کلونه تېر کړي وه حتی بعض کافرانو په سلهاوو کلونه ژوند کړی دی، نو دوی ولي یومًا او بعض یوم ووایه، او بیا وروسته خدای ﷻ چي ته پوښتنه د شمېرونکو څخه زموږ د عمرو یعني هغه ملکي چي د بندګانو اعمال نوشته کوي، ولي چي هغه ملکي زموږ د لبث په مده بنه خبر دی، او مظهري چي دا احتمال هم ذکر کړی دی چي نورو انسانانو چي حساب د عمرو ورته معلوم وي فليس بشئ، ولي نور انسانان خو په خپل درنګ د دنیا خبر وي، نو د کفارو کلونه خو یې نه حسابل؟

**ځواب:** روح البیان، روح المعاني، مظهري او بیضاوي په ګډه توګه وایي بعض اجمالاً بعض تفصیلاً چي کفار چي د لبث في الدنيا یې لنډه بیان کړل ددې سببه چي دوی خو معذب بالنار دي، دا قانون طبعي دی چي د سختی او عذاب ورځي او شپې د سړي معذب په خیال ډېري اوږدې ورځي، او ورځي او شپې د راحت ډېري لنډي په خیال ورځي.

**تجربه:** يو سړی چي ډېر سخت مریض وي شپه دومره ورته اوږده سي چي اخیر دده ګمان سي چي ستوري ځای پر ځای ولاړ دي او شپه د صحت که څه هم د ژمي شپه وي ډېره ژر تېره سي، او بل ځواب دا دی چي ایام د دنیا کلونه د دنیا بلکې ټوله عمر د دنیا چونکه مقضي دی یعني تېرېږي والمقضی کالمعدوم، او بل ځواب دا دی چي مدت د حیواة الدنیا د کافرانو که هر څو طویل وه لکن بالنسبت



Scanned by CamScanner

الى مدة الحيوة الاخروية چي غير متناهي دي لکه يوه ورځ بلکې يو ساعت ی. بل
خواب دادی چي دا مقوله دائره ده پر ژبو د خلکو وايي: ايام السرور قصار وايام
الغموم طوال. قال اى الرب جل وجلا وايي.

قَٰلَ إِن لَّبِثۡتُمۡ إِلَّا قَلِيلٗاۖ لَّوۡ أَنَّكُمۡ كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ١١٤

تاسي درنګ نه دی کړی په دنيا کي يعني که څه په سوو کلونه وه مګر زمانا
قليلاً نو قليلاً منصوب على الظرفية دی او شيئا قليلاً نو منصوب على المفعولية
دی نسبت وهغه زماني ته عذاب چي تاسي يې په مخ کي لرئ، ولي چي عذاب
ستاسي خو دائم لاينقطع دی.

**يوه سه:** چي کلمه د لو پر فعل داخليږي نو دلته يې تقدير داسي دی لو ثبت انکم
چي تاسي وای، وکلمة لو ليپاره د تمنی او توبيخ ده يعني کاشکي تاسي په دي
پوهېدلای چي عمر ستاسي په دنيا کي لږ دی. نو دا عمر ګرانمايه به مو په ملاهي او
شهواتو نه تېرولای او د ورځي د قيامت سره به مخامخ کېده په نظر کي وايي. نو بعث
بعد الموت به مو په دنيا کي منلای، روى البخاري عن ابن عمر رضي الله عنه قال رسول الله ﷺ
كن في الدنيا كانك غريب (اى مسافر) او عابر السبيل (يا پر يو لار تېرېږې) وزاد
احمد والترمذي وابن ماجه وعد نفسک من اهل القبور، بيت:

هر دم از عمر گرامی هست گنجی بی بدل ... میرود گنجی چنین هر لحظه برباد آه آه

دوه بيتونه عربي:

الا انما الدنيا كظل سحابة ...... اظلتک يومًا ثم عنک اضمحلت
فلاتک فرحًا بها حين اقبلت ...... ولاتک جزعانًا بها حين ولت

شيخ سعدي شيرازي قدس سره وايي:

کنون وقت تخمست اگر پروری ..... گر امید واری که خرمن بری
بشهر قیامت مرو تنگدست ..... که وجهی ندارد بغفلت نشست
غنیمت شمر این گرامی نفس ..... که بی مرغ قیمت ندارد قفس
مکن عمر ضائع بافسوس وحیف ..... که فرصت عزیز است والوقت سیف

قال العلماء الرجوع الى الله بالموت الاختياري احب الى الله من الرجوع
بالموت الاضطراري ولذا قيل موتوا قبل ان تموتوا.

**حکایت:** بهلول چي د هارون الرشید د زماني سړی ؤ چي خلګو به بهلول مجنون بالله لترکه الدنیا بالمرة لګن دی په حقیقت کي بهلول دانا ؤ، دی وای چي زه به بعضو کڅو کي د بصرې تېرېدم د پر نابالغه کوچنیان وه چي په جوزو او بادامو یې سات سره تېراوه او بازی یې سره کولې، یو بل کوچنی ولاړ دی او دا نورو کوچنیانو ته ګوري او تر سترګو یې اوښکي بهېږي، زما خیال دا سو چي دا کوچنی لکه چي پر دې ژاړي چي جوز و بادام نه لري چي د دا نورو کوچنیانو سره سات په تېر کړي. نو زه ورنژدې سوم هغه کوچني ته مي وویل: یا بني مایبکیک؟ زه جوز او بادام درانسم چي د کوچنیانو سره سات په تېر کړې؟ ده سر راپورته کړی ماته یې وکتل او داسي یې راته وویل یا قلیل العقل موږ خدای ﷻ د بازیو لپاره نه یو پیدا کړي، ما ورته وویل چي نو د څه شي لپاره یې پیدا کړي یو؟ ده راته وویل للعلم والعبادة. ما ورته ووېل ته په څه دلیل دا خبره کوې ای بارک الله فیک؟ قال قوله تعالی افحسبتم آه. چي وروسته راتلونکی آیت دي بهلول وایي، ما ورته وویل ای بني اراک حکیمًا (ای زویه زه تا ډېر پوه سړی بولم) ماته نصیحت وکړه. او کوتاه کوچني دا بیتونه راته وویل:

اری الدنیا تجهز بانطلاق ....... مشمرة علی قدم و ساق
فلا یبا قیة لحي ....... و لا حي علی الدنیا بباق
کان الموت والحدثان فیها ....... الی نفس الفتی فرسا سباق
فیا مغرور بالدنیا رویدا ....... ومنها خذ لنفسک من وثاق

بیا دې کوچني سر د اسمان و خوا ته پورته کړی او لاسونه یې د اسمان و خوا ته پورته کړه او اوښکي یې پر بار خوګانو لکه باران اورېدلې او داسي یې وویل:

یا من الیه المبتهل ......... یا من علیه المتکل

دا بیت چي یې وو ایه په خاورو کي غوځار سو بېهوشه سو، بهلول وایي ما یې سر راپورته کړی په غېږ کي مي ونیوی او د مخ څخه مي خاوري وربا کړي کړې په لستوڼي، او ددې د زړا له کبله زما پر سترګو هم وریځ راپورته سوه او باران د اوښکو پر اورېدو سو. وروسته چي هغه کوچنی په هوش کي راغلی ما ورته وویل یا بني ما نزل بک وانت صبي لم یکتب علیک ذنب، ده راته وویل الیک عني یا

بهلول، راځخه ایسته سه اې بهلوله ما خپله مور لیدلې ده چي لوی لرګي چي د اور د بلېدلو لپاره سره کړېږدي هغه چي اور نه اخلي، نو دا کوچني کوچني لرګي لاندي ورته کښېږدي او هغو ته اور واچوي او هغه لرګي په بل کړي، زه بېرېږم چي په ورځ د قیامت به زه له صغارو څخه د اور د دوږخ وګرځم، نو ما پوښتنه ځندي وکړه چي ما ته خپل نسب را وښیه، ده راته وویل من اولاد الحسين بن علي بن ابي طالب رض بهلول وایي ما ورته وویل چي زما تعجب دفع سو، ولي چي ددې پاکي درختي دغسي پاکه مېوه وي.

**درویش وایي**: چي اوس نو ددې آیت په معنی کي فکر وکړه.

**أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ ﴿١١٥﴾**

(همزه لپاره د انکار او توبیخ دی، او کلمه د فاء عطف ده پر مقدر کما هو القانون النحوي الذي ذکرته مرارًا، والتقدير انكرتم فحسبتم ای ظننتم.

**پوه سه**: چي کلمه د ما کافه ده د عمل ان، فدخلت على الجملة الفعلية وهي مع جملتها قائم مقام المفعولين فحسبتم، او عبثًا یا مفعول له دی ای لاجل العبث او یا مفعول مطلق دی د خلقنا په حذف د موصوف ای خلقا عبثًا، والمعنى چي ما تاسي د ساتېري لپاره یا عبث نه یاست پیدا کړي بلکي لپاره د معرفت او د علم او عبادت مې پیدا کړي یاست.

(وانكم الينا لاترجعون) دا جمله عطف ده پر انما خلقناكم والمعنى احسبتم عدم رجوعكم الينا للجزاء يوم البعث والنشور یا دا حسبان هم غلط دی لکه د معطوف عليه حسبان چي غلط ؤ.

**فَتَعَالَى اللَّهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ**

لوړ دی ذات دده له مماثلت څخه د مخلوقاتو که علوي وي او که سفلي في ذاته وصفاته الجلالية والجمالية وافعاله تعالى عن افعال المخلوقين لان في افعاله من الحكم والمصالح والفوائد الجليلة (الملک الحق) یعني حقدار د ملک او سلطنت دی على الاطلاق یعني ایجادًا واعدامًا بدءً واعادةً احياءً واماتةً واثابةً وعقابًا، او ټول ماسوی دده مخلوق دی مقهور تحت ملكه العظيم.

لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ ﴿١١٦﴾

نشته په عالم فراخه کي وجود معبود بالحق مګر يو ذات متعال دده.

**پوه سه:** چي عرش يې په کريم سره وستايه لانه مقسم فيض کرم الحق ورحمته منه تنقسم اثار رحمته وکرمه الى المخلوقات.

وَمَن يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهُ بِهِ

څوک چي عبادت سره د خدای د بل معبود لکه کفار د مکې، هيڅ دليل ده لره نه وي معبوديت د هغه نه عقلي نه نقلي دا بل صفت د اله دا صفت د تاکيد لپاره راوړه سولان الباطل لادليل به بلکې دلائل عقليه او نقليه دال پر بطلان د هغه دي.

فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِندَ رَبِّهِ ۚ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ ﴿١١٧﴾

حساب د هغه په نېز د خدای ﷻ دی يعني چي خدای و هغه جزاء ته په قدر د جرم د هغه ورکړی وهو الخلود في النار (پوه سه: چي په فانما آه جزاء د من شرطي ده) شان دادی چي فلاح او خلاصون نسي پيدا کولای له عذاب څخه د ورځي د قيامت کافران، دا بيان د جزاء ددوی دی، ولي چي فلاح د ورځي د قيامت په نجات د اور او په دخول پوري د جنت مربوط دی. له دې څخه کافر محروم دی.

**فائده:** ابتداء ددې سورت په فلاح سره د مؤمنانو وسوه يعني قد افلح المؤمنون آه او ختم يې پر نفي د فلاح د کافرانو وسوې نو په منځ کي د فاتحة السورة وختمها صنعة التضاد وهو من المحسنات.

**درويش وايي:** چي په راتلونکي آيت کي خدای پاک امر کړی رسول خپل چي زما څخه طلب د بخښې وکړه او طلب د رحم تا چي په تاپسي به اقتداء امت وکړي او دوی به هم فلاح يا بنده ګان سي، نو خدای ﷻ داسي وايي:

وَقُل رَّبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَأَنتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ ﴿١١٨﴾

**پوه سه:** چي جمله د وانت آه حال ده له فاعل څخه د ارحم.

**فائده:** مفعول د اغفر او ارحم يې حذف کړی لانهم قالوا ان التعميم بالمغفرة متکفل لسلب جميع المضرات وبالرحمة لجلب جميع المنافع، بغوي رح په خپل تفسير کي وايي چي مصاب پر ابن مسعود رض چا تېر او ه يعني پېراني يا چي اعصاب

يې خراب وه يا لېونى. نو ابن مسعود ﷺ په دواړو غوږو کې دغه آيت څخه نيولې يعني: افحسبتم انما خلقناکم تر پايه پورې د سورت ووايه هغه جوړ سو. نو عليه الصلوة والسلام و ابن مسعود ﷺ ته وويل چې تا يې په غوږ کې څه شى ووايه ابن مسعود ﷺ حال ورته ووايه، فقال رسول الله ﷺ والذي نفسي بيده (زما دې قسم وي په هغه ذات چې زما روح د هغه په قدرت کې دى) لو ان رجلاً موقنًا (يعني چې د خداى ﷻ پر قدرت يې يقين وي) پر يوه غره يې ووايي لزال (اى عن موضعه)

**درويش وايي:** چې تفسير د سورة المؤمنين په وخت کې د ځانښت پر پنځه د شهر المبارک رمضان من شهور سنه (۱۴۳۰) هجري پاى ته ورسېدى، ولله الحمد والمنة على توفيقه اياى لذالک والصلوة والسلام على رسوله سيدنا محمد وآله وصحبه اجمعين.



سورة النور مدنية وهي اربع وستون اية وتسع ركوعات
بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

رب سهل وتممه بالخير آمين

ابتداء په تاريخ (۵) د شهر المبارک رمضان من شهور سنه (۱۴۳۰) هجري قمري من هجرة النبي ﷺ.

قرطبي رحمه الله وايي چي مقاصد ددې سورت ذکر دي د احکامو د عفاف (اى الكف عن الزنى) والستر اى للنساء، كتب عمر رضي الله عنه في دورة خلافته الى اهل كوفة. علموا نسائكم سورة النور. عن عائشة رضي الله عنها قال رسول الله ﷺ لاتنزلوهن في الغرف (تاسي ښځي مه اوسوئ په بالاخانو کي، ولي دوى تر دريچو د بالاخانو د کوڅي يا سرک و رجالو ته ګوري) ولاتعلموهن الكتابة (خط مه ورزده کوئ، ولي په ذريعه د خط د زنى لار ځان ته خلاص کړي) وعلموا هن سورة النور.

**درويش وايي:** چي په ټوله اسلامي نړى کي د ښځو لپاره ښونځي سته، او دغه ښځي پر لوي لوي څوکيو باندي ناستي وي بلکې په بعض اسلامي مملکتو کي پر منصب د قضاء ناستي وي چي هغه مملکت والايې جج بولي بلکې کافري مملکتو نه وايي چي شريعت محمدي د ښځو حقوق پاى مالـه کړي دي په سبب د امر بالحجاب، او په اوسني زمانه کي د ښځو چي زنى ذره وغواړي د موبايل لار خلاصه ده، ځاى، وخت او نقود عوض د زنى ټوله د موبايل په ذريعه سره فيصله کړي. حميد الله الغزنوي رحمه الله وايي:

چو بينم دين احمد (ﷺ) در غريبى ....... دلم سوزان زچشمم خون جاري

سُوْرَةٌ اَنْزَلْنٰهَا وَفَرَضْنٰهَا وَاَنْزَلْنَا فِيْهَآ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ لَّعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ①

(سورة) خبر د مبتداء محذوفي دى اى هذه سورة، (انزلناها) صفت للسورة، يعني موږ نازل کړى دى او موږ فرض او لازم قطعي ګرځولى دى ما انزلنا فيها من الاحكام يعني عمل پر مسلمانانو په هغو احكامو سره، او بعض مفسرين وايي قدرنا مافيها من الحدود، او بعض مفسرين وايي چي معنى د فرضناها فصلناها وبينا مافيها.

**فائده:** جمهور قراء يې په تخفيف د راء وايي، او ابن كثير او ابو عمرو يې په تشديد د باب د تفعيل وايي لپاره د تكثير، ولې په دې سورت كې فرائض او احكام ډېر دي او تر قيامة الساعة پورې ټوله مسلمانان په مكلف دي.

## اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِي

**درويش وايي:** چې دا شروع ده په هغه احكام چې په فرضنا كې اشاره ورته سوې ده.

**پوه سه:** چې سيبويه وايي چې خبر د الذانية والذاني محذوف دی. تقدير، سنذكر حكمهما وذهب الفراء والمبرد والزجاج ان الخبر جملة فاجلدوا آه، راوړل د فاء سببيه پر دې تقدير د سبب د تضمن د مبتداء دی معنی لره د شرط ده فان اللام بمعنى الذي دی، والتقدير التي زنت والذي زنى.

**پوه سه:** چې زنی وطي دې د ښځې بېله عقد شرعي او بېله ملک يمين.

**پوښتنه:** په دې آيت كې د زنی ښځه د مخه تر نر راوړه سوه او په آيت د سرقة السارق والسارقة نر د مخه راوړل سوی دی حكمت يې څه دی؟

**ځواب:** يا سبب دا دی چې زنی د ښځو په مينځيانو كې د عربو په جاهليت كې ډېره شائع وه حتى چې بعض اهل جاهلية به ډېرې مينځيانې رانيولې. هرې يوې ته په مناسبت د ښائست يا د ځوانی و هغې ته يو څه مقدار د روپيو مقرر كړی ؤ چې ته د ورځې د خلكو سره زنی كوه ما ښام په ما ښام ما ته به دومره روپۍ راوړې. نو هغو مينځيانو به خلكو ته دعوت كاوه چې زه به جماع درسره وكړم دومره اندازه روپۍ به راكوې، نو د هر څو نرو په زنی سره چې به د بادار ماليه برابره سوې وای هغو مره وارو نه به دوی زنی كوله. او يا سبب دا دی چې اصل په فعل كې زنی ښځه ده، ولې كه ښځې قدرت و نر ته پر جماع نه وای وركړی نر په زوره دا كار نسوای كولای، ولې چې فرج د دې ډېر محفوظ ځای دی، او يا دا سبب دی چې د ښځې شهوت تر نره ډېر دی يعنې نهه حصې شهوت د ښځې بالا دی تر نر والشهوة هي الداعية الى الجماع.

**مسئله:** په مفردات كې وايي چې زانيه هغې ښځې ته وايي چې په جماع راضي وي او نر ته قدرت پر ځان وركړي كما يدل عليه صيغة اسم الفاعل لا المزنية كرهًا.



Scanned by CamScanner

او د سرقه په آیت کې چې یې نر د ښځه کړی لـه دې کبله چې علت د سرقه شجاعت دی او شجاعت په نر کې تر ښځه ډېر بالا دی کما هو الظاهر.

## فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ

نو تاسي ایها الحکام په درو ووهئ هر یو د دوی یعني ښځه او نر سل درې.

**فائده:** علماؤ د امت مرحومه اجماع پر دې کړې ده چې زانیه او زاني چې حرین وي (احتراز د مینځې او مریي څخه چې د هغو حد نصف د حد د حر دی) او عاقلان وي (ولې چې پر لېوني حد نشته) او بالغان وي (ولې چې پر نابالغه حد نشته) حد یې د هر یوه سل درې وهل دي بحکم هذه الآية. او یو کال د وطنه فراره کول مختلف فيه دی. امام اعظم ابو حنیفه رح وایي چې تغریب عام په حد کې نه دی داخل. او امام شافعي رح او احمد رح تغریب عام جز د حد د دوی بولي.

**درویش وایي:** چې دلائل د هر مذهب او نقض او ابرام په کتابو کې د فقه شریف د هر مذهب مفصل ذکر سوی دی. په روح البیان او د فقه په کتابو کې وایي چې دا سل درې حد په ابتداء کې د اسلام د محصن او غیر محصن دواړه وو وروسته دا حد د جلد په حق کې محصن او محصنة منسوخ سو په ځای کې یې رجم ودرول سو. دلیل په هغه حدیث مشهور دی چې ماعز الاسلمي رض چې محصن وو رجم کړی. وتفصیل هذا النسخ في کتب الفقه والسوال علیه والجواب عنه ایضًا مذکور في کتب الفقه.

**فائده:** شرائط د احصان په باب کې د رجم په نېز د ابو حنیفة رح شپږ دي (۱) الاسلام پر اهل ذمه رجم نشته (۲) حریت دی پر مریي مینځه رجم نشته (۳) عقل دی پر لېوني رجم نشته (۴) بلوغ دی پر کوچني رجم نشته (۵) نکاح صحیح ده که نکاح فاسده وه لفقد شرائطه هم رجم نشته (۶) او جماع به یې هم کړې وي، که یو د دغو شرطو څخه نیستي نې رجم نشته.

**مسئله:** د زانیه او زاني څخه که یو محصن وُ او یو نه وُ محصن نو محصن دي په رجم سي او غیر محصن ته د جلد حد ورکړي کذا في کتب الفقه بحوالة المظهري ص ۴۲۴.

## وَلَا تَأْخُذْكُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ

او تاسي ته دې نسي در پېښ پر زانیه او پر زاني باندې زړه سوی په دین کې د

خدای ﷻ یعني په اجراء کي د حد او جلد پر دوی چي حکم د دین د خدای ﷻ دی حتی چي د زړه سوی له سببه حد نه کړی پر جاري. دا تفسیر دی د مجاهد، او عکرمه او عطاء او د سعید بن جبیر او د نخعي، او د شعبي رحمهم الله بخاري او مسلم روایت کړی دی. د عائشې رضي الله عنها څخه چي یوې ښځي چي د بني مخدوم د قبیلې وه چي د قریش د قبیلي یو ښاخ دی غلا یې کړې وه. نو دوی په اجراء د حد السرقة پر دې ډېر فکرجن وه یعني چي علیه الصلوة والسلام یې د لاس پرې کېدو حکم نه کړی جاري، نو دوی په خپلو کي سره چي څوک به ددې ښځي به پاره کي د علیه الصلوة والسلام سره خبري وکړي. نو دوی سره وویل چي هیڅ څوک دومره دلاوري پر علیه الصلوة والسلام نسي کولای مگر اسامه بن زید رضي الله عنه چي پر علیه الصلوة والسلام ډېر گران ؤ. نو اسامه رضي الله عنه یې واسطه کړی، نو اسامه رضي الله عنه په دفع کي د سرقې د هغې ښځي څخه د علیه الصلوة والسلام سره خبري وکړې، رسول الله ﷺ ورته وویل یعني اسامه رضي الله عنه ته: اتشفع في حد من حدود الله؟ (ته ما ته شفاعت کوې په دفع کي حدود د خدای ﷻ؟ نو همزه د استفهام لپاره د توبیخ دی) بیا علیه الصلوة والسلام خطبه وویل او داسي یې وویل: انما اهلک الذین قبلکم انهم اذا سرق فیهم الشریف (یعني سردار) ترکوه واذا سرق فیهم الضعیف اقاموا علیه الحد، وایم الله (قسم په خدای دی) لو ان فاطمة بنت محمد سرقت لقطعت یدها (یعني حکم د قطع الید مي پر جاري کاوه) او بعض مفسرین وایي چي معنی ددې آیت داده چي تاسي د رحمت له سببه وهل یعني ضرب الجلد کرار کرار کوئ یعني برای نام حد پر جاري کړئ بلکې داسي چي خوږ سي.

**فائده:** امام اعظم رحمه الله وایي: یجتهد في حد الزنی ثم في حد شرب الخمر ویخفف في حد القذف لان سببه محتمل لاحتمال کونه صادقا، یعني یو سړي که ښځي ته وویل چي تا زنی کړې ده او شاهدان د زنی یې نه درلوده پر دې سړي حد قذف جاري کېږي، لکن دا احتمال خو سته چي دا سړی دې په نسبت کي د زنی ودې ښځي ته صادق وي ده دې پر زنی دلیدلې وي، که څه هم له شاهدانو څخه عاجزه سو. محي السنة بغوي رحمه الله وایي چي عبدالله بن عمر رضي الله عنه وویل چي د عمر رضي الله عنه مینځه وه چي زنی یې کړې وه جلاد په درو ووهله، نو عمر رضي الله عنه و جلاد ته وویل اضرب ظهرها ورجلیها، نو زوي یې یعني عبدالله رضي الله عنه ورته وویل لاتاخذکم بهما رافة في دین الله؟ نو عمر رضي الله عنه

ورته وويل يا بني ان الله لم يامرني بقتلها وقد ضربت و اوجعت.

**درویش وایي:** چي له دې سببه بعض فقهاء وايي چي جلاد دې دره تر سر نه لوړوي چي ضرب و قتل ته مفضي نه وګرځي.

## إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

که تاسي یاست چي ایمان لرئ پر خدای او پر ورځ اخیره باندي چي قیامت دی، دا شرط دی مستغني له جزاء ځکه لظهوره والتقدير ان كنتم آه فسارعوا الى امتثال امره تعالى واجتهدوا في اقامة حدوده فان الايمان يقضتي ذالک، په صحیح حدیث کي راغلي دي چي په ورځ د قیامت یو حاکم چي یوه دره په حد زنی کي کمه کړه وه د باز پرس لپاره به یې خدای پاک حاضر کړي او ورته وه به وایي چي تا ولي دا یوه دره کمه کړې وه هغه حاکم به ورته وواېي رحمةً لعبادک، خدای پاک به ورته وو ایي اانت ارحم مني؟ انطلقوا الى النار الى اخير الحديث.

**پوښتنه:** د قیامت ورځي ته ولي یوم آخر وایي؟

**ځواب:** تر دغې ورځي وروسته شپه نسته فيصير كله كيوم واحد، او بعض اهل علم وايي چي انوار ټول له سره جمع سي او په جنت کي یوه ورځ ځندي جوړه سي نو پر جنتیانو شپه نه راځي، او ظلمات ټول له سره جمع سي او پر دوږخ واچول سي، نو ددوی لپاره لکه یوه شپه سي، والله اعلم بالصواب.

## وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝٢

حاضر دي سي وحد ته د زانيه او زاني یوه ډله د مؤمنانو، فقهاء وايي چي دا امر ندب او استحباب دی، په دې حاضرېدلو کي غرض مزید رسوايي ده د زانيه او زاني، ولي بعض خلک چي اهل عزت او جاه وي تر درو وهلو په دې رسوايي کي ډېر د معاودة الزنی ځخه ببرېږي.

**فائده:** طائفة مشتق ده له طوف ځخه چي شاوخوا راګرځېدلو ته پر هر شي وايي ومنه طواف بيت الله الشريف، نو بعض علماء وايي چي اقل مرتبه ځلور کسه دي هر یو بغل پر بغل تر مخ او تر شا، او بعض مفسرین وایي چي طائفه جمع د طائف ده او اقل د جمع یې درې کسه دي، او له ابن عباس رض ځخه روایت دی چي

اقل مرتبه د طائفة يو سړی دی فما فوقه وبه قال الامام احمد رح والنخعي رح، او بعض وايي چي اقله مرتبه يې دوه کسه دي فصاعدًا، وبه قال عطاء، وعكرمه و اسحاق رح، وقال الامام مالك رح اقله اربعة بعدد شهود الزنی، وقال الحسن البصري رح عشرة فصاعدًا.

**درويش وايي:** چي دا قول لپاره د تشهير او تنکيل او تفضيح ډېر موذون او په زړه پوري قول دی.

**اَلزَّانِيْ لَا يَنْكِحُ اِلَّا زَانِيَةً اَوْ مُشْرِكَةً وَّالزَّانِيَةُ لَا يَنْكِحُهَآ اِلَّا زَانٍ اَوْ مُشْرِكٌ**

زنا کار يعني نر نه په نکاح کوي مګر زنا کاره او مشرکه ښځه، او زنا کاره ښځه نه په نکاح کوي مګر زنا کار يا مشرک سړی.

**پوښتنه:** چي په مخ کي آيت کي يې زانيه مقدمه کړه تر زان يعني نر، او په دې آيت کي زان يعني نر يې مقدم کړی تر زانيه، حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** وړاندي تېره سوه چي دواعي د زنا په ښځه کي ډېر دي او شهوت يې هم غالب دی ولهذا قدمها في الزنی، واما في باب النكاح فالرجل طالب والمرئة مطلوبة، والفاعل مقدم على المفعول ولهذا يذكر اسم الرجل مقدم في خطبة النكاح على اصطلاح العرب على اسم المرئة.

**مسئله:** امام احمد رح په دې آيت سره او په نورو احاديثو چي بيان به يې راسي ان شاء الله تعالى دليل وايي چي نکاح د زاني او زانيه نه ده روا تر هغه وخته پوري چي توبه يې نه وي کښلې، او توبه چي وکاږي بيا خو زانيه او زان يې نه بولي، او نور ائمه الثلثة رحمهم الله وايي چي نکاح د زان او زانيه روا ده.

**سوال:** نو د دې آيت ځواب به څه ورکوي؟

**ځواب:** مفسرين وايي چي د دې آيت معنی اخبار دی كما هو ظاهر الصيغة، يعني زاني سړی په سبب د فسق خپل غالبًا رغبت نه کوي په نکاح د صالحاتو ښځو، او زانيه ښځه رغبت نه کوي د دې نکاح ته صالح سړی سره، له دې کبله چي هم جنسي سبب د الفت او د ښې ګذارې او مخالفت سبب د نفرت او د جلا والي دی... بيت:

کند هم جنس با هم جنس پرواز .... کبوتر با کبوتر و باز با باز

د انسان طبع ده چي په کوم لوښي کي سپی اوبه وڅښي په هغه لوښي کي اوبه نه څښي. نو زانیه ښځه په فعل د زاني راضي سوه او د فرج لوښي ته یې سپی د شهوت د زاني ور پرېښو چي اوبه پکښې وڅښي لاینکحها من حیث انها کذالک الا من هو مثلها یعني زاني یا تر زاني بد تر وهو المشرک، او صالح مسلمان خو لکه اسد داسي دی د بل چا پسخورده نه خوري، نو بنا پر دغه تاویل چي مراد اخبار سي، نو تحریم په دې آیت کي دی.

# وَحُرِّمَ ذٰلِكَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ ۝

ترجمه یې ظاهرًا داسي ده چي حرام کړل سوي نکاح د زانیه پر مؤمنانو محمول دی پر تنزیه عند اکثر العلماء.

**سوال:** د تعبیر د تحریم نکته یې څه ده؟

**ځواب:** نکته یې مبالغه ده چي مسلمانان د داسي فعل څخه یعني له نکاح څخه د زانیه ځان ساتي، ولي چي په دې نکاح کي مفاسد سته (۱) مؤمن صالح د فساقو له مشابهت څخه ځان ساتي (۲) سوء المعاشرة بین العبد المؤمن الصالح والزانیة (۳) او که له دغي زانیه څخه دده عیال پیدا سي مشکوک النسب یعني مجهول النسب دی. او امام مالک رح وایي مکروه تحریمي دی، او ابن مسعود رض وایي چي نکاح د زانیه حرام ده او وایي که زاني د زانیه سره نکاح وکړه فهما زانیان ابدًا.

**درویش وایي:** چي پر مذکوره تاویل دا آیت یعني و حرم آه منسوخ نه دی، او سعید بن المسیب رح او نور ځني شمېر علماء وایي چي په ابتداء کي د اسلام نکاح د زانیاتو سره حرامه وه، نو دا آیت وروسته منسوخ سو په هغه آیت سره وانکحوا الا یامی منکم فدخلت الزانیة في ایامي المسلمین.

**درویش وایي:** چي شان نزول د قوله تعالی الزاني لا ینکح الآیة د احادیثو صحیحه وو د نکته نگاه داسي راغلی دی، ابو داؤد، ترمذي، نسائي او حاکم روایت کړی دی عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده چي یو سړی مسلمان په نامه د مرثد چي بندیان د مکې څخه مدینې ته راوستل او په مکه کي یوه ښځه وه چي نوم یې عناق وُ، او د مرثد د زنی اشنایه وه په جاهلیت کي، نو مرثد د علیه الصلوة والسلام څخه اجازه وغوښتل چي زه عناق په نکاح کړم؟ علیه الصلوة والسلام

هيڅ خواب ورنه کړی حتی چي فوق الذکر آيت نازل سو، نو عليه السلام و مرثد ته دا آيت تلاوت کړی الزاني لاينکح تر پايه پوري او مرثد يې منع کړی له نکاح څخه د عناق. او نسائي له عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي يوه ښځه چي د ام مهزول په نامه يادېدل او کسب يې زني وه نو يو سړي د اصحابو د عليه الصلوة والسلام دده څخه اجازه وغوښتل چي ام مهزول په نکاح کړم، نو دا آيت نازل سو.
او سعيد بن منصور له مجاهد رحمه الله څخه داسي روايت کړی دی چي زنا چي حرامه سوه نو ځو ښځي زانيات چي ښائسته وې او کاروبار د زنا يې په ټپه ودرېدی. نو بعض مسلمانانو وغوښتل چي دغه ښائسته زانيات په نکاح کړي فنزلت الآية المذکورة، او محي السنة بغوي رحمه الله وايي چي قدم قوم المهاجرين المدينة. او بعض ددوی مسکينان وه چي نه يې مال درلودی نه يې عزيزان او په مدينه منوره کي ښځي وې زانيات مشرکات چي پر زنا يې ډېر نقود جمع کړي وه او په هغه زمانه کي مالداری د مديني دوې وې، نو بعض فقراء د مهاجرينو دا قصد وکړی چي د دغو ښځو سره نکاح وکړي تاچي دغه ښځي به موږ ته نفقه راکوي فاستاذنوا رسول الله صلى الله عليه وسلم فنزلت هذه الآية، وحرم ذالک علی المؤمنين.
**درويش وايي:** چي پر دې تقدير حرمت پر خپل معنی باقي دی لان نکاح المشرکات لايجوز للمؤمن، او نور ورته شان نزول هم راغلي دي والله اعلم بالصواب وعنده علم الکتاب.

## وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَٰتِ

او هغه کسان چي ويشتل وکړي يعني نسبت وکړي د زنی هغه په صريح الفاظو سره نحو زنيت يعني يا امرئة او يا ورته ووايي يا زاني في الرجل.
**يوه سه:** چي په نسبت کولو کي د زنی مقيد کول د آيت مجمع عليه دی د علماء التفسير او د علماؤ د فقه په قرينه ددې چي وروسته چي څلور کسه شاهدان غواړي څلور کسه خو په زنی کي مشروط دي، که دا قرينه نه وای رمی خو مطلق ښکنځلو ته وايي او قذف هم نفس ښکنځلو ته وايي، نو که يې مثلاً داسي ورته وويل څه شراب خوره يا خمار بازه يا غله وغير ذالک لايجب عليه حد القذف بالاجماع، لکن قاضي يا حاکم دي په قدر د ما يری تعزير ورکړي.

**مسئله**: که يې تعريضًا نسبت د زنى و چاته وکړی مثلاً د يو چا په مخ کې يې ووېل زه خو نه يم زناکاره، نو په نيز د امام الائمة ابو حنيفة والامام الشافعي والامام احمد وسفيان الثوري وابن سيرين او الحسن بن صالح رحمهم الله حد قذف نه باندي، او په نيز د امام مالک رح په دې تعريض سره هم حد قذف لازمېږي، دی وايي چې که سړی په پوره سې چې مراد يې نسبت د زنى دی تعريضًا نو دا خو لکه تصريح ده، نو ځکه قذف پر جاري کېږي، والجواب عنه چې په فقه کې وايي چې که ښځه په عده کې وي يعني مېړه يې مړ وي تعريضي مرکه په عده کې ورته روا ده، لکه ورته ووايي مثلاً ورېنداري ډېره ښائسته يې، او يا ورته ووايي ستا د نکاح شائقين ډېر دي وامثال في ذکر في کتب الفق الشريف، قال الله تعالى لاجناح عليکم فيما عرضتم من خطبة النساء، او سره ددې چې تصريح يې نه ده روا کريمه: ولکن لاتواعدهن سرًا.

**فائده**: رمي او قذف په لغت کې ويشتلو ته په غشي يا په ډبره يا بل ثقيل شی، او الفاظو کې کنايه د مطلق ښکنځلو ځخه او په شرع کې نسبت د زنى وتر يا وښځې ته.

**نکته**: په دې تعبير کې قذف يا د رمي اشاره ودې ته ده چې نسبت د زنى و يو چاته داسي دروند نسبت دی لکه سړی چې په غشي وولي.

(المحصنٰت) پوه سه: چې دا آيت يعني والذين يرمون شروع په حکم آخر وروسته تر ذکر د زنى چې په دې کې نسبت د زنى وبل ته دی وهو وجب التناسب في اتصالهما.

**پوه سه**: چې حصن په لغت کې قلعه ته وايي بيا مجازًا په هر ده تحرز په شي مستعملېږي کما يقال درع حصينة اى محکمة، ولي چې زغره د لابس بدن ساتي له تاثير ځخه د غشي، وفرس حسان هغه آس ته وايي چې راکب ته تکليف نه ورکوي.

**فائده**: محصنات په صيغه د اسم معفول ده يعني دې خپل فرج له زنى ځخه ساتلي وي.

**فائده**: مراد له محصناتو ځخه اجنبيات دي ولي چې خپلي ماينې ته قذف يعني نسبتت د زنى کول د هغه حکم بل دی چې وروسته به په قرآن کريم کې راسي.

**فائده**: مراد له احصان ځخه په دې آيت کي په اجماع د علماؤ (١) انيکون حرًا (نو په قذف کي د مريي يا مينځي حد قذف نسته) (٢) عاقلاً (نو ولېوني ته نسبت کول د زنې حد قذف نه لري) (٣) بالغًا (نو کوچني ته نسبت د زنې کول حد قذف نه لري) (۴) مسلمًا (کافر ته نسبت د زنې حد قذف نه لري (۵) عفيفًا (چي زنې يې نه وي کړې.

**تفريع**: که يو چا په عمر کي يو وار زنا کړې وه او بيا يې صحيح توبه کښلې وه او ډېر عمر پر توبه د هغې زنا تېر سوی ؤ، بيا يو چا و هغه ته قذف د زنې وکړی هغه قاذف نه په حد کېږي، ولي قاذف صادق دی په کي چي زنې دي کړې ده. لکن حاکم دي دغه قاذف ته تعزير ورکړي لما ورد في الحديث ان التائب من الذنب کمن لاذنب له.

**اعراب**: علامه سعد الدين التفتازاني په تلويح کي وايي چي دا موصول يعني والذين يرمون آه منصوب محلاً دی په فعل سره چي وروسته امر دلالت پر کوي اي اجلدوا الذين يرمون آه.

**درويش وايي**: چي اسانه اعراب دادی چي دا موصول مرفوع مبتداء سي وروسته فاجلدوهم دي خبر وي فافهم.

**فائده**: دا آيت په ماينه کي د عويمر نازل سوی دی کما في صحيح البخاري، او سعيد بن جبير وايي چي دا آيت په سبب د قصه د افک د ام المؤمنين عائشة نازل سوی دی.

ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ

وروسته نه راولي قاذفين ځلور شاهدان پر زنې د مقذوف.

**پوه سه**: چي ياتوا په صيغه د جمع راوړي لان القاذفون في المؤمنين کثير لکن دا راتګ د شاهدانو هلته غواړي چي مقذوف له زنې ځخه منکر وي، او که مقذوف په خپله په زنې اقرار وکړي يا قاذف ځلور شاهدان د زنې پر تېر کړه نو د قاذف ځخه حد قذف ساقط دی.

**مسئله**: که دا ځلور شاهدان د زنې متفرق يې د زنې شاهدي ادا کړه ددوی په شاهدي سره حد زنې پر مقذوف نسته عند ابی حنيفة لاشتراط الاجتماع في شهود الزنې احتياطاً لدر، حد الزنې عن المشهود عليه لکن حد قذف له قاذفه ځخه

ساقط سو، ولي چي نصاب پوره او اجتماع د شاهدانو خو ددې لپاره چي پر قاذف حد قذف لازم سي.

**مسئله:** كه مقذوف يو وار وويل چي ما زنى كړې ده څلور واره يې نه وويل پر مقذوف حد زنى نسته او پر قاذف يې حد قذف نسته، ولي قاذف خو رښتيا ورته وويل چي تا زنى كړې ده.

**مسئله:** كه څلور كسه چي فاسقان وه په ګناه كبيره سره هره كبيره چي وي پر مقذوف يې شاهدي د زنى ادا كړه، نو مقذوف نه په حد كېږي په حد زنى سره، ولي د فساقو شاهدي مردوده ده.

**سوال:** چي ددوى په شاهدي سره زنى نسوه، نو خو دوى قاذفان سوه فينبغي ان يحدوا القذف؟

**ځواب:** فساق شرعًا خو د تحمل د شاهدي دي او هم اهل د اداء د شاهدي دي لكن په اداء كي نوع د قصور سته په سبب، نو كه حقيقت زنى نسوه لكن كم از كم شبهه د زنى پيدا سوه، نو له دوى څخه حد قذف په شبه د زنى پورته سو. لما قال الفقهاء رحمهم الله الحدود يندرء بالشبهات (حدود دفع كېږي په سبب د شبهاتو)

**فائده:** له دې آيت څخه دا ثابته سوه كه درو كسانو پر مقذوف باندي د زنى شاهدي اداء كړه څلورم شاهد نه سو پيدا، نو دغو درو كسانو ته دي حد قذف وركړي، ولي ددوى درو په شاهدى سره خو پر مقذوف زنى نسوه ثابته، نو خو دوى هم قاذفان سوه فيجب حد القذف عليهم.

**درويش وايي:** چي په باب كي د حد قذف نوري ورته مسئلې د فقه شريف په فتاوو كي او په شرح كي سته، نو په استيعاب كي يې لوى بوج پر متعلم وي لكن مالايدرك كله لايترك كله.

فَاجْلِدُوهُمْ ثَمٰنِيْنَ جَلْدَةً وَّلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا ۚ

نو تاسي اى حاكمانو او قاضيانو ووهئ دا قاذفان يعني امر وركړئ د عسكرو ته د حد قذف لكن دا هلته چي مقذوف طلب د حد قذف په اتفاق د ائمه اربعه رحمهم الله، ولي حد قذف حق العبد دى ولي چي مقذوف د خپل څخه پېغور د زنا دفع كوي لكن اتيا (۸۰) درې حد هلته وركول چي قاذفان حر كسان او كه

مريان بيا يې حد څلويښت (۴۰) درې باجماع الفقهاء رحمهم الله لما ورد في الحديث الذي رواه البيهقي ومالک في الموطاء ان عبدالله بن عامر بن ربيعة قال ادركت ابابكر و عمر وعثمان ومن بعدهم الخلفاء رضی الله تعالی عنهم اجمعين فلم ارهم يضربون المملوک اذا قذف الا اربعين سوطًا.

او تاسي اى حكامو مه قبلوئ شاهدي د قاذفانو په هر شي كي شاهدي تر ابدي پوري.

**يوه سه:** چي ولاتقبلوا الخ عطف دى پر مدخول د فاء په فاجلدوا كي، نو معطوف عليه او معطوف دواړه جزاء دى. ولي چي موصول د والذين يرمون آه مبتداء متضمن معنى لره د شرط ده. مطلب دادى چي عدم قبول د شاهدى ابدًا ده د قاذفانو زموږ احنافو په نېز تتمه د حدق قاذف ده. ولي فاجلدوا او لا تقبلوا دواړه جملې انشائيه دي او دواړي يې مفوض و حكامو ته كړې، نو معلومه سوه چي جلد او عدم قبول الشهادة دواړه حد د قاذف دي.

وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَٰسِقُونَ ۝

او دغه قاذفان دوى دي قاذفان او د فاسق مردود دى شرعًا كما تقرر في الفقه.

إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝

مگر نه هغه كسان چي نه دي فاسقان، يعني د بل وار قذف څخه د چا، وروسته تر دې وار قذف، خپل اعمال او احوال د شريعت سره برابر كړي (يعني چي د بل كار په كولو سره ماسوى له قذف څخه لان الفسق لاينحصر في القذف) په تحقيق خداى ﷻ بخښونكى او مهربان دى، يعني له قذف څخه د توبې په سبب يې د فسق عفوه ورته وكړه.

**يوه سه:** چي امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله وايي چي دا استثناء يعني الا الذين آ راجع ده و اخيري جملې ته يعني و اولئک آه او محلاً منصوب ده، ولي چي په اصول الفقه كي دده مذهب وايي چي استثناء چي تر څو جملو چي يو پر بل عطف وي لكه په ما نحن فيه كي يرجع الى الجملة الآخيرة مالم يكن هناک قرينة صارفة عن الجملة الآخيرة بصرفها الى الكل. له دې سببه راجع استثناء راجع و اخير ته ده

چي په اخيره جمله پوري استثناء متصل ده، او بل دليل دادی چي جمله اخيره دلته د ماقبل جملو څخه جلا ده په اعتبار د حکم ولي چي ماقبل جملې انشائيه دي او اخيره جمله خبريه ده که څه هم په اعتبار د اسم اشاره يعني اولئک او په اعتبار د ضمير يعني هم د هغو سره شريک ده، او بل دليل دادی چي نحات وايي چي په استثناء کي اتصال شرط دی په مستثنى منه پوري، او جمله اخيره په دې سبب چي په نسق کي د اخبار او انشاء د ماقبل جملو څخه جلا ده، نو دا جمله اخيره فاصل ده په منځ کي د استثناء او د ماقبل جملو، نو شرط د اتصال د استثناء د نورو جملو سره نه لري، او بل دليل دادی چي استثناء په سبب د عدم استقبال و ماقبل ته ضرورت لري، او ضرورت په جمله اخيره سره دفع سو فلاحاجة الى صرف الاستثناء الى الجمل الاخرى قبل الآخيرة.

**درويش وايي:** چي په کتابو کي د فقه حنفي نور دلائل هم موجود دي فطالع في هذا المبحث فتح القدير شرح الهداية.

**فائده:** قذف د زنې و چاته له دې سببه پيښيږي چي قاذف د خلګو عورات او پټ کارونه لټوي، او بل دادی چي قاذف پر مسلمان پرده د ستر نه اچوي، او عليه الصلوة والسلام په ډېرو سختو الفاظو هغه چا چي تلاش د عوراتو د خلګو کوي داسي ويلي دي: يا معشر من آمن بلسانه ولم يؤمن بقلبه (اې هغه ډله چي ايمان يې نه په خوله راوړی دی او نه په زړه.

**درويش وايي:** چي وداسي چا ته خو منافق وايي، نو په حديث شريف کي اشاره ورته ده لټول د عوراتو د مسلمانانو په عصر نبوي کي د منافقانو کارو، نو په اوسنی زمانه کي که دغسي سړی پيدا سي، نو لړ تر لړه منافق عملي خو دی (لاتتبعوا عورات المسلمين (تاسي مه لټوئ پټ عيبونه د مسلمانانو) فان من يتبع عوراتهم يفضحه الله يوم القيامة على رؤس الاشهاد (که څوک دا تتبع کوي د هغه عيبونه به خدای ﷻ رسوا کړي په ورځ د قيامت په حضور د حاضرينو او په باره کي د ستر د مسلمانانو د عيب رسول کريم ﷺ داسي ويلي دي: من ستر على مسلم ستر الله عليه في الدنيا والآخرة.

# وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ اَزْوَاجَهُمْ

او هغه کسان چي نسبت د زنٰی و خپلو ماینو ته وکړي، یعني ماینې ته ووایي چي تا زنٰی کړې ده.

**بوه سه:** چي والذین مبتداء ده خبر یې وروسته آیت فشهادة آه تر اوسه بیان د حکم ؤ د نسبت د زنٰی وبېګانه ښځه ته چي رمي او قذف دواړه چي پکښې استعمالېده اوس بیان دی د حکم د قذف د ماینې، که داسي ورته ووایي زنیت او داسي یا زانیة یا رئیتک تزنی.

**شان نزول:** بخاري له ابن عباس رض څخه روایت کړی دی چي هلال بن امیه و خپلي ماینې ته نسبت د زنٰی وکړی د شریک بن سمحا سره په مخ کي د نبي علیه السلام، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل البینة او حد في ظهرک یعني یا څلور کسه شاهدان د زنٰی راوله او یا دي پر شا د قذف په درو وهم، نو هلال بن امیه ورته وویل چي یو سړی چي بل سړی پر ماینه سپور ووینې. نو دی به ځي څلور شاهدان به راولي او سړی به یې پر ماینه سپور وي؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل البینة والا حد في ظهرک، هلال ورته وویل والذي بعثک بالحق اني لصادق فلینزلن الله مایبرئ ظهري من الحد فنزلت جبرئیل وانزل الله والذین یرمون ازواجهم الی اخیر الآیة، نو علیه الصلوة والسلام دا آیت تر ان کان من الصادقین پوري هلال ته تلاوت کړی، نو هلال راغلی هغه خپلي څلور واره چي وروسته په قرآن کریم کي به راسي او نبي علیه السلام به وویل ان الله یعلم ان احد کما کاذب یعني خدای خبر دی چي یو ستاسي څخه درواغ وایي) فهل منکما تائب (نو یو ستاسي توبه نه کاږي یعني چي اقرار په ګناه وکړي ښځه چي هو مازنٰی کړې ده یا مېړه ووایي چي ما درواغ وویل سړی یعني زاني مي پر ماینه نه دی لیدلی. تاچي په اول صورت کي به ښځي ته حد زنٰی ورکړه سي او په دویم صورت کي به نر ته حد قذف ورکړل سي، بیا ښځه ولاړه سوه فشهدت یعني دلعان الفاظ یې استعمال کړه چي وروسته به راسي، پینځم وار ښځه ورسېدل حاضرینو ورته وویل چي ته یو وار صبر وکړه ته پنځم لفظ مه وایه، ولي چي دا موجب د غضب دی که دي درواغ وویل، ښځي یو څه توقف وکړی او یو څه تر شا سوه، د خلګو دا خیال سو چي د کلماتو چي دې وویل رجوع به وکړي یعني

اقرار بالزنی به وکړي، بیرته ښځې سمدستي وویل لا افضح قومي زه خپل قوم نه رسوا کوم او نه یې شرموم یعني خلک به پېغور ورکوي چې ستاسي د قوم ښځي خو زنی کړې وه، هغه پیننځمه شاهدي یعني غضب الله علیها یې هم پوره کړه، وقال النبي ﷺ ابصروها تاسي گورئ په دې پسې یعني حامله وه که یې عیال وزېږاوه، اکحل العینین چې توري سترګي یې وي سابغ الالیتین لوی کوناټي یې وه خدلج الساقین لویي پنډۍ یې وي فهو لشریک بن سمحا یعني د زاني دی، فقال النبي ﷺ لو لا مضی من کتاب الله که نه وای تېر سوی حکم د خدای ؓ چې شهادت و چې رابه سي لکان ولها شان زما و ددوی تر منځ به یو حال وای، والله اعلم بما اراد رسول الله ﷺ بقوله لکان لي ولها شان.

**درویش وایي:** چې د هلال بن امیه د شان نزول د ایت مذکوره هغه حدیث هم کوي چې احمد رح یې له عکرمه او هغه له ابن عباس ؓ څخه روایت کړی دی چې څه وخت چې دا آیت نازل سو: والذین یرمون ازواجهم الی اخیر الآیة، سعد بن عباده ؓ چې سید او رئیس د انصارو ؤ هکذا نزلت یا رسول الله ﷺ، نو علیه الصلوة والسلام وویل یا معشر الانصار الا تسمعون مایقول سیدکم، یعني چې ددې آیت و نزول ته تعجب کوي، انصارو وویل یا رسول الله ﷺ لاتلمه (ته یې ما ملامتوه) فانه رجل غیور، دوی وویل چې ده تر اوسه داسي ښځه نه ده په نکاح کړې چې باکره نه وي، او نه ده یوه مایینه طلاقه کړې ده چې بل چا زموږ دلاوري کړې وي چې دده طلاقه کړې مایینه دې په نکاح کړي من شدة غیرته، قال سعد: بابي انت وامي (زما مور او پلار دې تر تا قربان وي) والله اني لاعرف انها حق وانها من الله (زه په دې پوهېږم چې دا آیت حق دی او د خدای ﷻ له خوا نازل سوی دی، لکن زه و دې ته تعجب کوم چې زه دې پر مایینه یو سړی چې ددې ورنونه دي وربورته کړي (کنایه ده له جماع څخه) زه به هیڅ کار نه په لرم او نه به یې بوروم تر څو څلور شاهدان راولم، ولي قسم په خدای ﷻ دی چې زه څلور شاهدان راولم زاني به خپل کار پای ته رسولی وي او تللی به وي، ابن عباس ؓ چې ددې خبرو اترو د سعد ؓ او د علیه الصلوة والسلام ډېره زمانه نه وه تېره سوې چې هلال بن امیه (چې دی یو د هغو درو کسانو څخه دی چې په غزاء کې د تبوک بېله

عذره د علیه الصلوة والسلام سره و جنګ ته د تبوک نه وه تللي خير خو اخيره د
هغو درو کسانو چي قصه يې اوريده ده توبه يې قبوله سوه او ددوی د توبې په
قبلېدلو کي قرآني آيتونه نازل سو) او دا هلال له قوم څخه د سعد بن عبادة ؤ، هلال
مذکوره چي ماخستن د مخکي له کاره کور ته ورغلی پر ماينه يې سړی وليدی په
خپلو سترګو، نو يې هيڅ کار نه په ودرلود، نو سهار و عليه الصلوة والسلام ته
راغلی فقال يا رسول الله ﷺ وجدت اني جئت اهلي عشاء فوجدت عندها رجل،
فرئيت بعيني وسمعت باذني فكره رسول الله ﷺ ما جاء به واشتد عليه، او انصار
سره جمع سوه فقالوا قد ابتلينا بما قال سعد بن عبادة الآن يضرب رسول الله ﷺ
هلال ابن امية، ولي چي ده خو د ماينې د زنی شاهدان نه درلوده، نو پر ده حد قذف
ثابت ؤ، ويبطل شهادته في الناس كما هو حكم حد القذف على مامر قريبًا، هلال
بن اميه وويل چي زه صادق يم په خپله خبره کي والله لارجوا ان يجعل الله لي
مخرجًا منها (يعني هم له وهلو څخه په درو او هم له بطلان څخه د شهادت ابدًا)
ابن عباس رضي الله عنه وايي چي قسم په خدای دی چي د عليه الصلوة والسلام اراده وه چي
امر د ضرب وکړي لكن په عين حال کي پر ده وحي نازلي سوې خلګو ضرب
معطل کړی فنزلت والذين يرمون ازواجهم الآية، چي وحي ختمي سوې عليه
الصلوة والسلام وويل ابشر يا هلال فان الله قد جعل لک فرجًا (يعني د حد قذف
څخه خلاص سوې او حکم ستا ؤ د ماينې د لعان نازل سو كما سيأتي في القرآن.
هلال ورته وويل چي زما د مخه هم همدا اميد ؤ له خدای ﷻ څخه يعني ما به له حد
قذف څخه وساتي، يعني له دې سببه چي خدای ﷻ خو زما په حال خبر ؤ چي زه
صادق وم) نو د هلال ماينه يې هم راوغوښتل پوره قصه يې نژدې تېره سوه چي
لعان ددوی ختم سو، عليه الصلوة والسلام ددوی تر منځ علاقه د زوجيت ورقطعه
کړه، او وه يې ويل چي د ولد نسبت دي و هلال بن اميه ته نه کوي بلکي مور ته دې
کوي، اخير ښځي زوی راوړی، تاريخ وايي چي دا زوی يې لوی سو په يو وخت
کي امير ؤ په مصر کي لايدري من ابوه.

**درويش وايي:** چي په بعضي رواياتو د ابن عباس رضي الله عنه چي بغوي يې نقل کړی
دی هغه خبره چي په د مخه قصه کي د هلال بن اميه و سعد بن عبادة رضي الله عنه ته نسبت کړه

سړی ؤ كمامر آنفًا مثل د هغې خبرې و عاصم بن عدي الانصاري رضي الله عنه، راوي وايي چې عليه الصلوة والسلام چې آيت متلوه پر منبر نبوي ووايه، نو عاصم رضي الله عنه ورولاړ شو داسې يې عليه الصلوة والسلام ته وويل جعلني الله فداک ان رای رجلاً مع امرته رجلاً، نو كه هغه سړی ددې خبرې اظهار وكړي يعني پر مايننې يې سړی وليدی خو دې اتيا (٨٠) درې وهل كيږي ولې چې شاهدان نه وي خو حد قذف وركول كيږي او مسلمانان يې فاسق هم بولي او شاهدي يې هم ابدًا نه قبليږي فكيف لنا بالشهداء، نو موږ شاهدان له كومه كړو، ولې كه موږ په شاهدانو پسې ګرځو زاني به خپل كار خلاص كړی وي او تللی به وي. او ددې عاصم يو د اكا زوی ؤ چې عويمر يې نوم ؤ او دده مايننه وه چې خولة بنت قيس يې نوم ؤ، نو عويمر مذكوره د اكا زوی عاصم ته راغلی او ورته وه يې ويل چې ما شريک بن السهماء پر تس د خپلې مايننې خولة وليدی مراد يې جماع او زنی وه، نو عاصم استرجاع ووېل يعني انا لله وانا اليه راجعون د تعجب لپاره چې ما هغه درنه خبره و عليه الصلوة والسلام ته وكړه، اوس زه د اكا د زوی عويمر په باب كې په هغه خبره مبتلا، سوم، نو عاصم مذكوره يې له مديني منورې څخه دباندې ؤ يعني چې هر لمانځه ته يا هره ورځ د عليه الصلوة والسلام په حضور كې نه مشرف كېدی، را نوې د جمعې ورځ عليه الصلوة والسلام ته راغلی فقال يا رسول الله ﷺ ابتليت بالسوال الذي سئالت في الجمعة الماضية في اهل بيتي (يعني په خپلو قريبانو كې) ولې چې عويمر او خوله او شريک درې سره اولاد د اكا د عاصم وه، نو عليه الصلوة والسلام تهوله را وغوښتل و عويمر ته يې وويل: د خدايه وېرېږه په باره كې د تهمت د زنا پر مايننې خپلې خوله چې ستا د اكا لور هم ده يعني لا تقذفها بالزنى. عويمر ورته وويل يا رسول الله ﷺ اقسم بالله اني رئيت شريكًا على بطنها او ما دا څلور مياشتې ددې سره جماع نه دې كړې او دا اوس د څو مياشتو حمل لري، وروسته عليه الصلوة والسلام و خوله ته وويل اتقي الله د خدايه وېرېږه او ماته هغه كار چې تا كړی وي ووايه! خوله ورته وويل چې عويمر يو غيور سړی دی ده زه وليدم چې د شريک سره مې مجلس كاوه. نو خپل غيرت پر دې باعثه كړی چې پر ما يې د زنى تهمت ووايه، بيا رسول الله ﷺ و شريک ته

وويل چې ته څه وايه! شريک ورته وويل چې زما هم هغه خبره ده چې خوله وکړه،
نو عليه الصلوة والسلام امر وکړی الصلوة جامعة د عصر لمونځ يې وکړی، بيا
يې امر وکړی اول پر عويمر وروسته پر خوله چې هغه د شهاداتو چې وروسته به په
قرآن عزيز کې راسي هر يوه پر خپل نوبت ووېلې يعني نه عويمر وويل چې ما
دروغ ويله او نه خوله وويل چې مازنی کړې ده، الی اخير الحديث ، حافظ ابن
حجر رح په شرح کې د بخاري وايي چې ما د امامانو د دين په دې اختلاف چې دا
آيت آيا د هلال بن اميه په باره کې نازل سوی دی که د عويمر، بعض يوه ته ترجيح
ورکوي بعض بل ته، او امام قرطبي په خپل تفسير کې ميل وجمع ته کړی دی چې
احتمال سته چې آيت دې دوه واره نازل سوی وي کما يقال في الفاتحة چې دا سورة
يو وار په مکه مکرمه کې نازل سوی دی او بل وار په مدينه منوره کې چې تحويل
د قبلې و کعبې ته وسو، او بعض امامانو يې داسې جمع کړې ده چې اوله واقعة
هلال واقع سوه او نژدې و هغه ته واقعه د عويمر پيښه سوه فنزل في شانهما معًا،
ودې جمع ته امام نووي رح او تر ده د مخه خطيب البغدادي رح او حافظ ابن حجر رح
داسې جمع کړې ده چې نزول د آيت د مخه راغلی ؤ په سبب د واقعې د هلال، لکن
عويمر چې خپل د مايني راپور راوړی هغه په دې نه ؤ خبر چې هلال ته هم ورته
واقعه پيښه سوې ده، نو عليه الصلوة والسلام عويمر ته هغه د هلال حکم بيان
کړی، او هم دا سبب دی چې د هلال په قصه کې داسې راغلي دي فنزل جبرئيل ع او
په قصه کې د عويمر قد انزل الله فيک ای فمن له مثل ماوقع لک، دا جواب ابن
صباغ په خپل کتاب شامل کې راوړی دی.

**مسئله:** امام اعظم ابو حنيفة رح وايي لايجوز اللعان مالم يکن الزوج اهل
للشهادة يعني حرًا عاقلاً بالغًا مسلمًا، وتکون الزوجة ممن يحد قاذفها يعني حرة
عاقلة بالغة مسلمة غير متهمة بالزنی، او د امام اعظم رح پر مذهب په دې څلورو
مسئلو کې لعان نسته (۱) چې مېړه حر وي ماينه مينځه وي قاذف نه په حد کېږي
(۲) چې مېړه مريي وي او ماينه يې حره وي، ولې مېړه اهل د شهادت نه دی په
سبب د مريي والي (۳) چې مېړه مسلمان وي ماينه يهوديه وي، ولې د يهوديه
قاذف نه په حد کېږي په سبب د دې چې شرط د اسلام په دې کې نسته (۴) چې مېړه

مسلمان وي مايينه يې نصرانيه وي په دې سبب چې په نصرانيه کې شرط د
اسلام نشته، نو قاذف يې نه په حد کېږي.
**درويش وايي**: چې اسناد د دغو څلورو مسئلو و عليه الصلوة والسلام ته ډېر
مشکل دی. ولې چې اسناد چې هر څو دی له ضعفه خالي نه دی.

وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَآءُ إِلَّآ أَنفُسُهُمْ

او نه وي دغو قاذفينو لره شاهدان يعني څلور کسان پر زنی ددوی د مايينو
مگر ځانونه ددوی.
**پوښتنه**: تاسي وويل چې اسناد د دغو څلورو مسئلو و عليه الصلوة والسلام ته
ډېر مشکل دی، نو ابو حنيفة رح په کوم دليل اسناد کوي؟
**ځواب**: يوه طريقه د حديث چې سبط ابن الجوزي رح راوړي ده. دی وايي چې
دغه حديث چې عليه الصلوة والسلام وايي چې په مذکوره مسئلو کې لعان نشته،
الاوزاعي و ابن جريج رح وهما امامان، روايت کړی دی له عمر بن شعيب عن ابيه عن
جده څخه که څه هم و عليه الصلوة والسلام ته يې نه دی پورته کړی ابن الهمام
صاحب د فتح القدير وايي وانت علمت ان الحديث الضعيف اذا تعدد طرقه كان
حجة وهذا الحديث كذالک وقد اعتضد برواية الامامين المذكورين موقوفًا على
جد عمرو بن شعيب فيجوز الاستدلال لمذهب ابى حنيفة رح بالحديث المذكور.
**سوال**: دا دومره دا خبره تر تحقيق لاندې ونيوله سبب يې څه دی؟
**ځواب**: د حنفي مذهب دښمنان او عيب ګويان په پخوانۍ زمانه کې او په
اوسنۍ زمانه کې ښځي ډېر دي که سلفيان دي که وهابيان دي او که اصحاب
ظواهر الحديث دي وغيرهم حتى چې په خولو د دغو دښمنانو دا خبره مشهوره ده
چې حنفيان اصحاب الرای بولي معاذ الله، حتى بعض د اوسنۍ زمانې کتاب
فروشان په تنقيد کې برخه اخلي لکن درويش وايي چې حنفي کاروان په خير او
عافيت روان دی او روان به وي الى زمن المهدي عليه السلام ان شاء الله العزيز.

فَشَهَٰدَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَٰدَٰتٍۭ بِٱللَّهِ ۙ إِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ⑥

**بوه سه**: چې فشهادة احدهما آه مرفوع دی خبر د مبتداء محذوفي دی،

والتقدير فالواجب شهادة آه، او يا مبتداء د خبر يې محذوف دی والتقدير فعليهم شهادة آه. او دا ټوله جمله خبر د والذين يرمون آه ده چې موصول متضمن معنی لره د شرط و خبر ده، ولهذا اورد الفاء ههنا.

**پوه سه:** چې شهادات په دې آيت کې په معنی د ايمانو (قسمو) دي. والدليل عليه قوله بالله لانه نص في القسم لايستعمل في الشهادة.

**سوال:** په دې آيت کې خو د شهادت لفظ هم راغلی دی؟

**ځواب:** هو! لکن د شهادت لفظ احتمال د يمين هم لري، په فقه شريفه کې مسئله ده که سړي وويل چې اشهد اني افعل کذا او نيت يې د يمين، کان يميناً. نو موږ په دې آيت کې محتمل چې لفظ د شهادت ؤ پر محکم چې لفظ د بالله دی حمل کړی کما هو القانون في الفقه الشريف.

وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿٧﴾

او پينځمه شاهدي.

**پوه سه:** چې الخامسة مبتداء ده او (ان لعنة الله عليه) خبر دی. لفظ منصوب دی اسم د ان دی او عليه يې خبر دی، او ټوله جمله په تقدير د حرف جر يعني والشهادة الخامسة بان لعنة الله (ان کان من الکاذبين) دا جمله شرطيه ده جزاء له ماقبل (لعنة الله) څخه فهمېږي يعني فعليه اللعنة يعني که به زه يم له درواغ ويونکو څخه يعني پر ماينه چې دې زنی کړې ده بلکې دا خبره زما رشتيا ده.

وَيَدْرَؤُا عَنْهَا الْعَذَابَ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ

او تاسي دفع کړئ له ماينې څخه د قاذف عذاب يعني حد د زنی (والحاصل چې په صرف شهاداتو سره د مېړه ودې ته حد الزنی مه ورکوئ) يعني څلور واره قسم په خدای ﷻ وقد مر تحقيقه عن قريب.

إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿٨﴾

چې دا زما مېړه د کاذبينو له ډلې څخه دی چې په ما پورې يې درواغ تړلي دي يا په زنيت يا په نفي د ولد يعني و ماته يې د زنيت لفظ وايه يا يې وويل چې دا او حمل يا ولد له ما څخه نه دی چې هم يې معنی زنی ده (ان تشهد) منصوب دی په کلمه د ان مصدري.

وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّدِقِينَ ⑨

پينځم وار به ماينه وايي چي غضب د خداى ﷻ دي پر دې وي كه دى تعني زما مېړه له رشتيا ويونكو څخه دى پر ما باندي چي دې زنې كړې ده.

**درويش وايي**: چي تركيب او اعراب ددي آيت لكه د ماقبل دى چي تېر شو.

**فائده شرعيه**: پوه سه! كه ماينه ته سړى نسبت د زنې وكړي او هغې طلب خندي وكړى په موجب د قذف، نو پر مېړه لعان واجب دى، انما قلنا چي ماينې طلب څندي وكړى لانه حقها فيجب طلبها فان سكتت عن طلب حقها لا شئ على الزوج، او كه ماينې طلب څندي وكړى مېړه منع څندي وكړه په نېز د امام اعظم رح حاكم الوقت دې بندي كړي چي يا به لعان كوې او يا به وايي چي ما دروا غ ويله پر ماينه باندي، نو به مېړه ته حد قذف وركړي، او كه مېړه راتنگ په لعان سره وكړى ماينې منع د لعان څخه وكړه، د امام اعظم رح مذهب دادى چي ښځه دې بندي كړي لان اللعان حق مستحق عليها فتحبس فيه تر هغو به بندي وي چي يا لعان كوي او يا د مېړه تصديق كوي چي دى رشتيا وايي، كه ماينې تصديق د مېړه وكړى يعني دا قدريې وويل چي دى رشتيا وايي، نو سبب د وجوب لعان پر دې خو پور ته سو، لكن سوال دادى چي نو پر ماينه حد د زنې لازمېږي كه څه رنگه؟

**څواب**: پر ماينې حد زنې نسته لان التصديق ليس قصداً بالزنى فلا يعتبر في وجوب حد الزنى فيندفع به اقرار اللعان عنها، او كه څوک ووايي چي دې خو په زنې اقرار وكړى، نو ولي حد نسته باندي؟ د هغه څواب دادى چي په نېز د امام اعظم رح يو وار اقرار د زنې كافي نه دى بلكې څلور واره به اقرار په زنې كوي فافهم.

**فائده**: لعان د مېړه په باره كې قائمقام د حد قذف دى او د ماينې په باره كې قائمقام د حد زنې دى.

**فائده**: دا فرقت او جلال والى چي وروسته تر لعان د مېړه او ماينې تر منځ لازمي دى، حكم د طلاق بائن لري عند ابو حنيفة رح ومحمد رح او ابدي حرمت نه فائده كوي، حتى كه وروسته تر لعان مېړه د ځان تكذيب وكړي او حاكم حد قذف وركړي دوى كولاى سي چي نوې نكاح سره وكړي، او په نېز د ابو يوسف، زفر، حسن بن زياد او امام شافعي رحمهم الله دا فرقت بلا طلاق دى چي حكم د لعان او

تحریم یې مؤبد دی، بیا ددې دوو اجتماع ابدًا نه سي کېدای.

**درویش وایي:** چي امام مظهري رح په دې ځای کي دده تر مرتبه ډېره لوړه خبره کړې ده. که فرضًا درویش دا خبره کړې وای خلګو او ملایانو به د خولې په خبرو سنګسار کړی وای، دا دی د مظهري تفسیر عبارت جزء (۱۸) ص (۴۶۲) سورة النور. والعجب من الشافعي ومن معه ان اللعان عندهم یمین. بیا ده دا تعجب څرګندی دی. وروسته یې ویلي دي: والعجب من ابی حنیفة رح بیا ده ددې تعجب دلیل ویلی دی آه.

**درویش وایي:** چي اعتراض خو پر بعض مسئلو د امامانو رحمهم الله امکان پذیر او عادي خبره ده. لکن دا عبارت دده قلت والعجب آه الی اخیره کمامر د تعجب ور خبره ده، او میداند کار او میداند.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ وَاَنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ حَكِيْمٌ ﴿۱۰﴾

که نه وای فضل د خدای جل جلاله پر تاسي یعني یا امة محمد صلی الله علیه وسلم (ورحمته وان الله تواب) بنده چي رجوع له معصیت څخه وکړي چي د توبې معنی ده او اظهار د ندم او پښېماني وکړي او طلب د مغفرت د خدای جل جلاله وکړي، نو خدای جل جلاله رجوع د تعذیب څخه د بنده په دنیا او په اخرت کي رجوع ورحمت او مغفرت ته کوي کما هو معنا التوبة اذا نسب الی الله تعالی (حکیم) حکمت لري فیما فرض علیکم من الحدود وغیرها من الاحکام الشرعیة. وجواب لولا محذوف یعني لفضحکم یعني تاسي به یې رسوا کړي وای. یا لعاجلکم بالعقوبة یعني في الدنیا. یو محقق شاعر وایي:

گر توبه مددکار گناه کار نبودی ...... او را که بسرحد کرم راه نمودی
ورتوبه نبودی که در فیض کشوری ...... زنگ غم از آئینه عاصی که زدودی

اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْ بِالْاِفْكِ

په تحقیق هغه کسان چي راتګ یې کړی دی په ابلغ د مایکون کذبًا او افتراء یې هم بولي. او بعض اهل لغت وایي چي افک مطلق دروغو ته وایي او بعض علماء وایي چي افک نا ببره بهتان ته وایي.

**فائده**: مراد په آيت کي هغه دروا‌غ دي پر صديقه بن الصديق ام المؤمنين عائشة رضى الله تعالى عن ابيها وعنها، يعني بهتان د زنى كما سيئاتي في التفسير، نو لام لپاره د عهد دى.

**فائده**: په لفظ کي جاؤا اشاره ده چي دغو خلکو دا درواغ د خپله ځانه ترلي وه هيڅ اصل يې نه درلود دی.

**درویش وايي**: چي تفصيل د قصې د افک مذکور په ټولو تفاسيرو کي راغلی دی، بعض مفسرينو ډېر اطناب کړی دی او بعضو قدر الحاجة اقتصار کړی دی، تفصيل القصة ما اخرجه البخاري وغيره عن عروة عن عائشة رضي الله عنها، دا مبارکه وايي چي د عليه الصلوة والسلام عادت مبارک دا ؤ چي په يو سفر به روانېدی د ازواج مطهراتو ترمنځ به يې قرعه اندازي وکړه چي په پښتو يې اسکه او پچه بولي.

**درویش وايي**: چي قرعه اندازي په ټوله نړۍ کي رواج لري او د مختلفو کارو لپاره يې خلک کوي مثلاً د حج په موسم کي چي حاجيان ډېر وي حکومت قرعه کشي کوي.

**پوښتنه**: په فقه شريفه کي وايي چي څوک چي متعدد زوجاتي لري او دی په سفر ځي هره يوه چي دده خوښه وه ورسره بودې ځي، ولي چي په سفر کي حقوق د شب ګزارۍ ساقط دی، نو عليه الصلوة والسلام د څه لپاره قرعه کوله؟

**ځواب**: عليه الصلوة والسلام د تطييب د زړو د ازواجو مطهراتو رضي الله عنهن کوله. بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چي عليه الصلوة والسلام چي قصد د غزوه بني المصطلق وکړی چي غزوه د مريسيع يې هم بولي، بني المصطلق يوه برخه وه د خزاعة قبيلې څخه او مريسيع د يو ځاه نوم دی چي بني المصطلق پر پراته وه او دا غزا په پنځم کال د هجرت نبوي واقع سوه، د حجاب او ستر تر نازلېدلو وروسته ولي چي نزول د حجاب په سنه درې هجري کي واقع سوی دی، نو عليه الصلوة والسلام چي قرعه وکړه زما سهم يعني نوبت وختی، نو زه د عليه الصلوة والسلام سره ووتم سفر ته لکن زه په کجاوه کي پر اوښ بارول کېدم او راکښته کېدم به يعني هغه کسان چي پر دې کار عليه الصلوة والسلام ګمارلي وه، دا وايي چي عليه الصلوة والسلام چي فارغه سو له نوموړي غزاء څخه او د مدينې منورې پر لور په حال د

ستنبدو ؤ او مديني منورې ته هم رانژدې سوي ؤ، يو شپه يې اعلان وکړی د کوچ وبار، زه راهي سوم لپاره د قضاء الحاجة حتی چي تر لښکر ووتم. نو چي له حاجت څخه فارغه سوم او د کجاوې ځای ته راورسېدم چي پر ځيګر مي لاس تېر کړی زما غاړګی له غاړي څخه شکېدلی وه چي دا غاړګی د جزع ظفار وه.

(درويش وايي: چي ظفار بالفتح پر وزن د قطام نوم د يوښار په يمن کي نژدې و صنعاء ته. او جزع بالفتح وسكون الزاي، الحزر يعني دانې يماني چي ښځي يې وپېي په غاړه کوي يې تور او سپين رنګ ددې دانو مشابهت د سترګو سره دی كما في القاموس) نو قيمت د هغې غاړګی په هغه وخت کي دوولس درهمه ؤ يعني قيمتي غاړګی وه)

نو زه بېرته په توره شپه د هغې غاړګی په تلاش پسي ووتم او لاس مي تېر اوه. نو له دې کبله ډېره وځنډېدم، نو هغه کسان چي زما کجاوه يې پر اوښ باندي کوله هغه راغلي وه زما کجاوه يې پر اوښ باندي کړې وه.

**سوال:** هغو څرنګه خالي کجاوه پر اوښ باندي کوله، په کجاوه کي چي انسان وي هغه خو درنه وي، نو دوی ته دا درک ولي نسو معلوم چي کجاوه خالي ده؟

**ځواب:** ددې سوال مقدر په جواب کي عائشه ﵂ داسي ويلي دي وهم يحسبون اني فيه (ددوی دا ګمان ؤ چي عائشه پکښې سپره سوې ده ولي چي اعلان د کوچ وختي سوی ؤ، او بل د تلوار کار ؤ، دا وايي چي ښځي عموما په دغه وخت کي خفيف اللحم او ډنګري وې، ولي قليل د طعام ور رسېدی، و عادي خبره ده چي چاغ والی وكثرة اللحم د کثرت خوراک څخه پيدا کېږي او په عين حال کي هغه هم چرب لکه غوښې وغيره، كما في انسان العيون چي د کتاب نوم دی) فلم يستنكروا خفة الهودج حين رفعوه، او بل علت دې دا هم ووايه وكنت جارية حديثة السن. تعني ښځي چي چاغېږي وكذالک الرجال چر تر عنفوان شباب ورتېرسي کما يدل عليه التجربة الغالبة في الرجال والنساء.

نو ډېر وخت وروسته چي ما غاړګی پيدا کړه چي راغلم لښکر ټوله بار سوی ؤ او پر ميدان نه داعي او نه مجيب پاته دی. نو ورغلم هغه د کجاوې د ځای سره نژدې کښېنستم يعني زه دمخه هم دالته وم په دې ګمان چي لښکر هر وخت چي د

قیلولې لپاره تم سي زما تلاش به وکړي زه به نه یم نو حتمًا تر دغه منزله چي بېگاه
پېه موږ پر وو علیه الصلوة والسلام به سړی را واستوي، صدیقه عائشه رضي الله عنها
وايي چي يو کړی پر هغه ځای ناسته وم (غلبتني عيني) يعني سترګي مي غالبه او
پټي سوې، نو بيده سوم.

**درويش وايي:** چي دغه دی قوي زړه چي په تور دښت کي بې کسه ناسته او
بيده سوه.

دا وايي چي صفوان بن المعطل السلمي ثم الذكواني رضي الله عنه د لښکر وروسته
راروان ؤ امام قرطبي په خپل تفسير کي وايي وكان صاحب ساقة رسول الله صلى الله عليه وسلم
وكان من خيار الصحابة انتهى، يعني د صفوان رضي الله عنه عادت قديمه دا ؤ چي په هر
لښکر کي به دی شامل ؤ دی به يوازي ؤ که به لښکر د شپې پر يو ځای اړولي وه ده
به سهار هغه ځای ته ځان راورساوه که به کوم شی له لښکره پاته سوی ؤ ده پسي
وړتولاوه، وهذه الوحدة لغاية الشجاعة. دا وايي چي صفوان رضي الله عنه په تاريکه کي د
اول د صبح زما د خوب ځای ته ځان راورساوه. نو چي ده يو شخص بيده وليدی،
نو ماته راتږدې سو زه يې وپېژندلم ولي چي زه يې قبل الحجاب ليدلې وم،
فاستيقظت باسترجاعه، زه له خوبه راويښه سوم په انا لله وانا اليه راجعون، نو ما
خپل مخ په پوړنې پټ کړی.

**پوښتنه:** چي کلمه د استرجاع د مصيبت په وخت کي ويل کېږي، دلته څه
مصيبت نازل ؤ؟

**ځواب:** تر دې به لوی مصيبت څېړي وي چي د عليه الصلوة والسلام حبيبه ام
المؤمنين عائشه رضي الله عنها په تور دښت کي يکتنها شپه تېره کړې وه، دا وايي: والله
ماكلمني كلمةً ولاسمعت منه كلمة غير استرجاعه (يعني دومره احتياط کار کامل
مسلمان ؤ چي د صورت حال د پوښتني څخه يې حجاب د دوو شونډانو
راوځراوه) اوښه يې چوکه کړه او پر زنګانه يې پښه ورکښېښول، نو زه ولاړه سوم
پر اوښ سپره سوم ده تر مهار ونيوی او راهي سو. نو موږ لښکر ته ورورسېدلو په
داسي حال کي في نحر الظهيرة يعني په وسط کي د غرمې چي لمر پر غاية ارتفاع
ؤ يعني نصف النهار.

**درویش وايي:** چي د عبدالله بن ابي بن سلول چي په دې غزاء کي سره د منافقينو ملګرو شامل ؤ دا يې عمري او دائمي عادت ؤ چي د نور لښکر چي صادق مسلمانان به وه دوی به ګوښه وطاق نيوی، ولې چي د منافقانو دا عادت ؤ چي بهتان او دروغ به يې پر عليه الصلوة والسلام ويل الی غير ذالک کما نص به القرآن المجيد في مواضع عديدة ونزلت فيهم سورة المنافقين علحدة، دا وايي فهلک من هلک وکان اول من تولی الافک عبدالله بن ابي بن سلول رئيس المنافقين، ولې پر هغه اوښ چي زه سپره وم او صفوان رضی الله عنه يې مهار کشاوه پر منافقينو چي تېرېدله عبدالله بن ابي خلګو ته وويل چي دا ښځه څوک ده چي پر اوښ سپره ده؟ خلګو ورته وويل عائشه رضي الله عنها. ابن ابي وويل: فجربها ورب الکعبة يعني صفوان زنی ورسره کړې ده په رب د کعبې مې دې قسم وي، عائشه رضي الله عنها وايي چي مدينې منورې ته زه راغلم زه يوه مياشت ناجوړې سوم والناس يضيفون في قول الافک (او خلګو بحثونه کول په خبرو کي د افک يعني د دروغو د زنی زما) او زه په هيڅ نه وم خبره په دې موضوع د افک پر ما مګر يو شي زه په شک کي اچولې وم په دې ناجوړی کي هغه دا چي عليه الصلوة والسلام هغه د مهربانی پوښتنه پر ما نه کوله لکه پخوا چي به زه ناجوړې سوم ده به په ډېره مهربانی سره پر ما پوښتنه کوله لکن په سبب يې نه پوهېدم، صرف به عليه الصلوة والسلام زما حجرې ته راغلی سلام به يې وو ايه دا قدر به يې وويل کيف تيکم څرنګه يې بيرته به ووتی، نور په سر د عدم لفظ د عليه الصلوة والسلام نه پوهېدم حتی خرجت هغه چي جوړه سوم فخرجت مع ام مسطح وه صحرا ته لپاره د قضا حاجت وبيابان ته او هغه زموږ د ښځو د قضا حاجت ځای ؤ او موږ ښځي نه وتلو و هغو صحراؤ ته لپاره د قضا حاجت مګر د شپې له خوا او دا هغه وخت ؤ چي د قضاء حاجت ځايونه نژدې و کورو ته موږ نه درلوده، او زموږ د قضاء حاجت رواج دا اول عربو ؤ چي د حاجت لپاره به صحراء ته تلو، او موږ ته يې خوند نه راکاوه چي کنف يعني د قضاء حاجت ځايونه نژدې و بيتو ته جوړ کړو، نو لکه عرب اول صحراء ته به تلو، قالت رضي الله عنها فانطلقت انا وام مسطح وهي ابنة ابي رهم بن عبد مناف او مور د ام مسطح بن صخر بن عامر خاله د ابوبکر الصديق رضی الله عنه وه چي قضاء حاجت مو وکړی او د کور پر خوا ا

رواني ؤ د ام مسطح پښه په پوړني كي ښده سوه او غځاره سوه، دې داسي وويل تعس مسطح هلاک دي وه مسطح يعني خپل زوی ته يې ښېرا وکړه.

**درويش وايي:** چي دا د عربو عادت ؤ چي يو تكليف به ورپېښ سو هغه چا ته به يې ښېرا كول چي دده به بد ځندي راتله، عائشه رضي الله عنها وايي چي ما ورته وويل بئس ماقلت، ولي تا ښېرا او ناسزا وويل و هغه چاته چي هغه له غازيانو ځنځه د بدر ؤ يعني مسطح؟ دې راته وويل ای هنتاه الم تسمعي ما قال؟ تا نه دي اورېدلي چي مسطح په تا كي څه خبري كړي دي؟ قلت ماذا؟ نو ام مسطح د افک موضوع بيان كړه يعني خلكو پر تا الزام د زنی لګولی دی د صفوان سره او مسطح هم په دغه الزام كي ګډون درلودلی دی، عائشه رضي الله عنها وايي فازددت مرضًا الى مرضي، يعني د پخوا پر ناجوړي مي بله ناجوړي بالا سوه چي دا خبر مي واورېدی فلما رجعت الى بيتي او عليه الصلوة والسلام حجرې ته راغلی او د دمځه پوښتنې پر لهجه يې وويل كيف تيكم، ما ورته وويل چي ته اجازه راكوې چي د پلار او مور كور ته ولاړه سم؟ دا وايي چي زما اراده دا وه چي زه د مور او پلار ځنځه ددغه افک پوره معلومات وكړم. نو عليه الصلوة والسلام اجازه راكړه ويل ولاړه سه، فجئت ابوي فقلت لامي يا امتاه ما يتحدث الناس؟ يعني په ما كي دا خلک څه خبري كوي؟ دې راته وويل يا بنية هوني عليک پر ځان دا خبره سپكه كړه، فوالله لقلما كانت امرئة وضيئة (ښائسته) عند رجل يحبها (يعني عليه الصلوة والسلام) ولها ضرائر (يعني نوري ماينې چي په ښځتو يې بوني بولي) الا كثرن عليها (نو پر هغې به بوني دېري خبري كوي) يعني مور يې نسبت د دېر والي ددې افک د بنو له خوا وباله، كه څه اصل د افک ابي واصحابه وه) نو عائشه رضي الله عنها مور ته وويل سبحان الله (كلمة مؤسس يستعمل في مقام التعجب) وقد تحدث الناس بهذا) بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چي دا توله شپه ما ستركي په خوب نه كړې توري او نه مي اوښكي درېدلې حتى تر سهاره پوري او سهار مي هم ژړله، نو عليه الصلوة والسلام علي بن ابي طالب او اسامة رضي الله عنهما راوغوښتل يعني د مشورې لپاره چي وحي وځنډېدلې (يوه مياشت) اما اسامة بن زيد فاشار على رسول الله صلى الله عليه وسلم بالذي يعلم من براءة اهله (يعني چي دده وجدانًا دا يقين ؤ چي اهل دده مبارک له زنی ځنځه پاک دی) وبالذي يعلم له في

نفسه من الود (او په دې هم پوهېدی چې په زړه کې د علیه الصلوة والسلام له عائشې رضي الله عنها سره محبت سته) اسامه رضي الله عنه داسې وويل: اهلک ای الزم اهلک وما نعلم الا خیرًا (یعني الزم اهلک مونږ په عائشه رضي الله عنها کې علم نه لرو مګر نه د خیر یعني البرائة من خبث الزنی) واما علي بن ابي طالب رضي الله عنه فقال یا رسول الله لم یضیق الله علیک (خدای پاک پر تا تنګي د ښځو یعني د ماینو نه ده جوړه کړې) والنساء سواها کثیرة وان تسئل الجاریة یعني البریرة هغه به د رشتیا حال درته ووایي. نو علیه الصلوة والسلام بریرة راوغوښتل فقال اي بریرة هل رئیت شیئًا یریبک؟ تا یو شی لیدلی دی یعني پر عائشه چې تا ته یو څه شک درواچوي یعني په باره کې د میل د عائشه رضي الله عنها واجنبي سړي ته؟ بریره ورته وویل لا والذي بعثک بالحق، ما نه دی لیدلی یو شی په دې کې چې زه په عیب جنه سم غیر له دې څخه چې دا جاریه حدیثة السن ده، ګاهې چې د کور اوړه اغږي په دغه حال کې دا بیده سوې وي، کورنۍ مېږه راغلې وي اوړه یې ټول څنډي خوړلي وي، نو په دغه ورځ علیه الصلوة والسلام ودرېدی او داسې یې وویل یا معشر المسلمین، څوک به زما سره مرسته وکړي د یو سړي په باره کې چې دده له خوا ازار ماته زما د اهل بیت په باره کې رارسېدلی دی (غرض یې عبدالله بن ابي بن سلول ؤ، او له اهل بیته یې عائشه رضي الله عنها مراد وه، او له ازار څخه یې مراد درواغ د زنی پوري تړل وه د صفوان رضي الله عنه سره) فوالله ما علمت علی اهلي الا خیرًا (یعني العفة عن الزنی) وقد ذکروا رجلاً ما علمت علیه الا خیرًا یعني صفوان، وما کان یدخل بیتي علی اهلي الا معي (یعني نه داخلېدی زما کور ته مراد یې بیت د عائشه رضي الله عنها ؤ مګر زه به ورسره وم یعني په وخت کې د عدم الحجاب) فقام سعد بن معاذ الانصاري رضي الله عنه سید الاوس، فقال یا رسول الله صلی الله علیه وسلم انا اعذرک منه ان کان من الاوس ضربت عنقه وان کان من اخواننا من الخزرج امرتنا ففعلنا امرک (د هغه په باره کې به ته حکم راکړې مونږ به هغسې وکړو) فقام سعد بن عبادة وهو سید الخزرج وکان قبل ذالک رجلاً صالحًا دمخه دی سم سړی ؤ یعني منافق نه ؤ لکن دلته یې غیرت د قومیت پر جوش راغلی داسې یې وویل یعني و سعد بن معاذ رضي الله عنه ته کذبت لعمر الله (درواغ وایه زما دې په خالق د عمر زما قسم وي) لا تقتله ولا تقدر علی قتله، یعني که زما له قوم څخه وي نه یې ته

وژلای سي او نه هم قدرت پر وژلو دده لري. فقام اسيد بن الحضير چي د سعد بن معاذ رضی الله عنه د اکا زوی ؤ فقال لسعد بن عبادة ته درواغ وايه كه ستا له قومه وي لعمر الله نقتلنه يعني كه عليه الصلوة والسلام امر وكړي فانک منافق متجادل عن المنافقين، مراد يې له منافقينو څخه عبد الله بن ابي او د هغه ملګري وه چي دوی له قومه څخه د سعد بن عباده وه، يو وار دغه دواړه قومه پر قوميت سره ولاړ سوه چي نژدې وه چي په كشت و خون سره اخته سي، او عليه الصلوة والسلام پر منبر ولاړ ؤ او دې دوو قومو ته يې نصيحت كاوه چي پرېږدئ قوم ګلوي او ارام سئ ناړي مه وهئ حتى سكتوا وسكت رسول الله ﷺ.

**درويش وايي**: چي قصه د سعد بن معاذ رضی الله عنه او سعد بن عباده رضی الله عنه او د قومو ددوی يو جمل معترضه وې اوس بيرته د ام المؤمنين عائشه رضی الله عنها و بيان ته غوږ ونسئ:

دا وايي: فمكثت يومي ذالک لا يرقاء لي دمع (په دغه ورځ نه ودرېدلې زما اوښكي) ولا اكتحل بنوم (او نه مي د خوب په رنجو سترګي توري كړې) نو سهار زما مور او پلار راته ناست وه او زما د ژړا دوې شپې او يوه ورځ پوره سوه چي زما نه اوښكي ودرېدلې او نه يوه دقيقه بيده سوم، د مور او پلار مي دا خيال سو چي ناګاه دا ډېره ژړا يې هينه ور وه نه چوي، او يوه بله ښځه د انصارو راغله اجازه يې وغوښتل او ما هم اجازه وركړه، نو هغې ښځي هم زما د ژړا په سبب ژړا شروع كړه، عائشه رضی الله عنها وايي چي موږ پر دا غه حال ؤ چي عليه الصلوة والسلام راغلی سلام يې ووايه او زما د څنګه سره كښېنستی، وروسته عليه الصلوة والسلام وويل اما بعد يا عائشه رضی الله عنها انه قد بلغني عنک كذا وكذا (اشاره يې و قصې ته ددې او د صفوان تر منځ) كه ته ددې زنې څخه پاكه وې خدای پاک به دې پاكي بيان كړي او كه تا دا كار كړی وي فاستغفري الله وتوبي اليه، ولي بنده چي په ګناه سره اقرار وكړي بيا توبه وخدای جل جلاله ته وكاږي خدای پاک يې توبه قبلوي، دا وايي چي عليه الصلوة والسلام چي خبري پای ته ورسولې زما اوښكي ودرېدلې حتى چي يو څاڅكی مي تر سترګو نه راتويېدی، نو پلار ته مي وويل اجب رسول الله ﷺ فيما قال، پلار مي وويل والله ما ادري ما اقول لرسول الله ﷺ بيا مي مور ته وويل چي زما يو جواب و عليه الصلوة والسلام ته ووايه، مور مي راته وويل چي زه پوهېږم

چي رسول الله ﷺ ته زه څه ووايم، دا وايي چي زه و خبرو كولو ته مجبوره سوم. نو ما وويل: اني والله لقد علمت انكم سمعتم هذا الحديث يعني قصد زما او د صفوان تر منځ د زنى كولو، حتى چي دې قصې ستاسي په زړو كي قرار نيولى دى او تاسي يې تصديق هم كړى دى فلئن قلت اني بريئة والله يعلم اني بريئة (او خداى پاک په ما خبر دى چي زه له دې كار څخه پاكه يم تاسي زما تصديق نه كوئ. بلكې وا يا ست چي دروا غ يې وويل ولئن اعترفت بامر (يعني الزنى مع الصفوان) والله يعلم اني بريئة منه لتصدقوني (تاسي تصديق كوئ زما د اقرار) والله لا اجدلي ولكم مثلاً الا قول ابى يوسف فصبر جميل والله المستعان على ماتصفون.

**درويش وايي:** چي ددې له ابي يوسف څخه مراد يعقوب ؑ دئ هغه وخت چي زامنو ورته وويل چي يوسف ليوانو وخوړى، يعقوب ؑ ورته وويل بل سولت لكم انفسكم امرًا فصبر جميل.

**پوښتنه:** عائشې ؓ ولي يعقوب عليه السلام نه ذكر كاوه پر ځاى د ابي يوسف؟

**ځواب:** ددې عذر عائشې ؓ په خپله ويلى دى. ولي دې وويل وانا جارية حديثة السن لا اقرء كثيرًا من القرآن يعني د يعقوب ؑ نوم يې نه ؤ زده او يا ئُندي هېر سو او په قصه د يعقوب ؑ او د زامنو خبره وه.

**درويش وايي:** چي سيدتنا عائشة ؓ چي په حال كي د غايت مجبوريت او د نهايت عجز په حال كي كومك (مرسته) د خداى ﷻ څخه وغوښتل. خداى پاک هم دېر ژر كومک ورسره وكړى.... بيت:

چون فرود آيد بلا بى دافعى ........ جز تضرع نبود ديگر مانعى

بي بي عائشه ؓ وايي ما چي دا خبري وكړې پر خپل ځاى پرېوتم او زما په عين حال كي دا يقين ؤ (سل په سله كي مي دا يقين ؤ) چي زه خو له زنى څخه پاكه يم خداى پاک به زما پاكي و عليه الصلوة والسلام ته بيان كړي، لكن زما دا گمان نه ؤ چي خداى پاک به زما په شان كي وحي نازل كړي چي په قرآن كي به يې تلاوت كېږي. ولي چي ما خپل په زړه كي ځان دېر حقير بالله تر دې چي خداى ﷻ دې زما په برائت وحي نازل كړي. بلكې دا مي گمان ؤ چي عليه الصلوة والسلام ته به په خوب كي زما برائت معلوم سي يعني زما د برائت خوب به ووينې، دا وايي والله

چي علیه الصلوة والسلام له خپل ځايه چې پر ناست ؤ بنوربېدلی هم نه دی او نه چي په خونه کي ناست وه يعني مور او پلار وغيرهم څوک وتلي له خونې څخه ځنې چي پر علیه الصلوة والسلام علامات د نزول وحي ښکاره سوه يعني په رپېدلو سو. او پر مخ مبارک به يې لکه ملغلري داسي خولې راتلې د ژمي په ورځ په سبب د ثقل د وحي الذي ينزل عليه، چي د بخاري په اول کي داسي وحي ته سلسلة الجرس ويل سوی دی. دا وايي: فلما سرى الوحي عن رسول الله ﷺ، دا وايي د علیه الصلوة والسلام چي وحي قطع سوې کښېنستی ود يې خندل او اوله خبره يې دا وکړه يا عائشه اما والله قد برئک. دا وايي چي مور مي راته وويل چي ورولاړه سه وعليه الصلوة والسلام ته، تعني يا يې لاس ورمچ کړه مثلاً يا سلام ورته ووايه الى غير ذالک. دا وايي ما ورته وويل چي والله لا اقوم اليه ولا احمد الا الله. دا له ډېره درده څخه، نو خدای ﷻ نازل کړی ان الذين جاؤا بالافک تر لس آيته پوري تر دوله په دغه باره کي دي.

## عُصْبَةٌ مِّنكُمْ

يوه ډله متعصب ده ستاسي څخه.

**بوه سه:** چي عصبه او عصابه لسو ته تر څلوېښتو پوري وايي چي مفرد له لفظه نه لري.

**بوه سه:** چي الذين جاؤا آه اسم د ان دی او عصبة يې خبر دی.

**سوال:** ځای د فائدې خو خبر وي ، نو په دې اخبار کي څه فائده؟ ولي چي دا اظهر من الشمس ده چي عصبة منكم د جن وغيره نه ده؟

**ځواب:** تنوين د عصبة لپاره د تحقير او تقليل دی يعني حقيرة وهم عبد الله بن ابی واتباعه وان كانوا كثيرًا عددًا، او له مسلمانان عددًا هم يکښي سته لکه مسطح بن اثاثة وحمنة بنت جحش چي د زينب بنت جحش خور وه او د علیه الصلوة والسلام خوښينه وه، عائشه رضي الله عنها وايي چي زينب رضي الله عنها چي د علیه الصلوة والسلام کور والا وه او د عائشي رضي الله عنها بن وه خدای پاک د خپلي تقوی په سبب له شمول څخه په ډله کي د اهل افک وساتل لکن د هغې خور بر خه پکښي واخستل. او بل حسان بن ثابت رضي الله عنه چي شاعر د علیه الصلوة والسلام ؤ لکن د حسان په شموليت کي اختلاف دی. او بل

ځواب دادی چې عصبة کې مقصود تسلي و علیه الصلوة والسلام ته ده په دې معنی چې دا خبره یوه مجمع علیه خبره نه ده بلکې یو شر ذمه منکم ده.

**درویش وایي**: چې دا ځواب و اول ته راجع کېږي کما لایخفی.

**فائده**: کله څه هم په حدیث کې د بخاري حسان بن ثابت رضی الله عنه یکښې حسابل سوی ؤ یعني په ډله کې د اهل افک، لکن په تفسیر روح المعاني کې وایي چې حسان رضی الله عنه د زړه له کومې په نسبت کې د زنې و عائشې رضی الله عنها ګډون نه دی کړی بلکې دی ناقل ؤ له ابن ابی لعنة الله علیه څخه. روح المعاني وایي چې حسان بن ثابت رضی الله عنه خپل عذر په ګډون کې د اهل افک په دې خوږو بیتو ووایه:

حسان رزان ما تزن بر ببة ...... وتصبح غرثی من لحوم الغوافل

حلیلة خیر الناس دینًا و منصبًا ...... نبي الهدی ذی المکرمات الفواضل

عقیلة حی من لوئی بن غالب ...... مهذ بة قد طیب الله خیمها

کرام المساعي مجدهم غیر زائل ...... فان کنت قلت الذي قد زعمتموا

فلا رفعت سوطی الی اناملی ...... وکیف و ودی ما حییت ونصرتی

لآل رسول الله زین المحافل

ابن سعد په خپل تاریخ کې د محمد بن سرین څخه نقل کړی دی چې عائشې رضی الله عنها و حسان ته اجازه د ملاقات ورکول یعني مع الحجاب. او دا به یې هم ویله لاتؤذوا حسانًا فانه ینصر رسول الله ﷺ بلسانه. په حدیث کې د بخاري راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام به منبر کېښېښو وحسان ته یعني د منبر نبوي د کښېنستو اجازه یې ورکړه چې د کفارو د مکې هجو وکړي، ابن جریر په خپل سند سره د عائشې رضی الله عنها څخه نقل کړی دی: دې ویلي دي چې ما نه دی اورېدلی یو شی چې احسن دي وي تر شعر د حسان رضی الله عنه، دا وایي چې هر وخت چې ما دا شعر ویلی دی زما خدای جل جلاله ته قوي امید دی چې حسان به خدای جل جلاله بخښلی وي او ده لره به جنت وي، هغه دغه بیتونه دي چې مخاطب یې ابي سفیان بن الحارث بن عبد المطلب ؤ چې هغه د علیه الصلوة هجو کړې وه حسان یې داسې جواب ورکړی:

هجوت محمدًا واجبت عنه ...... وعند الله في ذاک الجزاء

فان ابی و والدتی وعرضی ...... لعرض محمد منکم وقاء

اتشتمه و لست بکفو ..... شر کما لخیر کما فداء
لسانی صا رم لا عیب فیه ..... و تجری لا تکدره الدلاء

**پوښتنه:** عبد الله بن ابی سره د هم فکرانو لویه برخه په افک کې درلوده، نو په منکم کې څرنګه داخل کړی دی کافرو؟

**ځواب:** لسانًا و ظاهرًا خو دوی مسلمانان وه وان کانوا کفرةً باطنًا.

**مسئله:** که څوک نسبت د زنی وکړي و عائشې ﷞ ته هغه کافر دی باجماع اهل السنة والجماعة لکه غلات الروافض چې دا نسبت کوي، ولې په دې نسبت کې انکار دی لس (۱۰) آیتونه د قرآن عزیز کما سیئاتي بعض تفاسیر وایي چې څلور په څلور شی له تهمت څخه د یو عیب خلاص سوی دی یوسف ؈ له تهمت څخه د زلیخا په وړاندي د عزیز مصر چې ده ماته قصد د زنی کړی ؤ په شاهدي د طفل شیرخوار د قریبانو څخه د زلیخا خلاص کړی، کریمه: وشهد شاهد من اهلها الآیة، او موسی ؈ له تهمت څخه د اُدره یعني چوره چې بني اسرائیلو لګولی ؤ په فرار سره د ډبري چې موسی ؈ لیري ځای په ویاله کي لمبېدی او کالي یې پر ډبري هوري ایښي وه ففر الحجر بثوبه فناداه ثوبی حجر ثوبی حجر پر ډېرو ډېرو مجلسو د بني اسرائیلو تېر سو هغو ولیدی چې چوره نه دی، نو ډبره ودرېدل، او مریمه له تهمت څخه د زنی په سبب د ولادت د عیسی ؈ بغیر اب په خبرو راوستلو د عیسی ؈ خلاص کړه کما في نص القرآن، او عائشه ﷞ په نزول د دغو آیتو خدای ﷻ له تهمته د زنی خلاصه کړه.

## لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَّكُمْ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ

تاسي ګمان مه کوئ (والخطاب للنبي ﷺ والمؤمنین غیر العصبة، ولې چې ښکنځل د عائشې ﷞ راجع ګرځي و رسول الله ﷺ ته خو دی په غمجن کېږي او غم د نبي ؈ راجع دی و ټولو مؤمنانو ته لانه ابوهم لان ازواجه ﷺ لما کانت امهات المؤمنین حیث لایجوز نکاحهم لاحد من امته کان هو ﷺ ابوهم) چې ستاسي لپاره دا شر ده، بلکې دا واقعه چې پېښه سوه ستاسي لپاره خیر سوه (۱) تاسي ته خدای پاک څومره ثواب عظیم درکړی لانه بلاء مبین ومحنة ظاهرة (۲) کرامت ستاسي چې پر خدای ﷻ یې لرئ ښکاره سي چې خدای پاک

په پاکۍ د عایشه ﷺ په قول د روح البیان (۱۸) آیت نازل سوه او په قول د مظهري لس آیته نازل سوه (۳) خدای پاک څومره لوی عذاب وپاکی کما سیأتي (۴) آیتونه د نزاهة د عایشې ﷺ به تر ورځې پورې د قیامت په محرابو کې د مساجدو ویل کېږي او پر منابرو د واعظانو به ویل کېږي.

**یوه سه**: چې جمله د لاتحسبوه جمله معترضه لپاره د تسلي د علیه الصلوة والسلام او د ابوبکر ﷺ او د عائشې او د صفوان او د مور د عائشې ﷺ او د نورو مؤمنانو د هغه وخت.

**لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُم مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ**

(منهم) ای العصبة الکاذبة. ما اکتسب ای جزاء بحذف المضاف د هغه څه چې ده یې فعل کړی وي د ګناه.

**فائده**: د افک اوریدونکي څو قسمه وه (۱) هغه کسان چې لویه برخه یې یکښې اخستې وه او دا یې هم خوښه وه چې ډېره شیوع پیدا کړي، وهم عبدالله بن ابی او دده هم فکران یعني منافقان چې تعداد د نرو او ښځو یې (۳۰۰) ته بالغ ؤ (۲) داسې کسان چې د بل د خولې به یې واریدل او په خوله به یې ویل من تکرار (۳) بعضو به وخندل په خوله به یې هیڅ نه ویل (۴) داسې کسان چې تکلم به یې هم نه په کاوه او رد به یې هم نه کاوه. بغوي رحمه الله وایي چې په حدیث کې داسې راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام امر وکړی چې هغه چاچې رمي د عائشه ﷺ بالزنی کړې وه تو له دې اتیا اتیا درې ووهل سي، دا خو یې دده د دنیا رسوایي وه او جزاء ددوی د رب العزة په اراده پورې تعلق لري.

**وَالَّذِي تَوَلَّىٰ كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١١﴾**

او هغه څوک چې لویه برخه یې پکښې وه او افک ته یې ډېره شیوع ورکوله (له جهته د عداوت د علیه الصلوة والسلام او لپاره د پیغور د مؤمنانو) په دې عصبه کې هغه لره عذاب دی لوی، له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې له الذین تولی کبره څخه مراد عبدالله بن ابی دی رواه البخاري وعلی ذالک المحدثین والمفسرین رحمهم الله.

**درویش وایي**: چې په حسان بن ثابت کې ډېر لوی اختلاف دی لکن قد مر انه لیس

براءي الافک بل ناقله. او حديث منقول د بخاري ښخه دا ثابتوي چي حسان د من
تولى كبره له جملې ښخه دی، والله اعلم بالصواب والتفصيل في روح المعاني
وكذالك تفصيل من حد وكم حد في روح المعاني من الاختلاف فيه فتدبر.

لَوْلَآ إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَٰتُ بِأَنفُسِهِمْ خَيْرًا

لولا حرف تخصيص دی، ومعنى ولې چې تاسي حديث د افک د منافقينو
ښخه اوريدلی وای ايها العصبة المؤمنة يعني مخاطب په ضمير د تم سره عصبة
مؤمنة. عقيده به درلودای هر يوه د مؤمنون يعني رجال او مؤمنات يعني النساء
په خپلو ځانو باندي، مراد له خپلو ځانو اهل دين خپل دي چې دلته سيدتنا
عائشة رضي الله عنها او صفوان رضي الله عنه دي.

**درويش وايي:** چې اهل دين ته انفسکم ويل ښو ځايه په قرآن كريم كي راغلي
دي كريمه: لا تلمزوا انفسكم يعني عيب مه وايه پر ځان يعني پر اهل دين خپل
كريمه: لاتقتلوا انفسكم مه وژنئ خپل ځانونه يعني اهل دني خپل مه وژنئ.
كريمه: وسلموا على انفسكم او سلام وايا ست تاسي پر خپلو ځانو يعني پر اهل
دين خپل. وذالک لان اهل كل دين من الاديان كنفس واحدة.

(خيرًا) د خير ولې چې ايمان مقتضي د حسن ظن دی پر مؤمنانو او مؤمناتو. او
ايمان باعث بايد وي پر ځان ساتلو له طعن ښخه پر مؤمنين او مؤمناتو بلكې لكه سړی
چې دفع د طعن له خپل ځانه كوي بايد د دينې ورونو او خوندو ښخه يې هم وكړي.

وَقَالُوا۟ هَٰذَآ إِفْكٌ مُّبِينٌ ﴿١٢﴾

ويلې به وای عصبة مؤمنة چې دا خبره دروغ ده ښكاره.

**سوال:** په سمعتموه كي خو عصبة مؤمنة مخاطب ده نو د وروسته عبارت حق
دا ؤ ظننتم بانفسكم؟

**ځواب:** هو! په عدول كي له خطاب ښخه وغيبت ته چې په ځای كي د ضمير د
مخاطب لفظ د مؤمنون والمؤمنات ذكر سوؤ او په نحو او معانيو كي وايي چې
تعليق د حكم په مشتق سره دلالت كوي پر علتيت د مبدء الاشتقاق د هغه لپاره
حكم معلق بالمشتق يعني ظنوا وقالوا آه فافهم.

**مسئله:** له دې آیته دا معلومه سوه چې حسن ظن پر مؤمنینو او مؤمناتو واجب دی تر هغو چې په دلیل شرعي سره خلاف د هغه نه وي ظاهر سوی.

## لَوْلَا جَآءُوْ عَلَيْهِ بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ ۚ

ولې دوی یعني قائلانو د افک پر دې خپله دعوه څلور شاهدان نه راوستل حتی پر مقذوف به حد زنی ثابت سوی وای.

## فَاِذْ لَمْ يَاْتُوْا بِالشُّهَدَآءِ فَاُولٰٓئِكَ عِنْدَ اللّٰهِ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ﴿۱۳﴾

نو چې دوی راتګ نه وکړی په شاهدانو یعني څلور، نو دوی په نېز د خدای ؒ دروا غ ویونکي دي، نو پر دوی اتیا اتیا درې حد د قذف لازم سو کمامر. ددې دلیل دادی چې دعوه کونکی د زنی پر چا چې څلور شاهدان راولي او هغه مقذوف ته حد زنی ورکړه سي، نو دی ویلای سي چې ما دغه دعوه د زنی سره د شاهدانو وکړه غرض مي ثواب ؤ تاچې له منهیاتو څخه لکه زنی خلګ پرهېز وکړي او چې شاهدان نه لري، نو دی چې دعوه د زنی پر مؤمن کوي غرض یې اشاعة د فاحشة الزنی دی پر مسلمانانو دون اقامة حد شرعي پر مقذوف، نو دی دا نه سي ویلای چې ما دا اظهار حسبة لله وکړی تاچې مسلمانان دي زجر سي. ولې دده په دغه دعوه صرف سره د زنی پر یو چا بېله شاهدانو خو پر هغه حد زنی نه جاري کېږي تا زجر د نورو خلګو وکړل سي، نو چې دده هدف صرف او صرف اشاعت د فاحشه ؤ پر مؤمن نو دی مستحق د اتیا درو حد قذف دی، بغوي ؒ له عائشې ؓ څخه روایت کړی دی انه لما نزلت هذه الآیة حد النبي ﷺ اربع نفر. عبدالله بن ابي (بعض وایي دوه حده یې وکړه، بعض وایي یو حد یې ورکړی و حسان بن ثابت ته و مسطح بن اثاثة و حمنة بنت جحش.

**درویش وایي:** چې له دې آیت څخه دا ثابتېږي چې حسان بن ثابت په قاذفانو کې صراحةً داخل ؤ، وهذا مایقتضیه حدیث البخاري ایضًا، او که حسان بن ثابت که د ناقلانو څخه د قذف ؤ د منافقینو د خولې کمامر نو ده ته حد قذف ورکول مشکل دی.

# وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ

که فضل د خدای ﷻ نه وای پر تاسي الایمان بنبي علیه السلام. او رحمت د خدای ج په دنیا کي په قسم قسم نعمتو سره چي اعلی د ټولو نعمتو یې توفیق د اسلام دی او بل نعمت عظمی په شرف د صحبت د نبي علیه السلام چي هغه مانع د نزول دی او سبب د امهال دی تر توبې پوري (والآخرة) عطف دی پر دنیا فالتقدیر ولو لافضل الله علیکم آه.

**یوه سه:** چي فضل د آخرت یې عفو او مغفرت د ګناه دی او الجنة الحسنی دی.

# لَمَسَّكُمْ فِي مَا أَفَضْتُمْ فِيهِ عَذَابٌ عَظِيمٌ

تاسي ته به رسېدلی وای ایها العصبة في الدنیا والآخرة په سبب د هغه چي تاسي خوض پکښي کاوه، وقیل افاضة په معنی د اشاعت ده لکه چي د حدیث مشهور په باره کي چي وایي خبر مستفیض ای شائع (عذاب عظیم) لکه عاد او ثمود او قوم لوط في الدنیا وفي الآخرة ما لا انقطاع او هیڅ عذاب تر دغه بالا نه وي.

**یوه سه:** چي دا آیت په شان کي د مؤمنیونه د اهل افک چي وړاندي تېره سوه چي په افک کي بعض مؤمنان هم داخل وه، او هغه دمخه آیت والذي تولی کبره منهم له عذاب عظیم هغه خاص دی په اهل نفاق پوري وهو عبدالله بن ابی بن سلول ومن معه.

**یوه سه:** چي په علم معانیو کي وایي چي لو لا لامتناع الشئ لوجود غیره نحو لو لا زید لقتل عمرو یعني که نه وای وجود د زید عمرو به وژل سوی وای، یعني عدم وژل د عمرو په سبب د وجود د زید دی، نو په دې آیت دلالت پر دې دی چي عذاب ممتنع وګرځېدی یعني نسو نازل په سبب د وجود د فضل او رحمت د خدای. بعض مفسران وایي چي دلمسکم په خطاب کي ابن ابی هم داخل دی هغه سهو ده، ولي چي ابن ابي خو د فضل او د رحمت په دنیا او آخرت کي اهل نه دی.

# إِذْ تَلَقَّوْنَهٗ بِأَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُولُونَ بِأَفْوَاهِكُمْ مَا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ

**یوه سه:** چي اذ ظرف دی د مسکم یا د افضتم، اصل د تلقونه تتلقونه ؤ و حذف احدی التائین، یعني تاسي چي دا حدیث الافک یو له بله څخه به مو پوښتنه کول په ژبه مثلاً یوه و بل ته به ویل چي ما خو داسي اورېدلي دي یعني د عائشه رضی الله عنها په باره

کي دغه اوس څرنګه قصه وه حتی چي د دغو پوښتنو ګروپېدونو په سبب به داسي کور په مدینه منوره کي نه وُچي د افک خبري دي نه پکښي کېدي په بعضو کي به استفهامًا کېده او په بعضو کورو کي انکارًا کېده او په بعض کورو کي تعجبًا کېده او په بعضو کي تصدیقًا کېده لکه د ابن ابي او د ده د اتباعو کورونه.

او تاسي په خولو یعني په ژبو هغه خبري کولې چي تاسي علم نه پر درلودی یعني د افک موضوع صرف د خولې خبري هیڅ مصداق یې نه درلودی، نو خود ستاسي پر هغو علم نه وُ لان العلم بالشئ فرع وجوده.

وَتَحْسَبُونَهُ هَيِّنًا وَهُوَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمٌ ﴿١٥﴾

او تاسي به ګمان کاوه چي په حدیث الافک کي خبري اترې یو عادي مجلس دی او آسانه کار دی بازپرس به په اخرت کي نه لري او حال دا دی چي دا خوض او بحث کول لویه ګناه ده او موجب د غضب الهي ده، ولي چي قذف کمامر في الکلام المجید من کبائر الذنوب التي یصدر من الالسن.

**پوه سه:** چي د زنې جرم (یعني جسم) کوچنی دی او جرم بالضم. او ګنهونه یې دي کالغیبة والبهتان والکذب وکلمات الکفر والشتم القبیح والنمیمة وغیر ذالک، او قذف المحصنات فیما نحن فیه خصوصًا چي په هغه هتک د حرمت د رسول الله ﷺ وي اعاذنا الله عن امثال ذالک.

دا هم د ژبي په باره کي حدیث نبوي ﷺ د معاذ بن جبل رض څخه روایت دی چي ما و علیه الصلوة والسلام ته وویل یا رسول الله ﷺ اخبرني بعمل یدخلني الجنة ویباعدني عن النار، علیه الصلوة والسلام راته وویل د لوی عمل پوښتنه دي وکړه وانه یسیر علی یسر الله علیه (۱) تعبد الله (۲) ولاتشرک بالله شیئًا (۳) تقیم الصلوة، ای الخمسة (۴) وتؤتی الزکوة (۵) وتصوم رمضان (۶) وتحج البیت یعني ان ستتطیع الیه سبیلاً، بیا علیه الصلوة والسلام راته وویل الا ادلک علی ابواب الخیر، دروازې د خیر نه درونښیم، هغه دادي الصوم جنة (روژه سپر دی د ګنهو) والصدقة تطفئ الخطیئة کما یطفی الماء النار (او صدقه که فرضي وي او که نفلي وي ګناه وژني یعني نیستي کوي یې لکه چي وژني اوبه اور) وصلوة الرجل في جوف اللیل (او لمونځ د شپې په منځ کي چي تهجد یې بولي چي په

حدیث صحیح کي راغلي دي چي بهترین د نفلي لمونځو صلوة التهجد دی.

**درویش وایي:** چي هم دا سبب دی چي په حرمینو شریفینو کي د تهجد لپاره علحده او باقاعده آذان کېږي.

او بیا علیه الصلوة والسلام پر طور د لیل پر فضیلت د صلوة التهجد دلیل راوړی تتجافی جنوبهم عن المضاجع حتی بلغ یعملون. معاذ بن جبل رض وایي چي بیا ماته علیه الصلوة والسلام وویل: الا ادلک براس الامر وعموده راس الامر الاسلام وعموده الصلوة وذروة سنامه (او بوک سر یې یعني د اوښ د بوک سر چي تر ټوله جسد د اوښ لوړ ځای دی) الجهاد یعني في سبیل الله مع الکفرة. ثم قال اخبرک بملاک ذالک کله یعني زه خبر نه کړم تا په مدار او موقوف علیه سره د دغو ټولو شیانو او اعمالو چي ذکر سول؟ قلت بلی. راته بیان یې کړه دا املاک یا رسول الله. نو علیه الصلوة والسلام خپله ژبه مبارکه په ګوتو ونیول. وقال کف لیک هذه. دغه ژبه دي منع کړه یعني له قبائحو څخه چي تعلق لري په ژبه پوري لکه درویش چي انموذج د هغو آنفًا بیان کړی. قلت و انا مواخذون بما نتکلم به. علیه الصلوة والسلام راته وویل ثکلتک امک یا معاذ نیستي دي کړي تا مور ستا یعني مور دي درباندي بوره سي دا یې پښتو ژباړه ده.

**درویش وایي:** چي دا جمله په عربي ژبه کي د ملامتیا په وخت کي پر ځا استعمالېږي او حقیقت ښېرا نه ده ځندي مراد. چي په پښتو کي هم ورته الفاظ او جمل سته چي حقیقت یې نه وي مراد بلکي ملامتیا پر یو ځا. مثلا پلار چي زوی ته وایي ملا دي ماته سه. کور دي خراب سه. په سترګو روند سې. د بابا مېنه دي ونړېږه وامثال ذالک. بلکي په هره ژبه کي ورته الفاظ سته کما لایخفی علی المتتبع.

وهل یکب الناس في النار علی وجوههم او علی مناخرهم الاحصائد السنتهم رواه احمد والترمذي وابن ماجه: ترجمه: علیه الصلوة والسلام د معاذ رض د سوال په ځواب کي چي ده ورته وویل وانا مواخذون داسي وویل: هل یکب کلمة د هل استفهام انکاري دی یعني نه غورځوي خلک په اور کي یعني په دوږخ کي پر مخانو باندي او یا پر پزو باندي (د راوي شک دی) مګر نه هغه شی چي ددوی ژبو ریبلي وي لکه د غنمو درختي چي په لور خلک ریبي یعني ددوی د ژبو څخه صادر

سوي الفاظ او خبري لکه کلمات د کفر، درواغ، بهتان، نميمه، شتم وغيرها.

وَلَوْلَآ إِذْ سَمِعْتُمُوهُ قُلْتُم مَّا يَكُونُ لَنَآ أَن نَّتَكَلَّمَ بِهَٰذَا

ولې تاسي په هغه وخت کې چې د افک او باطل خبره مو له منافقانو څخه اورېدلې وای (مخاطب مؤمنان دي) تاسي مؤمنانو به د منافقانو د قول په رد کې ويلي وای موږ لره نه ښايي او موږ لره صحيح او جائز نه ده چې موږ دې خبرې وکړو په دې افک کې د عائشه ﷺ. ولې چې متهمول د صديقه بنت الصديق حرم رسول الله ﷺ په زنې سره ډېر سخت اثر کوي پر نفسو سليمه وو چې مؤمنان دي. ولې چې متهمول په زنې سره د مطلق پاکې ښځې حرام دی شرعًا او موجب د جلد دی او د رد شهادت د قاذف ابدًا فما حال قذف سيدة النساء عائشة ﷺ.

سُبْحَٰنَكَ

پاکي ده خدای ﷻ لره له دې څخه چې حرم د نبي محترم دې فاجرة وي، ولې چې فجور د زوج النبي ﷺ په حقيقت کې سب دی د رسول الله ﷺ، او حال دا دی چې د مطلق نبي د بعثت و کفارو ته حکمت الهي دا دی چې هغه و کفارو ته دعوت ورکوي د ايمان، نو بايد د نبي سره د نفرت د خلکو شی نه وي موجود، وهو فجور زوجته. البته دا روا ده چې د نبي ماينه دې کافره وي لکه د نوح ؑ يوه ماينه يا د لوط ؑ ماينه، ولې چې کفر په نېز د کافرانو عيب نه دی او فجور او فحاشي عيبٌ عند الناس كلهم.

هَٰذَا بُهْتَٰنٌ عَظِيمٌ ﴿١٦﴾

هذا داخل تحت قلتم، چې دا نسبت د فجور و عائشې ﷺ ته بهتان دی يعني بې ځايه درواغ دي او ډېر لوی بهتان دی. ولې چې د دې بهتان اثر پر سيد البشر ؑ او د ده پر حرم اطهر او پر صديق اکبر ؓ بلکې على سائر المؤمنين واقع کېږي.

يَعِظُكُمُ ٱللَّهُ

خدای ﷻ تاسي ته وعظ کوي.

**يوه سه:** چې وعظ په لغت عربي کې زجر دی د يو چا د يو بد کاره څخه چې بيرول د عذاب هم ورسره ملګري وي. او خليل نحوي وايي چې وعظ تذکير بالخير فيما له القلب.

اَنۡ تَعُوۡدُوۡا لِمِثۡلِهٖۤ اَبَدًا اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ﴿۱۷﴾

ددې وعظ درته کوي چي ومثل ته ددې قول قبيح په شان کي د عائشي ﷺ مه ورګرځئ نه په قول سره او نه په اورېدلو د يو چا څخه تر ابده پوري يعني تر څو چي ته ژوندي يې. په شرط ددې که تاسي مؤمنان ياست.

**فائده:** دا شرط جزاء نه غواړي ولي چي جزاء يې له ماقبل څخه فهمېږي يعني ان تعودوا لمثله.

**درویش وایي:** چي ددې شرط فائده داده چي ايمان وال خو دا سب (بدګنځل او بد ويل) نه کوي، ولي چي ايمان د داسي سب ثقيل مانع دی بالکلية.

**مسئله:** روافض چي دا سب جائز بولي او افک واقع بولي مؤمنان نه دي لمخالفتهم لصريح القرآن.

وَيُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الۡاٰيٰتِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ ﴿۱۸﴾

او بيانوي خدای ﷻ ايات چي دلالت پر شرائع الاحکام کوي، او خدای ﷻ ښه علم لري پر هر شي او پر ټولو احوالو د بندګانو چي له جملې څخه د هغو احوالو حال د برائت د عائشي ﷺ او حال د کذب د قاذفينو دی (حکيم) په هر کار کي حکمت لري.

اِنَّ الَّذِيۡنَ يُحِبُّوۡنَ اَنۡ تَشِيۡعَ الۡفَاحِشَةُ فِى الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ۙ فِى الدُّنۡيَا وَالۡاٰخِرَةِ ؕ وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ وَاَنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۱۹﴾

په تحقيق هغه کسان چي محبت لري وهم المنافقون ههنا چي شائع کړي فاحشه (يو لوی ډېر بد کار لکه دلته قذف د عائشي ﷺ) په هغو کسانو کي چي ايمان يې راوړی وي دوی لره دی عذاب درد ورکونکی په دنيا کي په حد قذف سره يعني اتيا درې وهل چي د خوړېدلو سره سره د دنيا رسوايي هم ورسره ملګرې ده او په اخرت کي په اور سره.

(والله يعلم) بالامور الظاهرة للناس والغائبة منهم او ببرائة عائشة ﷺ وكذب القاذفين. نو ځکه به خدای ﷻ و قاذفينو ته عذاب شديد ورکړي او مقذوفينو ته به اجر عظيم ورکړي. او تاسي اې خلکو نه ياست خبر، نو تاسي بايد ظاهر الامر وګورئ نو که يو چا بل نر يا ښځه متهم په زنی کړه او څلور شاهدان يې هم پر تېر

کړه، نو تاسي پر ده بنه ګمان وکړئ چي دې سړي د ثواب لپاره دا کار کړی دی چي يو خو اقامت د حدود د خدای ﷻ راسي او بل د خلکو زجر له زنئ څخه، او بل عامل به د شر او فساد څخه د زنئ خلاص سي، او که يې قذف وکړی لکن شاهدان يې نه درلودل، نو دی د هغې جملې څخه وبولئ چي اشاعت د فاحشه په مؤمنانو کي غواړي، نو ده ته عذاب ورکړئ په حد قذف وهو في حکم القرآن من الکاذبين حتى الزم عليه حد المفترين وان کان في الواقع من الصادقين لان مبنى الاحکام القرآن على الظواهر وعند الله علم السرائر.

**وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ وَاَنَّ اللّٰهَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿٢٠﴾**

که نه وای فضل او احسان د خدای ﷻ پر تاسي يعني المؤمنين الخائفين في امر عائشة رضي الله عنها او رحمت د خدای ﷻ او دا چي خدای پاک بخښونکی دی د مؤمن د ګناه يعني بعد التوبة او قبل التوبة ان شاء.

ګر تو به مدد کار ګناه کار نبودی ..... که اورا بسرحد کرم راه نمودی
ور توبه نبودی که در فيض کشادی ..... زنګ غم از آئينه دل که زدودی

**پوه سه:** چي جواب د لولاء محذوف دی ای لفضح کم يعني تاسي به يې رسوا کړي وای بالعقوبة في الدنيا وفي الآخرة بالنار المؤبدة لکن خدای ﷻ تاسي ته مع ارتکابکم الجرم العظيم غفرلکم ذالک ببرکة صحبة نبيه ﷺ مع الايمان، وانما قيدنا بقوله مع الايمان لان صحبة المنافقين لا تشملهم ثمرة المغفرة، ولي چي کفر د زړه مانع د مغفرت دی.

**فائده:** جواب د لولاء يې حذف کړی استغناء عنه بذکره مرة.

**پوښتنه:** خدای ﷻ پېرزول د مؤمنانو چي په افک کي د عائشې رضي الله عنها يې ګډون کړی وُ او احسان پر دوی يې مکرر راوړی حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** حکمت يې اشاره ده ولوی والي ته د جرم ددوی.

**يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ**

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی تاسي متابعت مه کوئ د ګامو د شيطان.

**درويش وايي:** چي دا تمثيل دی د کمال متابعت د شيطان لکه يو سړی چي په بل سي ګام پر ګام روان وي.

وَمَن يَتَّبِعْ خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ فَإِنَّهُ يَأْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ وَالْمُنكَرِ

او څوک چي متابعت وکړي د ګامو د شیطان. نو دا شیطان (قوله تعالی فانه یامر علة د نهي د متابعت دده) امر کوي خپل تابعان (نو مفعول محذوف دی) په فحشاء سره یعني هغه عمل قبیح عقلاً و شرعًا لکه زنی لواطت وغیرهما. او په منکر سره چي شرعًا ممنوع وي فقط کترک الصلوة والصوم والزکوة وغیر ذالک.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ مَا زَكٰى مِنكُم مِّنْ أَحَدٍ أَبَدًا

که نه وای فضل د خدای ﷻ او رحمت د خدای. نه به یې وای پاک کړی له ګناه څخه د افک له تاسي څخه هیڅ څوک (نو من زائد دی لپاره د استغراق د نفي، نو احد مرفوع دی محلاً) تر ابد پوري.

**پوه سه:** چي مخاطب په دې آیت کي هغه بعض مؤمنان او مؤمنات دي چي د افک په موضوع کې ګډون کړی ؤ، نو فضل او رحمت د خدای ﷻ دادی چي توفیق د توبه عاجله یې ورکړی ددې ګناه د افک په باره کي او حدود چي مکفر ددې ګناه دی ورته مشروع یې کړه.

وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّي مَن يَشَآءُ وَاللّٰهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢١﴾

لکن خدای پاکوي د ګناه هره ګناه چي وي هغه څوک چي د الله تعالی مشیت ورته وسي یعني چي په زړه کي یې توبه ورواچوي او توبه یې هم قبوله کړي. خدای پاک اوریدونکی دی ددوی د خبرو او خبر دی په باطني او قلبي حالاتو ددوی.

**درویش وایي:** چي بخاري او مسلم او نور ائمة الحدیث رحمهم الله روایت کړی دی چي مسطح بن اثاثه رضی الله عنه چي مهاجر ؤ او بدري او فقیر ؤ او د ابوبکر رضی الله عنه قریب ؤ. بعض وایي چي د خاله زوی یې ؤ او نفقه ابوبکر ورکوله. نو چونکه د قذف د عائشه رضی الله عنها موضوع پیښه سوه مسطح هم په هغه کي برخه واخسته او په خیر د عائشه رضی الله عنها پر برائت باندي تمامه سوه. نو ابوبکر رضی الله عنه قسم واخستی چي زه به ددې وروسته چي ده زما پر لور الزام د زنی ولګاوه مسطح ته به نفقه ورکوم. نو دا آیت نازل سو.

وَلَا يَأْتَلِ أُولُوا الْفَضْلِ مِنكُمْ وَالسَّعَةِ

قسم دي نه اخلي دا کلمه باب د افتعال دی مجرد یې الیة په معنی د قسم دی کذا في تاج المصادر.

**درویش وابي:** چي دا لفظ په معنی د تقصیرهم راغلی دی کما في خطبة التلخیص ولا آلو جهداً آه (اولو الفضل) درلودونکي د فضیلت هم په دین کي لا ابی بکر ﷺ افضل جمیع الصحابة ﷺ کریمه: ثاني الاثنین اذهما في الغار. او هم د مال له لحاظه لکن چونکه وروسته د سعة لفظ راځي چي په معنی د غنی دی، نو له فضل څخه فضیلت في الدین مرادول ډېر زیبا دی تاچي تکرار رانسي، او بله خبره دا هم ده چي که فضیلت د دین مراد نه سي، نو عامو خلکو ته خپل انفاق په مقابل کي د ازار د منفق علیه حرام او سبب د ګناه نه دی (منکم) یعني ابابکر وامثاله وفیه دلیل علی فضل ابی بکر ﷺ وشرفه (والسعة) یعني الغناء في الدنیا فان النفقة عن ظهر غني.

اَنۡ يُّؤۡتُوۡۤا اُولِى الۡقُرۡبٰى وَالۡمَسٰكِيۡنَ وَالۡمُهٰجِرِيۡنَ فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ

یعني في ان یؤتوا روح البیان یې داسي ترجمه کړې ده: علی ان لایؤتوا ولایحسنوا، له خاوندانو څخه د قرابت او د مساکینو او مهاجرین په لار کي د خدای ﷻ یعني هجرت یې لپاره د رضٰی د خدای ﷻ وي لکه په دې ځای کي مسطح بن اثاثة، نو دا ټول الفاظ صفات دي، موصوف د ټولو یو دی یعني مسطح وامثاله.

**فائده:** ذکر ددې صفاتو لپاره د باعثه کولو د ابوبکر ﷺ دی پر اعاده د نفقې ومسطح ته ولي چي هم یې قریب ؤ او هم مهاجر ؤ او هم مسکین.

**پوښتنه:** موضوع خو یوازي د مسطح او د ابوبکر تر منځ وه، نو جمع د الواو منکم او یؤتوا او مساکین آه ته څه ضرورت ؤ؟

**ځواب:** فائده یې تعمیم دی ددې حکم اسلامي لپاره د ټوله امت محمدیه فافهم.

وَلۡيَعۡفُوۡا وَلۡيَصۡفَحُوۡا ؕ اَلَا تُحِبُّوۡنَ اَنۡ يَّغۡفِرَ اللّٰهُ لَـكُمۡ ؕ

او ذوی الفضل دي عفوه وکړي وهغو قریبانو ته چي له دوی څخه تقصیر سوی ؤ د قرابت په پالنه کي، او روی ګرداني او سترګي پټول ددوی له بدو څخه. آیا ستاسي نه ده خوښه یا اولی الفضل چي بخښنه وکړي خدای ﷻ تاسي ته لکه تاسي چي خپلو قریبانو ته چي له یوه څخه ګناه صادره سوي وي بخښنه ورته وکړئ؟ او سره ددې چي د خدای ﷻ نعمتونه پر بندګانو بېځي ډېر دي، کریمه: وان تعدوا نعمة الله

لاتحصوها، او د بندګانو مخالفتونه تر اندازه وتلي دي او خدای ﷻ پر انتقام اخستلو د قدرت خښتن دی. بخاري او مسلم چي په ښخانو سره شهرت لري په لړ د قصې د افک داسي ویلي دي چي هغه وخت چي دا آیت نازل سو: الا تحبون؟ ابوبکر ؓ وویل بلی والله اني احب ان یغفرلي ربي. او نفقه د مسطح یې جاري وساتل او داسي یې وویل والله لا انزعها عنه ابداً. قسم مي په خدای دی چي زه نه قطع کوم نفقه خپله له مسطح څخه تر ابده یعني چي زه ژوندی یم او دی ژوندی وي.

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۲۲﴾

او خدای ﷻ بخښونکی او مهربان دی.

**پوه سه:** چي دواړې صیغې د مبالغې دي ای کامل المغفرة وتام الرحمة دی.

بیت... من کان یرجو عفو من فوقه...... فلیعف عن ذنب الذي دونه

اِنَّ الَّذِیْنَ یَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ الْغٰفِلٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ

په تحقیق هغه کسان چي نسبت کوي د زنی و پاکو ښځو ته (الغافلات) چي دوی غافله وي له فاحشه څخه چي هر ګز یې فاحشه په زړو کي نه وي واقع سوې (المؤمنات) چي ایمان یې پر خدای او پر رسول وي.

**پوه سه:** چي اصل د رمي ویشتل دي د یو چا په کلک شي سره لکه کاڼی وغیره لکن چونکه په کلک شي ویشتلو سره بدن خوږیږي او په نسبت سره د زنی و پاکي ښځي ته د دې روح او زړه خوږیږي فلهذا اطلق الرمي علی نسبة الزنی الی المرئة العفیفة فافهم.

لُعِنُوْا فِی الدُّنْیَا وَالْاٰخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِیْمٌ ﴿۲۳﴾

پر دوی لعنت کړل سوی دی یعني له جانبه د خدای ﷻ په دنیا او آخرت کي په سبب د دې چي طعن کذباً یې ووایه پر عفیفه ښځه باندي، او دوی لره عذاب دی لوی په اور کي د جهنم.

**درویش وایي:** وهذا حکم کل قاذف قذف محصنة ای عفیفة پاکه له زنی څخه چي مؤمنه هم وي او غافله هم وي یعني په زړه کي یې د زنی خیال نه وي ورګرځېدلی، او هغه آیت چي خدای ﷻ وایي: والذین یرمون المحصنت ثم لم

ياتوا باربعة شهدآء فاجلدوا الآية وعدم قبول شهادتهم ابدًا حكم دی د هر قاذف سواءٌ كان في قذفه صادقًا لكن لم يجد الشهود او كاذبًا ايضًا واللعن مختص بمن قذف كاذبًا، ولي چي مقذوفه غافله ده بالكية قلبًا له زنی څخه چي ودې ته قاذف نسبت وكړی فان جريمة هذا القاذف اعظم واكبر.

**پوښتنه:** د لعنت معنی داده چي دی يعني قاذف نو كافر سو؟

**ځواب:** يا هيڅ كله يې دا معنی نه ده، ولي لعنت په بعض كبائرو ګنهو كي هم راغلی دی چي تر كفر كمي دي كقتل النفس المؤمنة عمدًا، او مقاتل وايي چي دا لعنت خاص دی په عبدالله بن ابي واصحابه كي. دده غرض دادی چي لعنت خاص په كفارو دی ولي چي د علماؤ اختلاف دی په لعنت كي د يزيد بن معاوية قاتل الحسين رضي الله عنه يعني كان يزيد آمرًا لقتله وان كان مباشر القتل عبيدالله بن زياد. بعض علماء وايي چي لعنت نه دی پر روا لانه مؤمن غايته انه ارتكب ذنبًا كبيرًا في الغاية، او بعض علماء په دې لعنت كي توقف كوي. او علامه ثاني سعد الدين التفتازاني رحمه الله هم لعنت پر روا بولي بناء پر كفر دده بولي حيث قال في شرح العقائد ونحن لا نتوقف في شانه بل في ايمانه فلعنة الله عليه واعوانه. او بعض علماء وايي چي لعنت خاص دی په قذف پوري د عائشې رضي الله عنها له دې سببه نه چي قاذفين د عائشې رضي الله عنها ټول كافران دي وليس بشيءٍ لان فيهم مسطح بن اثاثة وحمنة وحسان بن ثابت عند بعض المفسرين وهؤلاء لا ريب في ايمانهم. او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی اللعنة مخصوص بقذف عائشة وسائر ازواج رسول الله صلى الله عليه وسلم خاصةً ليس لهذا القاذف من توبة لكن من قذف امرئة مؤمنة غير ازواج النبي صلى الله عليه وسلم كما في هذه الآية ان الذين يرمون الآية الى قوله تعالى الا الذين تابوا، فجعل لهؤلاء التوبة ولم يجعل لاؤلائك يعني د عائشې رضي الله عنها قاذفانو لره توبه. بعض مفسرين وايي چي عبرت عموم لره د لفظ دی خصوص لره د سبب نه دی چي دا آيت يعني ان الذين يرمون آه په شان كي د قذف د عائشې رضي الله عنها وقياس سائر ازواجه عليها. نو ددې مفسر غرض دادی چي دا آيت عام دی، لكن لعنت مخصوص په كافر پوري نه دی لورود اللعنة كما مر في قاتل المؤمن عمدًا مع انه ليس بكافر بهذه الكبيرة يعني قتل المؤمن عمدًا والله اعلم.

**پوښتنه:** په دې آيت کې يعني ان الذين يرمون الآية ذکر د مغفرت او د توبې نه دی کړل سوی؟

**ځواب:** عدم ذکر د توبې او مغفرت خو مستلزم نه دی عدم قبول التوبة وعدم المغفرة، ولې چې د دې آيت د قاذفينو قبول د توبې او مغفرت تر هغه عام آيت قرآني لاندې دی قال عز من قائل ان الله لايغفر ان يشرک به (يعني اذا مات على الشرک) ويغفر مادون ذالک لمن يشاء (يعني ولو مات بلا توبة).

**درويش وايي:** چې صاحب د روح البيان وايي والمراد بها عايشة رضي الله عنها والجمع ان رميها رمي لسائر امهات المؤمنين رضي الله عنهن لاشتراک الکل في العصمة والنزاهة عن ارتکاب الزنى.

**درويش وايي:** چې جواب سابق آنفًا داهم تائيد کوي چې په افک د عائشه رضي الله عنها حمنة او مسطح او په نيز د بعض اهل الحديث حسان بن ثابت رضي الله عنه هم ؤ او دوی تولو توبه وکښل، نو که د قاذف د عائشه رضي الله عنها توبه نه قبلېدای او دوی ته دا معلومه وايي نو يې ولې توبه کښل څه فائده؟

المحاکمة بين المتخاصمين في جزاء قذف عائشه رضي الله عنها بل سائر امهات المؤمنين چې د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی کمامر قريبًا چې د قاذف د عائشه رضي الله عنها بلکې د نورو ازواجو مطهراتو د عليه الصلوة والسلام ورضى الله عنهن توبه نه قبلېږي. او په منځ کې د هغو کسانو چې د قاذف د عائشه رضي الله عنها توبه قبلېږي کما تاب حسان بن ثابت رضي الله عنه ومسطح بن اثاثه رضي الله عنه وحمنة، فتاب عليهم يعني قبل توبتهم داده چې هغه کسان چې وايي چې توبه يې قبلېږي دغه آيت ته ګوره چې په اول کې د سورت تېر سو (والذين يرمون المحصنٰت الى ان قال في اخيرها الا الذين تابوا الى ان قال فان الله غفور رحيم) ولې چې دا آيت عام دی، يا و هغه آيت ته وګورئ (ان الله لايغفر ان يشرک الآية کمامر آنفًا، او هغه څوک چې وايي چې د قاذف د عائشه رضي الله عنها توبه نسته کما روى عن ابن عباس رضي الله عنه وغيره هغه خارج مخرج المبالغة دی في تعظيم الامر في افک عائشة وسائر امهات المؤمنين رضي الله عنهن.

**درويش وايي:** وهذه المحاکمة قد ذکرها العلامة الآلوسي البغدادي رحمه الله في روح المعاني ولمثل هذه المبالغة نظائر في تحذير الناس عن ترک بعض

العبادات، كما ورد في الحديث لاصلوت لجار المسجد الا في المسجد. وورد ايضًا لاصلوة لمن لازكوة له، و ورد ايضًا لا وضوء لمن لم يسم (يعني چي په ابتداء كي د اودا سه بسم الله ونه وايي) الى غير ذالک مما يطول بذكرها الكلام.

يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ وَأَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٢٤﴾

هغه ورځ چي شاهدي به اداء كوي پر كافرانو او منافقانو چي د ماقبل آيتو څخه وفهمېدل ژبي ددوی او لاسونه ددوی او پښې ددوی په هغه څه چي دوی وه په دنيا كي هغه كارونه يې كوله.

**پوه سه:** چي يوم ظرف دی د معنى د استقرار چي لـه مجرور مقدم څخه وفهمېدى يعني قوله فلهم لا لعذاب كما قال به الحوقي لان عذاب مصدر موصوف بعظيم وفي اعمال المصدر الموصوف اختلاف (تشهد) يعني اختيارًا منهم او دا شاهدي دمخه تر هغه ده چي ددوی پر خولو مهر وهل كېږي فلا تعارض بين هذا وبين قوله تعالى اليوم نختم على افواههم.

**پوه سه:** چي ابن جرير او ابن ابى حاتم له ابى موسى الاشعري ﷺ څخه داسي روايت كړی دی چي مسلمان لپاره د حساب په ورځ د قيامت ورطلب كړل سي، نو خدای ﷻ ورته ورپېش كړي عمل دده فيما بينه تعالى وبينه، نو مؤمن اقرار په عملو او ګنهو وكړي او بنده ورته ووايي عملت عملت يا رب فيغفر الله ذنوبه او هغه ګنهونه دده پټ كړي فما على الارض (اى ارض القيامة) خليقة يرى من تلک الذنوب شيئًا او ښګاره كي حسنات دده (يعني يعطى كتاب حسناته) فيرون الناس كلهم حسناته (ودې ته حساب يسير وايي كما ورد في الاحاديث النبوية) اللهم اجعلنا منهم، واما الكافر والمنافق فيدعى للحساب، نو خدای ﷻ ورپېش كړي عمل دده يعني كفر او شرک او نفاق او معاصي دده. دی پر هغو ټولو منكر سي او داسي ووايي لقد كتب علي هذا الملک مالم اعمل يعني حفظه په ما پسي ناحقه دا اعمال ليكلي دي، ملک ورته ووايي اما عملت كذا و كذا في يوم كذا و كذا في مكان كذا و كذا، فيقول منافق او كافر لا وعزتک فاذا فعل ذالک پر خوله يې مهر ورو لګوي يعني ژبه يې ورښده كړي، ابو موسى الاشعري ﷺ وايي چي زما ګمان دادی چي اول راسته ورون شاهدي پر اداء كړي يعني د زنى او لواطت، وروسته ابو

موسى ؓ دغه آيت ووايه اليوم نختم على افواههم الى اخيرها، او په بل روايت فخذه من الرجل الشمال، ولامنافات بين شهادة الفخذ اليمنى والشمال لان كليهما يشهدان عليه، وفي رواية فخذه وكفه ولم يعترف بما فيه وجحد وخاصم فيشهد عليه جوارحه بسيئاته (يعني شاهدي چي ادا، کوي اعضاء د سري هغه پر هغه چا دي چي عملنامه ووايي دی اقرار د مكتوب په ليکلو نه کوي او منکر سي او د حفظه کرام سره جدال شروع کړي، نو باره پر هغه د اعضاء دده په گنهو سره په هر عضوه چي گناه کړې وه هغه عضوه پر ده شاهدي اداء کړي.

**درويش وايي:** چي احوال د قيامت غالبًا تر عقل لوړ دي كشهادة الجوارح بالمعاصي والسيئات لكن لما نطق بها الكلام المعجز لابد من الايمان بها لانه تعالى على كل شيئ قدير لان من انطق اللسان في الدنيا بالنطق المظهر عما في الجنان مع انه لحم صرف يقدر على ان ينطق الفخذ والكف وكلما جاء في الأحاديث الشريفة بما فعل من السيئات والمعاصي.

يَوْمَئِذٍ يُوَفِّيهِمُ اللَّهُ دِينَهُمُ الْحَقَّ وَيَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِينُ ﴿٢٥﴾

په دغه ورځ به پوره ورکړي خداى ﷻ دوی ته جزاء د عملو ددوی چي حق او واجب وي، او بعض مفسرين وايي چي د حق معنی عدل ده.

**درويش وايي:** چي ددې دوو ترجمو مآل و يوه شي ته دی، ولي چي د واجب معنی داده چي د گناه سره مناسب وي هغه جزاء حتمًا ورکول کېږي وهو معنى العدل. فافهم ولا تظنن الوجوب عليه تعالى، او ددوی به يقين سي چي خداى ﷻ حق او ثابت دی يعني موجود واجب الوجود دی يا ذو الحق المبين اى الظاهر عدله او هغه توهمات د دهيره ؤبه دفع سي چي دوی د صانع الواجب له وجود څخه منکر وه او استناد د امور د دنيا يې و دهر ته کاوه يعني الحيوٰة والموت والفقر والغنى والعزة والذلة تړوله د دهر او زمانې کار دی هيڅ صانع نسته.

**درويش وايي:** چي وهذا انكار منهم عن الامر البدهي الاولى كما ثبت في مقره.

الْخَبِيثَاتُ لِلْخَبِيثِينَ وَالْخَبِيثُونَ لِلْخَبِيثَاتِ ۖ وَالطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ وَالطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَاتِ

**پوه سه:** چي دا کلام مستانف په برائت کي د عائشه ؓ له فحشاء څخه بنا يې پر عرف ده. بيت:... كند هم جنس باهم جنس پرواز .... كبوتر با كبوتر باز با باز

حتى ورد في الحديث ان الله يسوق الاهل الى الاهل.

**درویش وايي:** چي روح المعاني او روح البيان اول تفسير د دې آيت داسي کړې دی چي خبيثات له ښځو څخه ای الزانيات د خبيث نرانو دي يعني زنا کارانو لره لکه ابن ابی المنافق چي ماينه يې ... انيه وه او دی ديوث وو په خبر هم وو. او ناپاک کسان نر د ناپاکو ښځو لپاره دي. او پاکي ښځي له زنی څخه لکه عائشه رض د پاکو خلکو لپاره دي لکه رسول الله ﷺ. او پاک خلک لکه رسول الله ﷺ د پاکو ښځو لپاره دي لکه عائشه رض. نو له دې آيت څخه دا ثابته سوه چي چونکه رسول الله ﷺ اطيب الاطيبين دی وخير الاولين والاخرين دی تبين كون الصديقة عائشة رض اطيب الطيبات بالضرورة وانقطع بطلان مافيها من الخرافات كما قال الله تعالى.

## أُولَٰئِكَ مُبَرَّءُونَ مِمَّا يَقُولُونَ

**پوه سه:** چي اشاره په اولئک كي و اهل النبوي ته ده رجالاً ونساءً او په هغو كي صديقه عائشه رض په دخول اولی پکښي داخله ده. او بعض وايي چي اشاره د اولئک وه رسول الله ﷺ او عائشه رض او صفوان رض ته ده يعني دغه کسان پر هر تقدير پاک دي د مايقول اهل الافک في حقهم من الاكاذيب الباطلة. روح المعاني وايي چي د مخه آيت پر هر تقدير مبني دی پر تغليب يعني العادة الاكثرية هي كما ذكر في الآية لكن يتخلف في بعض المواد. او مظهري وايي چي اكثرو مفسرينو معنی د آيت داسي کړې ده (درويش وايي چي دا تفسير چي مظهري يې قول د اكثرو مفسرينو بولي روح المعاني او روح البيان په لفظ د قيل راوړی دی. نو زه نه پوهيږم چي د اكثرو مفسرينو څخه د مظهري رح څوک مراد دي؟!) چي خبيثات د خبرو يعني كلمات الذم والتحقير والشتم ونحو ذالک مستحق يې خبيث کسان دي لکه ابن ابی او دده ملګري. او خبيث د خلکو لکه ابن ابی مستحق د ذم او تحقير دي. او طيبات د خبرو من المدح والثناء والدعاء مستحق يې طيبون دي لکه عائشه رض او صفوان رض. او طيبون کسان مستحق دي د طيباتو خبرو فعائشة رض مستحق د ثناء او د الصلوة والسلام او د دعاء ده دون ماقيل فيها من الافک. او دغه کسان يعني عائشه رض وامثالها من اهل البيت النبوة پاک دي مما يقولون چي خلک خبري کوي په دوی كي بالكلية يعني اهل الافک من الكلمات الخبيثة من الفحشاء والمنكر.

**درویش وايي**: چې زجاج رحمه الله ډېر ښائسته، شامل او په زړه پوري تفسير کړی دی: وايي چې خبيثات د خبرو لکه کلمه د کفر والکذب وسب الصحابة وسب اهل بيت النبوة وقذف المحصنات والبهتان وامثال ذالک د خلکو خبيثان يې کوي. لکه ابن ابی واصحابه لايتکلم بها الطيبون. او خبيثان د خلکو جبلوا وخلقوا لتلک الکلمات الخبيثة، والطيبات من الکلمات کذکر الله وتلاوة القرآن والصلوة والسلام على النبي واهل بيته والدعاء بالمغفرة للمؤمنين والمؤمنات الى غير ذالک خدای جل جلاله اسانه کړي دي للطيبين من الناس والطيبون من الناس خدای جل جلاله پيدا کړي دي مستعدين لتلک الکلمات الطيبات. اولئک يعني الطيبون من الناس کعائشة وسائر الازواج المطهرات رضي الله عنهن وايضا صفوان رضي الله عنه مبرون من جميع القبائح التي قالها اهل الافک.

**نتيجه**: فهو ذم للقاذفين ومدح للذين برئهم الله تعالى، له هند بن ابي هالة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ووېل ان الله ابى عن اتزوج چې زه به نکاح کوم او ازوج او يا به زه په نکاح ورکوم خپل لور (يعني بعد النبوة فلا يرد ما يتوهم) الا اهل الجنة رواه ابن عساکر رحمه الله.

## لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٢٦﴾

دوی يعني عائشه رضي الله عنها وامثالها من المؤمنين الطيبين والمؤمنات الطيبات بخښه د ګنهو ده او ښه رزق دی يعني في الجنة يوم القيامة. مسروق چې به روايت کاوه له عائشي رضي الله عنها څخه داسي به يې ويله حدثتني الصديقة ابنت الصديق حبيبة رسول الله صلى الله عليه وسلم، وقال البيضاوي رحمه الله لو فتشت وعيدات القرآن لم تجد اغلظ مما نزل في افک عائشة رضي الله عنها (که تلاش وکړئ د عذابو چې په قرآن کي د ګناه کارانو لپاره ذکر سوي دي، نه به کړئ پيدا سخت تر هغه وعيد چې په شان کي د قاذفانو د عائشة رضي الله عنها ذکر سوي دي.

**درویش وايي**: چې هغه وخت چې ام المؤمنين خديجة الکبرى رضي الله عنها وفات سوه (چې د انحضرت صلى الله عليه وسلم ټول اولادونه که نر دي او که ښځې د دغې بي بي صاحبې له نسل څخه دي، سوى له ابراهيم چې د ماريه رضي الله عنها له نسل څخه ؤ) نو د عليه الصلوة والسلام فکر په بله کوژده کې ؤ، نو په بخاري او مسلم کي له عائشي رضي الله عنها څخه

روايت دى چي عليه الصلوة والسلام ما ته وويل چي ته دري شپې پر له پسې په خوب کي په ما وليدل سوې چي ملکو به په وربښمينه ټوټه کي پېچلې وې، نو ملکو به ماته وويل چي دا ستا زوجه ده فکشفت عن وجهک الثوب فاذا هي انت، نو عليه الصلوة والسلام وويل چي که دا خوبونه د خداى ﷻ له خوا وي خداى دې اجرا وکړي. عن عائشة رض قالت قال رسول الله ﷺ هذا جبرئيل پر تا سلام وايي، قلت و عليه السلام ورحمة الله وهو يرىٰ ما لا ارىٰ (ده هغه څوک ليدى چي ما نه ليدى يعني جبرئيل ع) محي السنة بغوي رح وايي چي عائشي رضي الله عنها به فخر په څو شيه سره کاوه چي دې ته ورکړل سوي وه چي بلې ښځې ته له ازواجو مطهراتو څخه نه وه ورکړل سوي (۱) هغه د خوب د ليدلو قصه چي عنقريب تېره سوه، (۲) عليه الصلوة والسلام بله باکره ښځه نه ده په نکاح کړې ببله عائشي رض (خديجة الکبرىٰ وسائر ازواج رضي الله عنهن ټول له کونډيانې عليه الصلوة والسلام په نکاح کړي دي) (۳) عليه الصلوة والسلام چي وفات کېدى سر مبارک يې د عائشي رضي الله عنها په غېږ کي ؤ (۴) قبر انور د عليه الصلوة والسلام د دې مبارکې په حجره کي دى (۵) عليه الصلوة والسلام به د دې سره په يوه لحاف کي پروت ؤ وحي به ورته راتلې، او د نورو ازواجو مطهراتو دا حال نه ؤ (۶) ونزلت برائتها من السماء، يعني په وحي قرآني سره کمامر تفصيلاً (۷) دا د رسول الله ﷺ د خليفه اول لور وه يعني ابوبکر الصديق رض (۸) دا صديقه طيبه وه (۹) د دې سره وعده د مغفرت او رزق کريم په قرآن کي کړل سوى کمامر.

**درويش وايي**: چي که زه ټول له مناقب د سيدتنا عائشه رضي الله عنها ذکر کوم ډېري اوراقي د دې تفسير به په بره کي ونسي...... بيت:

تا طبع شريفت نه پزيرد ملالتي ...... آن به که نامه رابدعاء مختصر کنم

**درويش وايي**: چي مذکوره مناقب خو د دې شخصي مناقب وه لکن مع هذا په اتفاق ارا، عائشه رض فقيهة الامت وه، حتى چي له ابو موسى الاشعري رض څخه روايت دى چي پر موږ اصحابو د عليه الصلوة والسلام يوه مشکله مسئله نه ده راغلې چي په هغه کي موږ رجوع و عائشي رضي الله عنها ته نه وي کړې او د دې سره مو له هغې څخه د دې مشکلې مسئلې حل نه وي موندلى.

**حکایت**: تاریخ خبري کوي او وایي: چي الحسن بن زیاد بن یزید الساعي چي له اهل څخه د طبرستان ؤ او ډیر مالدار او رئیس د قوم ؤ چي په خپله به یې د وړیو کالي اغوستل او نوکران او مریان یې درلوده او امر بالمعروف یې هم کاوه او هر کال به ده شل زره طلاوي بعد اد ته استولې چي پر اولاد د صحابه کرامو ﷡ چي په بغداد کي مقیم وه وېشل کېدلې. یوه ورځ ده ته یو علوي راغلی یعني چي د حضرت علي ﷛ له اولادې څخه ؤ، لکن وروسته تر وفات د فاطمة الزهراء ﷝ چي علي ﷛ بله مابینه وکړه ودې کسانو ته علوي وایي، نو هغه علوي ذکر د عائشې ﷝ په بد نامه وکړی. الحسن المذکور و مریي ته وویل یا غلام اضرب عنق هذا (یعني سریې په توره غوڅ کړه) نور علویان چي د حسن ﷫ په مجلس کي حاضر وه حسن ﷫ ته یې وویل هذا رجل من شیعتنا (یعني دا زموږ د علویانو د ډلي سړی دی) ده ورته وویل معاذ الله هذا طعن علی رسول الله ﷺ فان کانت عائشة ﷝ خبیثة کان زوجها ایضًا کذالک.

**درویش وایي**: کما مر في القرآن الخبیثات للخبیثین وحاشاه ﷺ من ذالک بل هو ﷺ طیب وطاهر و عائشة طیبة طاهرة چي مبرء وه په وحي اسماني سره. وروسته بیا حسن ﷫ و مریي ته وویل یا غلام اضرب عنق هذا الکافر فضرب عنقه انتهی.

**درویش وایي**: چي یوه مبتدعه ډله چي په نامه د خوارجو یادېږي دا قصه د افک د عائشه ﷝ په ډېر شد ومد سره رشتیا بولي. نو دا ډله ټوله کافران دي من قدر علیهم قتلهم وهم کلاب جهنم لانهم منکرون من صریح الآیات النازلة في براءة عاشة ﷝ اعاذنا الله من ذالک.

**فائده**: له انس بن مالک ﷛ څخه روایت دی چي د سیدتنا عایشة ﷝ برائة چي نازل سو، دا وایي چي د غم په څپو کي زه یوه شپه نهایته وږي او تږي وم په حال کي د فکر ډهلو په دریاب کي د خوب غرقه سوم بلا اختیاره. یو غیبي ښایسته ځوان مي په خوب ولیدی ماته یې وویل مالک؟ څه حال دي دی فقلت حزینة مما ذکر الناس، ما ورته وویل غمجنه یم د خلکو له خبرو څخه چي زما په باره کي یې کوي. دې ځوان راته وویل چي ته د غه دعاء وکړه خدای ﷻ به دي غم دفع کړي. دعاء داده:

یَا سَابِغَ النِّعَمِ وَیَا دَافِعَ النِّقَمِ وَیَا فَارِجَ الْغُمَمِ وَیَا کَاشِفَ الظُّلَمِ یَا اَعْدَلَ مَنْ حَکَمَ یَا

حَسْبُ مَنْ ظَلَمَ يَا أَوَّلُ بِدَايَةٍ وَيَا آخِرُ بِلَا نِهَايَةٍ مَنْ لَهُ اسْمٌ بِلَا كُنْيَةٍ اللَّهُمَّ اجْعَلْ لِيْ مِنْ أَمْرِيْ فَرَجًا وَمَخْرَجًا. دا وايي چي زه د خوب له دريابه پر سر سوم، نو ډېره وږي بيده سوې وم ډېره مړه راپاڅېدم او ډېره تږې په درياب کي د خوب لوېدلې وم يکلخته مي تنده ماته سوې وه. او ټږدې چي ما هغه د خوب دعاء وکړه زما برائت په قرآني آياتو کي نازل سو.

**درويش وايي:** چي دې دعاء ته دعاء الفرج وايي په حال کي د کرب او غم هر سړی کولای سي چي ووېې وايي. ما اعراب يعني زېر و زور ور کړه که څه هم په منقول منه کي نه وه تاچي څوک چي يې وايي پر صيحيح ډول به يې وايي لان المعاني تتبدل باعتبار ابدال الحركات والسكنات.

**پوه سه:** چي دا دعاء په تاريخ بغداد کي راغلې ده.

فريابي او ابن جرير له عدي بن ثابت رض څخه روايت کړی دی چي د انصارو يوه ښځه راغله دې وويل يا رسول الله زه ګاهي په خپل کور کي پر داسي حال يم چي پر دغه حال دي ما يو څوک وويني يعني هغه اعضاء مي ښکاره وي چي ستر يې لازم وي او زما د قريبانو زما کور ته بېله اجازې راسي او زه پر هغه حال غير مناسب يم نو زه څه چم وکړم، نو دا آيت نازل سو.

## يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُوا

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی تاسي مه ننوځئ په کورو يعني د بل چا ماسوا د خپلو کورو څخه. الاضافت لملابسة السكنى يعني تاسي پکښي اوسېږئ لا للملک د دې لپاره نه ده چي ستا ملک وي که څه کرايه والا پکښي اوسېږي يا ده په عاريت چا ته ور کړی وي، ولي چي مؤجر او معير کور ته هم دخول بغير الاجازة د اوسېدونکي سړي ته روا نه دی (حتى تستانسوا) يعني تر هغه چي تاسي طلب د اجازې د ساكن الدار څخه نه وي اخستی.

**پوښتنه:** استيناس خو طلب ته د الفت وايي نو تاسي ولي ترجمه په طلب د اجازې سره وکړه؟

**ځواب:** په سبب د دې چي له ابن عباس رض په قرائت حتى تستاذنوا راغلی دی وكذالک يقرء ابي بن كعب رض.

**پوه سه:** چي أنس ضد د وحشت دی او ابصار او احساس او علم ته هم وايي، له

ابو ایوب رض څخه روایت دی قلت یا رسول الله ﷺ هذا السلام، یعني د سلام معنی خو راته معلومه ده د استیناس معنی څه ده؟ علیه الصلوة والسلام راته وویل چي اجازه غوښتونکی دي یا سبحان الله ووایي یا الحمد لله یا دي وټوخېږي، نو اهل بیت به اجازه ورکړي د دخول.

## وَتُسَلِّمُوا عَلَىٰٓ أَهْلِهَا

او سلام ووایاست پر اهل د بیوتو یعني چي پکښي اوسېږي یعني یقول السلام علیکم ورحمة الله.

**درویش وایي:** چي سلام ته سلام د استیذان وایي یعني طلب الاذن، نو که کور والا اجازه د دخول ورکړه، نو دی چي ورسي هوړې به سلام وایي هغه ته سلام د تحیة وایي او بیا چي ځندي راوځي بل سلام به وایي چي دې ته سلام الوداع وایي فتذکر.

**مسئله:** که دیو کور سړي په چاپسي سړی واستاوه چي زموږ کره راسه او هغه سړی د استولي سړي سره یو ځای راغلی بیا استیذان ته ضرورت نسته، په حدیث کي د ابو هریره رض چي روایت یې ابو داؤد کړی دی راغلي دي ان رسول الله ﷺ قال اذا دعي احدکم فجاء مع الرسول فان ذالک له اذن.

**پوښتنه:** یو سړی د مور کورته ورځي چي یوازي مور یې په هغه کور کي اوسېږي. آیا د اجازې غوښتني ته ضرورت سته؟

**ځواب:** نعم ولي چي د عطاء بن یسار څخه روایت دی چي یو سړي علیه الصلوة والسلام ته وویل چي د مور کورته ورځم هم به اجازه غوارم؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل استاذن علیها، هغه سړي ورته وویل چي زه د مور خادم یم، یعني هر ګړی ورځم نو ځم، علیه الصلوة والسلام ورته وویل استاذن علیها اتحب ان تراها عریانة. قال رض لا قال علیه السلام فاستاذن علیها، رواه مالک.

**فائده:** د استیذان پر محرماتو لکه مور، خور وغیرهما من المحرمات معنی داده چي سړی ورځي یا دي غاړي په زوره تازه کړي یا دي په چوټو ترپې وکړي، بیا دي لو تازه وکړي ادې چېري یې، نو که دا بې ستره وه چابک به ځان سنبال کړي، له انس رض خادم رسول الله ﷺ څخه روایت دی قال ان رسول الله ﷺ قال لي یا بني اذا دخلت علی اهلک (یعني مایني ته) نو سلام و ماینې ته کوه، په پښتنو کي تر

عوامو تر خواصو پورې مايني ته سلام ېبخي ناروا جه دى، بلکې مېره چې راسي پداولو کلو کي د واده ماينه ولاړېږي او مېره ته سلام وايي. او چې څو کلونه تېر سي بيا يو بل ته سلام نه وايي. البته کا ماينه د پلار کره تللې وه مثلاً چې راسي کور ته مېره ته سلام وايي.

**الاختلاف**: بعض علماء وايي چې استيذان دي تر سلام د مخه وي، ولې چې په قرآن کريم کي استيذان تر سلام د مخه دى، لکن دا تقدم لفظي علت د تقدم فعلي نه کرځي لان کلمة الواو العاطفة لمطلق الجمع يعني لا للترتيب. او سره د دې چې په مصحف کي د ابن مسعود ﷺ داسي راغلي دي حتى تسلموا على اهلها وتستاذنوا. او د اکثرو علماؤ رايه داده چې سلام تر استيذان د مخه دى، لحديث كلدة بن حنبل ﷺ قال دخلت على النبي ﷺ نه مي سلام ويلى يعني قبل الدخول او نه مي اذن غوښتى دى. نو عليه الصلوة والسلام راته وويل ارجع (ووځه) فقل السلام عليكم ا ء دخل. رواه ابو داؤد والترمذي. او د جابر ﷺ څخه روايت دى چې نبي ﷺ وويل لا تاذنوا لمن لم يبدء بالسلام رواه البيهقي.

ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٢٧﴾

دا دخول بالسلام والاستيذان بهتر دى تاسي لره تر دخول نابېره، چې په عربي بغتة ورته وايي او په اردو اچانک ورته وايي. شايد چې تاسي به د قرآن له وعظ څخه عملي پند واخلئ.

فَإِن لَّمْ تَجِدُوا فِيهَا أَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوهَا حَتَّىٰ يُؤْذَنَ لَكُمْ

که تاسي نه کړى پيدا په هغو بېو توکي چې تاسي د دخول غوښتى هيڅ څوک چې تاسي ته اجازه درکړي، نو هم مه داخلېږئ تر هغو پورې چې اجازه درکول کېږي، ولې چې امکان لري چې په کور کي به ترنه وي چې اجازه درکړي بلکه چې نا محرمه وي د دخول اجازه نه لري يا دي مېره او ماينه او اهل بيت دي تيو له بيده وي لکه د روژې په مياشت کي د سهار تر لمانځه وروسته چې هغه ملا تړ د سهار لمونځ په سپېدو کي کوي نو له کور والا بيدېږي تر څاښت پورې الى غير ذالک من موانع الاذن.

**مسئله**: که په يو کور کي يو خوني يا منا اور واخستى يا غله ورلوېدلي وه چې د استغاثې ناري د کوره وهل کېدې فلا حاجة الى الاستيذان لان الحال تدل على الاستيذان.

وَإِنْ قِيلَ لَكُمُ ارْجِعُوا فَارْجِعُوا هُوَ أَزْكَىٰ لَكُمْ

او که تاسي ته وويل سول د کور والا د طرفه چي ولاړ سئ پس بلا د رنګه ولاړ سئ يعني پر دخول ډېر ټينګار مه کوئ. دغه رجوع ستاسي لپاره ښه کار دی ترالحاح في الدخول او يا په دروازه کي ورو سته تر جواب د ارجعوا ولاړ يږئ، ولي چي دا وقوف پر صاحب الدار تکليف دی او بل د مروت او غيرت څخه خلاف کار دی. علماء وايي چي دا څو امر د رجوع په قبول سره او بعض وخت امر د رجوع بالحال هغه دا چي دري واره سړی طلب د اذن وکړي له کوره هيڅ جواب د لا يا نعم نه راووتی، نو دا حال دلالت پر دې کوي چي ولاړ سه. له انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د سعد بن عباده رضي الله عنه کور ته ورغلی د استيذان لپاره يې داسي وويل السلام عليكم ورحمة الله. سعد به کرار وويل چي په عليه الصلوة والسلام يې نه اوريدل وعليكم السلام ورحمة الله، څو عليه الصلوة والسلام دري واره يې سلام د استيذان وواېه جواب يې نه واوريدی، نو راهي سو. سعد بن عباده رضي الله عنه پسي راووتی فقال يا رسول الله بابي انت وامي ما سلمت تسليمة الا هي في اذني او ما به هم جواب درکاوه لكن جواب مې په تا نه اوريدی له دې کبله اني احببت ان استكثر من سلامك البركة ودعاء الرحمة. بيا د سعد کور ته سره ولاړه هغه وځکي ورته کښېښولي او عليه الصلوة والسلام وخوړلي. په اخير کي يې ورته وويل اكل طعامكم الابرار وصلت عليكم الملائكة وافطر عندكم الصائمون (شايد د عليه الصلوة والسلام نفلي روژه وه) رواه البغوي في شرح السنة.

**مسئله**: که يو سړی ورسي د بل چا کور ته او استيذان ونه کړي بلکې په دروازه کي منتظر ورته ناست وي تا چي صاحب البيت طبعًا راوځي. نو به خپل مطلب خندي حاصل کړي دا روا ده او ډېره زيبا ده او د صاحب البيت احترام کول دي، ولي چي ابن عباس رضي الله عنه د يو انصاري کور ته ورتلی لپاره د طلب د بعض احاديثو نبويه وو نو به په دروازه کي ناست ؤ حتى چي هغه انصاري به طبعًا راووتی ابن عباس رضي الله عنه به يې وليدی داسي به يې ورته وويل يا ابن عم رسول الله ﷺ کاشکي زه دې به خپل راتګ خبرولای يعني بالاستيذان يا بالسلام او بقرع الباب ابن عباس رضي الله عنه ورته وويل چي موږ دغسي امر کړل سوي يو چي سړی يعني صاحب البيت او خپل

طبیعیت به سره پریږدو هر وخت چي راووتی تر هغو به انتظار ورته کوي یعني علیه الصلوة والسلام مورته دا امر راکړی دی، د ابن عباس رض د خبري سند دا حدیث هم کېدای سي: ولو انهم صبروا حتی تخرج الیهم لکان خیراً لهم.

**مسئله:** که د چا کور ته یو سړی ورسي د یو کار لپاره که پر دروازه پرده ځړېدل نو مخامخ و پردې ته دي نه درېږي، یو بغل ته دي ودرېږي او طلب د اذن دي وکړي، او که دروازه تړلې وه د دروازې تر چوله دي د صاحب البیت کور ته نه ګوري، په حدیث کي د عبدالله بن بشر رض څخه داسي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام چي به د چا دروازې ته ورغلی مخامخ درزاې ته نه درېدی، بلکې یا پر راسته یا پر چپه جانب د دروازې به درېدی فیقول السلام علیکم یعني الاستیذان. راوي وایي چي په هغه وخت کي پر دروازو پردې نه وې، رواه ابو داؤد.

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿۲۸﴾

شان نزول: ابن ابی حاتم له مقاتل بن حیان رح څخه روایت کړی دی چي دا آیت د استیذان في البیوت چي نازل سو، ابو بکر رض وویل یا رسول الله ﷺ فکیف بتجار قریش الذین یختلفون بین مکة والمدینة والشام ولهم بیوت معلومة علی الطریق چي په پښتو کي یې پخوا رباطونه بلل فکیف یستاذنون ولیس فیها سکان، فانزل الله ﷻ هذه الآیة.

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ مَسْكُوْنَةٍ فِيْهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ

نسته پر تاسي ګناه په دې کي چي داخل ېږئ یعني بغیر استیذان په داسي خونو چي څوک سکونت نه پکښي لري، چي په هغو خونو کي ستاسي یو منفعت وي یعني د شپې تېرول یا د ګرمی یا د باران څخه ځان پکښي ساتل.

**بوه سه:** چي دا جمله حال ده له بیوتًا څخه، بغوي رح وایي چي په دې خونو کي اختلاف دی، بعض وایي چي دا هغه خوني او منازل دي چي خانات یې بولي، چي د قافلې والو لپاره جوړي سوي وي تا چي دوی په هغو خونو کي ځانونه او سامانونه خوندي کړي یا یوه شپه او ورځ یا زائده تر هغه په قدر د حاجت د قافلې والو، نو منفعت دغه مذکوره نزول او متاع پکښي خوندي کول بقدر الحاجة، نو ودې خاناتو (یا رباطو) ته بېله استیذانه دخول روا دی، او ابن زید رح وایي چي

ددي خونو ځخه مراد دکانو نه د تجارانو دي په بازارو کي چي خلگ ورځي د بیع او شرا. لپاره دغه منفعت دی. نو په دې دکانو د بازارو استیذان ته ضرورت نسته لانها معدة للبیع والشراء، ابراهیم نخعيؒ وایي چي په دکانو کي د بازار اذن ته ضرورت نسته، او ابن سیرینؒ وایي چي یو سړی چي یو دکان ته ورسي په بازرا کي دکاندارته به السلام علیکم وایي، دکان دارته به وایي اء دخل؟ که هغه اجازه ورکړه نو دي ورننوځي.

**درویش وایي**: چي وهذا الاستیذان خلاف العرف في جمیع حانات الاسواق في جمیع البلاد الا ان یقال کان ذالک عرفا في زمن ابن سیرینؒ في اسواقهم والله اعلم. او عطاءؒ وایي چي دا هغه خرابه سرایونه دي چي خلک د بولو او غائطو لپاره ورځي.

## وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَكْتُمُوْنَ ﴿٢٩﴾

او خدای ﷻ خبر دی په هغه څه چي تاسي یې ښکاریا پټ کوئ یعني چي ستا څه غرض دی په دخول کي د بیت د بل، آیا اطلاع پر عوراتو د خلکو یعني د سړي د کور یا ښځي یا قالین وغیره یا دده عیش و عشرت وویني لپاره د فساد، دا خو د ماتکتمون معنی وه، او ماتبدون خو هغه دی چي دی وایي زما دا غرض ؤ په دخول کي د بیت یعني الدار د فلان چي دده سره مي یوه مشوره کول.

## قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ؕ

ووایه و مؤمنانو ته چي پټي دي کړي ستر کي د هغه چا د لیدلو ځخه چي ده ته یي لیدل نا روا وي.

**درویش وایي**: چي دا شروع ده په بیان دا احکام عامه وو چي شامل دي ټولو مؤمانو ته، یندرج فیها حکم المستاذنین عند دخلوهم البیوت اندراجًا اولیاء، او خطاب یې و علیه الصلوة والسلام ته متوجه کړی، له دې سببه چي دا احکام خبریه دي او کثیرة الوقوع دي، نو باید چي تفویض د هغو اومر او نواهي و داسي مهیمن اعظم او حافظ مکرم ته وسي لکه علیه الصلوة والسلام، ددې آیت شان نزول ابن مردویهؒ د حضرت علي ﷺ ځخه په روایت داسي بیان کړی دی چي یو سړی په حیات کي د علیه الصلوة والسلام په یوه لاره کي د لارو د مدینې را روان

ؤ په هغو لارو کي يوه ښائسته ښځه را روانه وه، نو دې نر وښځې ته وکتل او ښځې ودې ته وکتل. نو شيطان دواړو ته په زړه کي وسوسه ورواچول چي ښه په ماره نظر دي نه ورته وکتل، نو دا سړی روان دی سترګي يې په ښځه کي دي مخ ته يې فکر نسته چي ناګاه يې پزه له ديواله ومښتل او چاک سوه وينې پر رايله سوې. د خانه سره يې وويل چي قسم په خدای جل جلاله دی که زه دا وينې پاکي کړم چي په عليه الصلوة والسلام مي ليدلي نه وي، نو وينې يې له پزي څخه بهېږي چي عليه الصلوة والسلام ته ودرېدی او ټوله قصه يې ورته وکړه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل هذا عقوبة ذنبک وانزل الله تعالى (قل للمؤمنين آه)

**پوه سه:** چي يغضوا صيغه د امر ده په حذف د لام الامر الغائب نحو ليضرب او کلمه د من زائده ده پر قول د الاخفش رح، ولي چي دی زيادت د من په کلام موجب کي هم روا بولي، کما في کتب النحو، او په نېز د سيبويه رح کلمه د من زائده نه ده ولي چي دی زيادت د من په کلام موجب کي روا نه بولي، نو دی وايي چي کلمه د من لپاره د تبعيض ده لان المؤمنين غير ما مورين بغض الابصار مطلقًا بل بالغض عما لا يحل لهم النظر اليه، وفيه بحث لان کلمة من داخلة الابصار والتبعيض ليس في الابصار بل في فعل الابصار وهو النظر والجواب ان تبعيض النظر کانه تبعيض للبصر، او داسي دي څوک توهم نه کوي چي ابصار جمع د بصر ده په معنی مصدري يعني کتل، فالتبعيض في الابصار نفسها، ولي چي دلته ابصار چي مفرد يې بصر دی په معنی د عضو مخصوص ده لان الغض لا يکون الا للعضو د دې سببه روح البيان تفسير د غض داسي کړی دی: الغض اطباق الجفن بحيث يمنع الرؤية انتهى.

**فائده:** منهي عنه دويم وار په نامحرمه پسي کتل دي په اراده سره نه اول وار کتل بلا اختياري لحديث بريدة رض چي عليه الصلوة والسلام و علي کرم الله وجهه ته وويل لا تتبع النظرة النظرة (نه تابع مه کړه يو وار کتل يعني دويم وار کتل د بل وار کتلو يعني اول وار) فان لک الاولى دون الآخرة، رواه احمد والترمذي وابو داؤد والدارمي رحمهم الله، له ابي امامه رض څخه روايت دی عن النبي صلى الله عليه وسلم قال ما من مسلم ينظر الى محاسن امرئة ثم يغض بصره الا احدث الله له عبادة يجد حلاوتها، رواه احمد. والمعنى والله اعلم چي خدای جل جلاله به هغه ته د داسي عبادت توفيق ورکړي چي دی به يې په خوند والي پوه سي.

**فائده:** مفعول د قول محذوف دی، ولې چې جواب د امر یعني قل دلالت کوي وهو یغضوا ابصارهم.

(ویحفظوا فروجهم) ای ولیحفظوا چې دوی دي وساتي خپل اعضاء مخصوصه للجماع د ما لایحل لهم من الزنٰی واللواطة.

**پوښتنه:** دا آیت خو مطلق دی بېګانه او مابینې دواړو ته شامل دی بلکې مینځي ته هم، نو یې هغه یې ولې نه کړه ځنې استثناء؟

**ځواب:** هغه استثناء چې په بل آیت کې راغلې ده هغه معلومه وه بالضرورة عقلاً او نقلاً، نو ځکه یې دلته نه کړه ذکر. قال الله تعالی الا علی ازواجهم او ماملکت ایمانهم فانهم غیر ملومین.

**فائده:** فرج په لغت کې چاک ته وایي کفرج الحائط یعني د دېوال چاک او په عرف کې د عربو د دوو پښو منځ ته وایي که د نروي او که د ښځې که قبل که دېره له جهته څخه د کثرت استعمال په معنی مذکور لکه تصریح ګرځېدلې ده، او یا مراد لفظ الفرج له کتلو څخه د بل چا دی چنانچه په حدیث کې د بهز بن حکیم عن ابیه عن جده راغلی دی. قال قال رسول الله ﷺ احفظ عورتک الا عن زوجتک اما ملکت یمینک، راوي وایي ما ورته وویل اذا کان الرجل خالیًا (یعني یوازې وي نو هم به عورت نه لڅوي) علیه الصلوة والسلام راته وویل: فالله احق ان یستحي منه رواه، رواه الترمذي وابو داؤد وابن ماجه.

**درویش وایي:** چې له دې حدیث څخه ځایونه د ضرورت د نظر مستثنٰی دي لکه حلق العانة (زېرناف خریل) یا هندو مسلمان سي ځان په ډاکټر وغیره سنتوي او په نېږ د غائط او بولو چې بې اختیاره نظر پر ذکر واقع کېږي فافهم.

ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ﴿۳۰﴾

دغه غض البصر او حفظ الفرج فائده مند دی او پاکونکی دی، ولې چې د زنٰی څخه مو لېرې کوي، په تحقیق خدای ﷻ خبر دی په هغه څه چې دوی یې فعل کوي چې سترګې د نامحرمو خواته وراړوي، یا لاسونه و بېګانه ښځو ته وروړي وما یقصدون بذالک من فعل الزنٰی، نو چې خدای ﷻ په ټولو اعمالو د دوی خبر دی، نو دوی باید له خدایه وېرېږي او له ورته عملو څخه توبه وکاږي.

# وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ

ته ووايه اې رسوله د خداى ﷻ مؤمناتو ښځو ته چې پټوي دې سترګې (كلمه د من زائده ده تفصيل يې په تفسير كې د مخه تېر سو)

**پوه سه**: چې ښځې ممنوع دي له كتلو څخه و داسي ځاى ته كه د نر وي او كه د ښځې چې دوى ته يې كتل ناروا وي لكه مابين السرة والركبة چې هغه عورت دي ستر يې واجب دى پر نر او ښځو دواړو او نظر د بل ورته حرام دى، په كتاب الزواجر كې د ابن حجر المكي راغلي دي كما يحرم نظر د نر و ښځه ته مطلقًا دغه رنګه حرام دى نظر د ښځې و نر ته ولو بلا شهوة ولا خوف فتنة اى الزنى.

**درويش وايي**: چې په دې مبحث كې هر څه حرمت چې ذكر كېږي كه مطلقًا وي او كه و عورات غليظه ته وي مراد ځندي لڅ اندام دى، نعم كه په منځ كې د نر او ښځې محرميت وي لكه زوى او مور، ورور او خور الى غير ذالک كه محرميت د نسب وي كما ذكرنا او كه محرميت د رضاع وي لكه رضعي مور او خور او يا محرميت د مصاهرة لكه زوم او خواښې، نو كتل كه د نر وي او كه د ښځې وماسوى ته د مابين السروة والركبة لكه مخ، پندي، مروندونه وغير ذالک په شهوت سره حرام دى او بېله شهوته حرام نه دى، نعم ښځې لره غض البصر د بېګانه سړي و هر ځاى ته چې وي اولى او احسن دى كه په شهوت وي او كه بلا شهوته وي، په دليل د هغه حديث چې ابو داؤد، ترمذي، نسائي او بيهقي په خپل سنن كې راوړى دى، تېرلو روايت د ام سلمة زوج النبي ﷺ څخه كړى دى، دا وايي چې زه او مېمونه د عليه الصلوة والسلام سره ناستي وُ چې عبد الله ابن ام مكتوم كوړ ته راغلى يعني د عليه الصلوة والسلام د ملاقات لپاره، نو عليه السلام موږ ته وويل احتجبا منه، مخ پټ كړئ، ام سلمه ﷺ وايي ما ورته وويل يا رسول الله ﷺ هو اعمٰى لايبصر، دى خو په سترګو ړوند دى ته وويني؟ عليه الصلوة والسلام راته وويل، آيا تاسي ړندې ياست، الستما تبصرانه، تاسي دى نه وينئ؟

**درويش وايي**: چې دا دليل د هغه چا دى چې وايي حرام دي كاته د ښځې و هر ځاى ته د بېګانه سړي مطلقًا لان اعضاء الرجل كلها محل شهوة النساء والشهوة فيهن اكثر و اوفر.

**مسئله:** نظر د ښځي و ښځي ته په ماسوئ کي د مابين السرة والركبة كه په شهوت سره ؤ هم حرام دی.

**سوال:** ښځه به د ښځي و يو اندام ته څرنګه په شهوت ګوري؟

**خواب:** دا شهوت په هغه ښځو کي پيدا کېږي چي په عمل د سحاق والعياذ بالله مبتلى وي، سحاق دا بولي چي يوه ښځه پر بلي پرېوځي او پښې پورته ونسي هغه بله ښځه خپل فرج پوري مږي يو ګړی وروسته دواړې انزال سي او لکه د نر د جماعو خوند ورته حاصل سي، كذا في روح المعاني.

**درويش وايي:** چي چونکه د ښځي شهوت ډېر دی او تقوئ د حرمت د زنى په ډېرو ښځو کي کمه ده خصوصًا په اوسني زمانې کي، نو زوم بايد د خوابني ځخه که څه هم حرمت ابدي لري ډېر احتياط کوي، ولي چي ماته ډېر کسان راغلي دي د فتوئ غوښتلو لپاره، بعض وايي چي زه د خپلي مايني سره پروت وم چي ماجماع وکړې د مايني سره او مور به بيده ؤ خوابنې به مي تر شا راته پرته وه او لاس به يې راباندي اچولی ؤ تينګ به يې نيولی وم چي زه به راويښ سوم کرار به يې راته وويل مخ را اوړوه ما چي به مخ ور واړوی دې به لا ترمخه پرتو ګ کښلی ؤ اخير به پر ما شهوت غالب سو جماع به مي ورسره وکړې الى غير ذالک من حيل النسوة، او د رضعي خور و غيره سره دي سړی ډېر احتياط کوي، ولي دا حرمت خو عارضي دی د شهوت مانع نه دی په ډېرو ښځو کي، نو نر دي احتياط کوي چي ددوی د شهوت په سبب دي ودام ته د زنى واقع نه سي.

**درويش وايي:** چي مظهري د فوق الذكر آيت شان نزول داسي بيان کړی دی په روايت د ابن ابي حاتم له مقاتل ځخه دی وايي چي مونږ ته دا خبر رسېدلی دی چي جابر بن عبدالله رض وويل چي اسماء بنت مرثد خپل د خورما په باغ کي وه نوري ښځي به هم هغه باغ ته د مجلس او باندار لپاره ورتلې پرتوګان به يې نه وه اغوستي يعني تيبصان به يې اوږده وه، نو د پښو پازېبونه به يې معلومېدل او سينې به يې هم ښکاره وې او کوڅې به يې معلومېدلې، نو اسماء رض وايي چي ما اقبح هذا الفعل منهن فانزل الله تعالى في ذالک، وروسته مظهري رح اختلاف د ابو حنيفة او د شافعي او د يوه او بل دلائل يې ذکر کړي كما هو ديدنه في تفسيره وان موضع ذكر هذه الاختلافات وذكر الدلائل من الجانبين كتب الفقهاء رح ... مصرع:

وللناس فيما يعشقون مذاهب

**درویش وایي**: چي بخاري او ترمذي روایت کړی دی له ابن عباس ﷺ ښځه چي یوه ښځه د خثعم د قبیلې و علیه الصلوة والسلام ته راغله په داسي حال کي چي فضل بن عباس ﷺ د علیه السلام تر شا سپور ؤ په کال کي د حجة الوداع. دې ښځي دا پوښتنه کوله یا رسول الله ان فریضة الله علی عباده في الحج ادرکت ابي شیخًا کبیرًا یعني حج چي فرض سو زما پلار په داسي حال کي دی چي شیخ کبیر دی حتی چي پر اوښ باندي یوازي نسي سپرېدای فهل یقضٰی عنه ان احج عنه؟ قال ۴ نعم، ابن عباس ﷺ وایي چي فضل ودې ښځي ته ډېر کتل ولي چي ښځه هم ځوانه وه او هم ښائسته وه او ښځي به فضل ته ډېر کتل ولي چي فضل ﷺ ډېر ښائسته ځوان ؤ نو علیه الصلوة والسلام به د هغې ښځي په دوران کي د خبرو به یې د فضل مخ هغه بل طرف ته اړاوه یعني چي دا ښځه وه نه ویني، نو عباس ﷺ ورته وویل چي په دغه وخت کي حاضر ؤ، لم لویت عنق ابن عمک (ولي دي وه پېچل غاړه خپل د اکا د زوی یعني الفضل) علیه الصلوة والسلام ورته وویل رئیت شابًا (ای الفضل) وشابة (یعني المرئة الخثعمیة) فلم آمن علیها الشیطان (یعني ما امن نه درلودی پر دوی له شیطان څخه چي په شهوت به سره ګوري)

**سوال**: ولي علیه الصلوة والسلام هغې ته نه ویل چي مخ پټ کړه؟

**ځواب**: ابن القطان ﷺ وایي چي ددې حدیث څخه دا فهمېږي چي کتل و ښځي ته په وخت کي د امن د فتنې یعني الزنٰی روا دی او په دې مجمع عام د حجة الوداع هیڅ امکان د زنٰی محسوس نه ؤ.

وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا

او دوی دي خپل فروج یا د زنٰی څخه یا دي نه ښکاره کوي، او دوی دي نه ښکاره کوي د ښائست شیان خپل لکه بنګړي یا جامې. قمیص او پر توګ یا په نکروزو سره لاسو نه.

**تفریع**: چي د زینت ښکاره کول نه دی روا، نو د ځایو د زینت چي ابدان د دوی دي ښکاره کول یې په طریقه اولی ناروا دی مګر نه هغه د زینت چي ښکاره کېږي په وخت کي د کار کولو یا د تګ لکه ګوتمی یا د قمیص کښته خوا، ولي ددې شیانو په وجوب الستر کي حرج دی والحرج مدفوع في الدین. او بعض مفسرین وایي چي د زینت مواضع د زینت بحذف المضاف.

**فائده:** مواضع د زينت که خلقي وي لکه ښائسته اعضاء يا اختياري وي.

**پوه سه:** چي په استثناء سره مخ او ورغوي او په يوه روايت کي پښي تر بجلکو پوري خارج سوه عند ابو حنيفة ومالک واحمد والشافعي رحمهم الله. لما جاء في حديث الترمذي عن ابن عباس وعن عائشة رضي الله عنها ايضاً ان تلک الاعضاء ليست بعورة.

**وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ۖ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ**

يضربن په معنی د اچولو دی ماخوذ من قولهم ضرب يده على الحائط اى وضعها خپل پوړنی دي پر خپلو گريوانو اچوي تاچي وېښتان يې پټ سي او غېږونه يې پټ سي او غاړي يې پټي سي او غوږوالي چي په عربي يې قرط بولي او په فارسي يې گوشواره بولي (ولا يبدين آه) او دوی دي نه ښکاره کوي هغه زينت چي ماظهر څخه دي مستثنٰى سو، نو اضافت د زينتهن لپاره د عهد ده، نو مراد خفي زينت دی لکه غوږوالي، بنگړي، پای زېبونه وغير ذالک.

**سوال:** له استثنٰى څخه د ما ظهر خو دا معلومه سوه چي غير د ماظهر يعني پټ زينت نه دی ښکاره فما الفائدة في التکرار؟

**ځواب:** مقصود دلته بيان دی د من يحل لهن ابداء الزينة الخفية له ومن لا يحل (بعول) جمع د بعل ده يعني مېړه. مګر نه مېړه ته دي زينت خفيه ښکاره کوي، ولي چي مقصود د ماينو ځان ښائسته کول دي و مړو ته، نو مېړه ته د ماينې د ټوله اعضاؤ ليدل او کتل روا دی حتى الفرج لکن نظر و فرج ته يې مکروه دی لقوله عليه الصلوة والسلام اذا اتى احدکم اهله (يعني ماينې ته د جماع لپاره) نو دي پټ کړي ځان او ماينه يعني دوه عضوه مخصوصه د دواړو، رواه الشافعي والطبراني عن ابن مسعود رضي الله عنه. او له عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی: ماریٔ مني ولا رئيت منه (نه دي ليدلي عليه الصلوة والسلام د ماڅخه او نه ما ليدلي دده څخه يعني العضو المخصوص وقت الجماع) او بعض علماء وايي چي نظر و فرج ته د ماينې خلاف الاولى دی وهو على ماقال الخفاجي مذهب الحنفية رحمهم الله وتفصيله في الهداية.

**مسئله:** که مېړه ضعيف الشهوة وُ جداً چي د ماينې و فرج ته يې په کتلي نه وای شهوت نه پورته کېدی. نو دا عذر دی نر ته يې کتل روا دی او ماينه دي هم ځان نه سپموي او پر مېړه دي دا پېرزوينه کوي.

**مسئله:** مېره چي په هر زينت د ماينې خوشاله کېدې او شهواني قوت ته يې زيادت رسېدې پر ماينه واجبه ده چي زينت به کوي لکه سترګي تورول لاسونه او پښې په نکروزو سره کول او شونډان سره کول او سرخي او سفېدې کول او نور ورته افعال.

## أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ

يا پلرونو ته ددوی وکذا آباء الآباء وابناء الامهات وان علو يعني نيکه ګان که د پلار د خوا وي او که د مور د خوا وي بدلالة النص واجماع الامة، يا پلرونه د مړو چي خسران يې بولي يا تر هغه پسي لوړ نيکه ګان د مړو وان علون (وابنآئهن) يا زامن د ښځو يا زامن د زامنو چي لمسيان يې بولي وهلم جرا وکذا بناتهن (زامن د لونو ايضًا بدلالة النص واجماع الامة المرحومة) يا زامن د مړو ددوی يعني چي د بلي ماينې څخه يې وي چي په پښتو يې بوڼځيان بولي.

**درويش وايي:** چي ما بوڼځيان ددې لپاره وويل چي د ښځي خپل زامن خو دمخه ذکر سول يعني وابنآئهن.

## أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ

يا وروڼه ددوی که د پلار او د مور د دواړو يې وي او که يوازي د پلار يا يوازي د مور د خوا يې وي، يا زامن د وروڼو ددوی چي په پښتو يې وريرونه بولي وفي حکمهم بالنص والاجماع زامن د زامنو د وريرو او زامن د لونو د وريرو. يا زامن د خوندو ددوی چي خوريان يې بولي يا زامن د زامنو د خوندو ددوی وان سفلوا بدلالة النص والاجماع.

**حکمت:** خدای ﷻ مباح کړی و ښځو ته ښکاره کول د محاسنو خپل و دغو رجال مذکورينو ته ولي چي د دوی تر منځ مخالطت ډېر دی او تګ راتګ او يو له بله حاجت غوښتنه. او بل داده چي بېره د فتنې د زنې د دغو رجالو له خوا نسته الا نادرًا جدًا، او په طبائع د رجالو نفرت کېږي چي دغو ښځو ته د شهوت په نظر وګوري، نو خدای ﷻ مباح کړی ودوی ته يعني مذکورينو نرو ته چي دوی وګوري و هغه اعضاء ته د دغو قريبانو ښځو چي په وخت کي د کالو پرېولو، د دوډۍ پخولو، د ځای د جارو کولو او د نورو کورني کارو ښکاره والی يې مالابد منه وي وهو والوجه والراس والصدر والساقان والعضدان.

**مسئله**: نه دی روا و مذکوره نرو ته کتل و شاته د ددوی او نسو ته ددوی او نه و منځ ته له نو (چي په عربي يې سرة بولي او په فارسي يې ناف بولي او په پښتو يې نو بولي) څخه تر زنګانه ددوی لعدم الضرورة لانها لاتنكشف عادة عند الخدمة فلا وجه لاباحة النظر الى هذه المواضع والاعضاء. منهن.

**مسئله**: هم دغه حکم مذکور في القرآن الكريم دی د هغه نر او ښځي تر منځ چي نکاح يې ابدي سره نا روا وي که په نسب سره وي كالمذكورين والمذكورات في هذه الايات يا په رضاع سره لکه رضعي مور يا خور او يا په مصاهرة سره لکه خواښې د خواښي مور د خواښي خور.

**پوښتنه**: خدای ﷻ د اکاګانو او د ماماګانو ذکر په آيت کي نه و کړی؟

**ځواب**: ولي چي اکاګان په معنی کي د بني الاخوان دي او ماماګان په معنی کي د بني الاخوات دي بدلالة النص والاجماع. ولي چي عمه ته ابداء د زينت وزوی ته د ورور روا دی، نو بنت الاخ ته ابداء د زينت و اکا ته هم روا دی للمساوات، او چي خالة ته ابداء د زينت و خوريي ته روا سو نو بنت الاخت ته ابداء د زينت و ماما ته هم روا دی.

**مسئله**: روا دی نر ته چي مسه کړي د ښځي هغه عضوه چي ده ته يې نظر روا وي، ولي ګاهي چي په سفر کي دغه نر او ښځه سره ملګري سي و دغه مسه ته ضرورت پيدا کيږي، او بل دا چي د محرميت ابدي په سبب په مسه کي د دغو اعضاوو بېره د شهوت نسته، البته د کتلو و يو اندام ته د ښځي او د مسه کولو د هغه اندام فرق ښکاره سته، نو که نر پر خپل شهوت د مذکوراتو ښځو بېرېدی نو دي اعضاء مذکوره نه مسه کوي او د حديث د ابن مسعود چي احمد او طبراني روايت کړی دی په يوه برخه کي راغلي دي: واليدان تزنيان وزناهما البطش اى اللمس بالشهوة.

**مسئله**: که په نظر او کتلو کي د بعض نرو چي شهوت يې په انتهائي درجه کي وُ او يا يې پر قرينه ښځه دا شک راتلی چي کتل به يې ماته سبب د شهوت زما يا دي وګرځي، نو هغو اعضاوو ته چي تو هم د شهوت پکښي کيږي نه دي ګوري، ولي چي د حديث مذکور د ابن مسعود رض په يوه برخه کي راغلي دي چي رسول كريم ﷺ وايي: والعينان تزنيان وزناهما النظر (يعني بالشهوة)

**يوه سه**: چي په (اونسائهن) کي معنی د اضافت المجانسة دی في الانوثية، نو

پر دې تقدير روا ده مؤمنه ښځې ته چې خپل محاسن ښكاره كړي وبلې ښځې ته كه مؤمنه او كه كافره وي كه حره وي او كه مينځه، ددې جواز دليل دادى چې ښځې سره يو جنس دى او شهوت د يوې د بلې ته غالبًا نه كيږي (د غالبًا د قيد فائده داده كه يوه ښځه په مرض د سحق مبتلا وه، نو هغه بله ښځه دې هغه ځاى ځندې پټوي چې داعي د شهوت د سحق گرځي وقد مر معنى السحق بالتفصيل) نو ځكه له امام اعظم رح روايت دى چې نظر د ښځې و ښځې ته لكه نظر الرجل الى محارمه آه، او بعض مفسران وايي چې مراد له نسائهن ځخه مؤمناتې ښځې دي، نو پر دې تقدير نه ده روا مسلمانانو ښځو ته چې كشف د محاسنو و كافراتو ښځو ته وكړي، ولې چې كافرات ښځې زمونږ د ښځو ځخه نه دي لكونهن اجنبيات في الدين، ولې چې كافرات ښځې ددې پرهيز نه كوي چې خپل ميړه ته دې ووايي چې د فلاني مسلمان داسې ښائسته ماينه يا لور وه او د هغې د حسن اوصاف دې پر ميړ ورته كښيږدي چې د غائبانه شهوت باعث وگرځي. وجاء في الحديث المتفق عليه لاتباشر المرئة المرئة فتنعتها لزوجها كانه ينظر اليها (درويش وايي كه ځه هم دا حديث خو عام دى كافره او مؤمنه دواړو ته شامل دى لكن المؤمنة يتحرج عن وصف المؤمنة لزوجها والكافرة لايتحرج) بغوي رح وايي چې خليفة المؤمنين عمر بن عبد العزيز رح (كه ځه هم عمر رض المذكور له صحابه وو ځخه نه دى لكن له جهته د عدالت دده كما جاء في تواريخ الاسلام حتى چې بعض تواريخ وايي چې عمر بن عبد العزيز په درجه كې د پنځم د خلفاء راشدينو دى، نو ځكه فقير رضى الله عنه ووايه) نو ده و خپل والي عبيده بن الجراح ته نوشته كړه چې منع كړه ښځې د اهل كتابو يعني يهوديات يا نصرانيات چې يو ځاى د مسلماتو ښځو سره حمام ته داخليږي.

**أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ**

او يا چې په ملك يمين كې دې د ښځو.

**درويش وايي:** چې دا آيت معركة الآراء دى، ابن جريج رح وايي چې مراد د نسائهن چې وړاندې تېر سو سره د تفسيره او اختلافه مؤمنات حرائر دي، او مراد د ماملكت ايمانهن ځخه مينځياني دي ولوكان كوافر، مريان نه دي مراد فلايحل لامرئة مسلمة ان تتجرد بين يدي مشركة الا اذا كانت المشركة مملوكة لها فعلى هذا

التاويل نه دی روا او ښځي ته انکشاف د محاسنو ومخ ته د خپل مريي او نه دی روا مريي ته چي د مالک ښځي ته به ګوري مګر هغه اعضاء ددې چي بېګانه سړي ته يې ديد روا دی، وبه سيد الطائفة ابو حنيفه ﷫، وبه قال بعض اصحاب الشافعي، چناچه ابو حامد محمد الغزالي من الشافعية وايي الصحيح عند اصحابنا ان العبد لايکون محرمًا لسيدته. وقال النووي من الشافعية ﷫ و هو الصواب؟ بل ينبغي ان لايجري فيه خلاف والقول بانه محرم لها ليس له دليل ظاهر وان الصواب في تاويل انه نزلت في الاماء المشرکات انتهی قول النووي ﷫. صاحب هدايه وايي چي زموږ دليل دادی چي مريی فحل يعني نر دی غير محرم ولا زوج او دوطرفه شهوت موجود دی او نکاح يې ورته روا ده وروسته تر زوال د ملکي ددې. او مجبوري په داخل کې د کور مريي ته نسته په خارج او دباندي دي خدمت په کوي، او کور ته چي راځي لکه بېګانه سړی داسي دي راځي، يعني لکه بېګانه سړي ته چي کتل دده وباداري ته روا وه ده ته هم هغو ځايو ته کتل جائز دی، والمراد بهذه الآية الاماء انتهی قول صاحب الهداية مع تغيير يسير، قال سعيد بن المسيب والحسن وغيرهما ﷫ لاتغرنکم تاسي دي نه خطاباسي سورت نور فانها في الاناث دون الذکور، او مالک ﷫ وايي چي ماملکت ايمانهن شامل دی مريانو او مينځيانو دواړو ته، نو امام مالک ﷫ وايي يجوز للسيدة الانکشاف عند عبده کسائر المحارم ويجوز له يعني مريي ته روا دی و خپلي باداري ته لکه خپلي محرمي ته چي ګوري. او امام شافعي ﷫ په نېز د جمهورو د اصحابو دده پر دغه رايه دی چي مريی محرم دی.

**درويش وايي:** چي نور دلائل د طرفينو په محرميت کي د مريي او د عدم محرميت دده و کتابو ته د فقهاؤ پرېږدو، فقير وايي بېله تعصب مذهبي انصاف دادی چي مريی په کور کي لکه محرم د باداري پر ښځو لوی خطر دی د کورني ژنځي، ولي محرميت د نسب يا د رضاع علحده شی دی چي د شهوت ملا ورماتوي او مريان چي عمومًا پياوړي ځوانان وي او په کور وځي ننوځي او د ښځي مېړه روزانه خپل دکان يا تجارت يا اجرت ته تللی وي بلکې ګاهي مېړه د ښځي په سفر د تجارت ولاړ سي چېرته ځوان د ښځي مريی په کور کي د ځواني سيدي سره بلا ستر ولامانع موجود وي دا به عجبه وي چي ژنځي نه سره وکړي که څه هم ښځه ډېره عفيفه وي، والله اعلم.

# أَوِ التَّٰبِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ

او یا هغه نر چي تابع وي د غني سړي چي په صرف نس د ډوډۍ ورسره وي چي هيڅ حاجت و ښځو ته نه لري يعني آله يې ملگرتيا نه ورسره کوي.

**درويش وايي:** چي دا هغه ښځي کلان ساله زاړه نران دي سماهم تابعين له دې سببه چي دوی پر کسب او مزدورۍ قدرت نه لري. نو د يو چا سره ورسره وي که څه هم دروازه واني په کوي او يا له بازاره پياز و پتاتې او داسي نور په راوړي او هغه کالي او ډوډۍ ورکوي، نو دې سړي څخه دي ستر نه کوي او لکه محرم داسي معامله دي ورسره کوي. او حسن ؒ وايي چي داسي درجې ته رسېدلی وي چي ذکر يې هيڅ حرکت نه لري او نه پورته کېږي او دده په خپله هم جماع ته هيڅ شوق نه کېږي. او له ابن عباس رض څخه روايت دی چي له غير اولی الاربة څخه عنين مراد دی، او سعيد بن جبير وايي چي مراد څندي معتوه دی يعني چي اعصاب او دماغ يې خراب وي يعني که څه هم سليم البنية وي لکن د جماع يې سر نه خلاصېږي او نه يې فکر په رسېږي. لکه په اوسنی زمانه کي هغه سړی چي د هيروينو نشه کوي. او عکرمه ؒ وايي چي مراد څندي مجبوب دی. مجبوب هغه سړي ته وايي چي ذکر او خايه يې څندي پرې کړي وي. او مشتق له جب څخه دی چي معنی يې قطع ده. او بعض وايي چي مراد خصي دي چي فقط خايه يې څندي کښلې وي. لکن روح المعاني، روح البيان او مظهري وايي چي عنين او مجبوب او خصي په کتلو کي بېگانه ښځي ته لکه منده سړی داسي دی، ولي چي خصي احتمال د جماع لري چي کامل خصي نه وي او د مجبوب په زړه کي پوره اشتها د جماع سته لکن آله يې نسته، نو چي د ښځي په فرج پوري دا خپل مخصوص ځای مږي چي سحق يې بولي هم دی انزالېږي او هم ښځه. وكذا المخنث في ردي من الافعال يعني دی و خپلي ديري ته خپلگ وربرېږدي چي په پښتو يې کوني بولي او په اردو يې گانډو بولي. فانه فحل فاسق، نو تر قل للمؤمنين يغضوا من ابصارهم آه او تر قل للمؤمنات آه چي محکم آيتونه دي چي مجبوب، عنين، خصي او مخنث ته شامل دي. او دا آيت والتابعين غير اولی الاربة شمول او دخول يقيني دی.

**درويش وايي:** چي په کفايه شرح هدايه کي وايي چي هدايه مخنث مقيد کړی

په ردي من الافعال وهو ان يمكن غيره من نفسه (كما بينت معناه بالافغانية) احترازًا عن المخنث الذي في اعضائه لين وفي لسانه انكسار في اصل الخلقة لايشتهى النساء ولا يكون مخنثا في الردي من الافعال كفاية وابي فانه قد رخص بعض مشائخنا في ترك مثله في النساء لانه من غير اولى الاربة من الرجال انتهى.

## اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَآءِ

چي طفل اسم جنس دی په ځای کي د جمع راغلی دی، نو له دې سببه الذين يې صفت سو او ضمير د جمع ورته راجع سو. او يا هغه کوچنيان چي نه وي رسېدلي ورځت ته د قدرت د جماع د ښځو. له دې محاورې څخه ماخوذ دی ظهر على كسب كذا اى قوي وقدر عليه. او يا يې معنى داده چي دوی عورات د ښځو نه وي لګ کړي بالجماع معهن. نو حاصل دا دی چي حد ته د شهوت نه وي رسېدلي. وقال مجاهد رح معناه لم يعرفوا العورة من غيرها لاجل الصغر وعدم التمييز.

**مسئله**: كه مميز ؤ لكن حد ته د شهوت نه ؤ رسېدلی، رواه ده ښځو ته چي انكشاف د ټولو اندامو دده و مخ ته وكړي الا من السرة الى الركبة. ولايجوز كشف ماتحت السرة عنده، او كه چېرې طفل هيڅ تمييز نه درلودی فهو كالجمادات والبهائم لاباس لو كشفت عنده ماتحت الازار ايضًا.

**مسئله**: كه طفل مراهق ؤ يعني بلوغ ته نژدې ؤ او اشتهاء يې كېدل او عضو مخصوص به يې عند الشهوة ولاړه سوه فحكمه حكمه الرجال للظهور على عورات النساء.

## وَلَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِيْنَ مِنْ زِيْنَتِهِنَّ

او ښځي دي پښې په قصده د مځکي نه وهي تاچي معلوم كړل سي چي دوی پټ كړي وه د زينت له شيانو څخه ددوی چي په عربي يې خلخال بولي او په پښتو يې پازېبونه او په فارسي يې پای برنجن بولي، بغوي رح وايي چي د بعضو ښځو به دا عادت ؤ چي پای زېبونه به يې په پښو وه خلكو خو به نه ليدل نو چي پر يو مجلس د نرو به راتلله پښې به يې د مځكي ووهلې د پای زېبو به يې شرنګی سو، نو دوی ته په دغه آيت كي نهي وسوې له دغه كاره، ولې چي دا شرنګی په نرو كي ميل پيدا كوي و دې

ته، او د خلکو دا خیال کېږي چي مورږ ته یې په پټه خوله وویل چي زه ستاسي شوقي یم. بیضاوي وایي چي نهي د ضرب الارجل ابلغ دی تر ابداء الزینة، ولي چي په دې کي یو قسم تنبیه او اشاره ده ددې د خوا څخه، وادل علی المنع من رفع الصوت. څکه په نوازل کي وایي چي نغمې او بدلي د ښځو چي په ودو کي یې وایي عورت دی باید نر غوږ نه ورته ونسي، ابن الهمام په فتح القدیر کي وایي که کومه ښځه په لمانځه کي جهري قرائت ووایي لمونځ یې فاسد دی دا موجه خبره ده. ولهذا قال رسول الله ﷺ التسبیح للرجال و التصفیق للنساء. یعني چي امام سهوه سي نر دي په تسبیح فتح ورکوي او ښځه دي د راسته لاس ورغوې د چپه لاس پر شا وټکوي. او له هم دې سببه ټوله فقهاء اذان د ښځي مکروه بولي لان الاذان یحتاج الی رفع الصوت.

**درویش وایي**: چي په اوسني زمانه کي بعض ښځي د سپینو زرو ړنګوله جوړوي یعني په زرګر او په منځ کي د مري شني داني ورواچوي، نو هغه چي پښه د مځکي نه ووهي هم شرینګی کوي، خصوصاً چي پښه د مځکي ووهي یا پښه کلکه پر مځکه کښېږدي.

**سوال**: ددې قسم خلخال یې څه چاره چي بېله ضرب الرجل شرینګی کوي؟

**ځواب**: دا قسم خلخال و ښځي ته ممنوع دی چي په پښو یې کړي.

درویش وایي: چي د ښځو کنټرول نن ورځ تر طاقت بالا دی.

مصرع: ...... آنچه مردم میکنند بوزینه هم.

ښځي لیلامي زنانیي کالي د یهودو او نصاری وو ویني پر هغه قسم خپل کالي جوړوي (۱) لنډ قمیصان تر کوناټو پوري (۲) نازک تنګ پرتوګان چي بدن یې تر معلومېږي (۳) سینه لڅ ګرېوان یعني ځیګر یې د تیو تر سرو پوري تر ګرېوان معلومېږي (۴) د امریکایانو نرو او ښځو وېښتان په تلوېزون کي ویني چي سره دي، نو د مسلمانانو ښځي پر خپلو سرو سرې نکرېزي ایږدي تاچي وېښتان یې امریکایي ډوله سي. من تشبه بقوم فهو منهم حدیث صحیح (۵) په راډیوګانو او تلوېزونو کي مسلمانان د ښځو نغمې او بدلي اوري.

**تنبیه**: زدکړه د قرآن د محرمي ښځي څخه چي قاریه د قرآن وي ډېر زیبا دی، ولي چي د ښځي لهجه طبعًا خوش اوازه ده، نو قرآني صوت یې ډېر زیبا او مؤثر پرېوځي او نغمه هم نه ده فافهم.

وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٣١﴾

او توبه وكارئ وخداى ﷻ ته ډټولو ګنهو څخه اى مؤمنانو.

**درويش وايي:** چي مؤمنات تبع د مؤمنانو دي په اكثرو احكامو كي د قرآن كريم بلكي د احاديثو نبويه وو هم تبع دي.

**پوښتنه:** مؤمنان يې عمومًا مخاطب كړه په توبه سره حكمت يې څه دى؟

**ځواب:** اشاره ودې ته چي هر مؤمن كه هرڅو متقي وي لكن په اتيان كي د اوامرو د خداى ﷻ او په ځان ساتلو كي د منهياتو د څه ناڅه تفريط څخه خالي نه دى. قال رسول الله ﷺ كل بني آدم خطاء وخير الخطائين التوابون. رواه الترمذي وابن ماجه. او بعض مفسرين ددې آيت ترجمه داسي كوي رجوع وكړي وطاعت ته د خداى ﷻ فيما امركم ونهاكم يعني الاداب المذكورة في هذه السورة سورة النور.

**پوه سه:** چي لعل په معنى د لام كى دى اى لكى تفلحون اى فائزون بالمطلوب في الدنيا والآخرة. ولي چي سعادت د دنيا او د عقبى په توبه پوري مربوط دي، قال رسول الله ﷺ طوبى لمن وجد في صحيفته استغفارًا كثيرًا (خوش بختي دي وي د هغه چا لپاره چي پيدا كړي په عمل نامه كي خپل ډېر استغفار) له ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما واورېدل له رسول الله ﷺ څخه چي ويې ويل يا ايها الناس توبوا الى ربكم فاني اتوب في كل يوم مائة مرة، وعن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ والله لاستغفر الله واتوب اليه في اليوم اكثر من سبعين مرة. رواه البخاري.

**درويش وايي:** چي كه خداى ﷻ د بندګانو او ګناه كارانو توبه نه قبلولاى او په استغفار ويلو يې عفوه او بخښنه نه ورته كولاى، نو ولي يې دوى ته د توبې امر كاوه او پر توبه باندي ددوى يې ولي لعلكم تفلحون مرتب كاوه لان الكريم اذا وعد وفي والله تعالى اكرم من ان يرد ايدي التائبين والمستغفرين صفرًا، يو محقق شاعر وايي:

چو رسوا نكردى بچندين خطاء...... درين عالم پيش شاه وگدا
در آن عالم هم برى خاص و عام...... بيا مروز رسوا مكن والسلام

عرب وايي: التوبة صابون الاوزار.

وَأَنكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنكُمْ وَالصَّالِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ

خدای ﷻ چي په د مخه آياتو كي بندګان د مايوجب الزنٰی و السفاح څخه منع کړه په دې آيت کي امر د نکاح ورکړی، ولي چي نکاح سترګي د نر او د ښځي کښته کوي يعني د بل نامحرم و کتلو ته او لوی مانع د سفاح يعني زنٰی دی.

**پوه سه**: چي الايامٰی جمع د ايم ده مقلوب له ايايم څخه دی ايم په لغت کي نر و ښځي دواړو ته وايي چي جفت نه لري، او امر د انکحوا و اولياؤ ته د نر چي مانيه نه لري او د ښځي چي مېړه نه لري (والصالحين آه) عطف دی پر ايامٰی او د غه رنګه نکاح ور وکړئ و صالح مريانو ته خپل او خپلو مينځيانو ته.

**پوه سه**: چي دا امر د استحباب دی او د مريانو او مينځيانو نکاح يې په صلاح پوري مقيد کړه چي مراد څخه ي معنٰی شرعي ده چي هغه مريی يا مينځه چي صالح نه وي ګوښه دی د دې مرتبې څخه چي بادار دې د ده په شان او نکاح کي غم خوري وکړي او شفقت دې پر وکړي او د نکاح مصارف شرعًا و عادةً يعني بذل المال و اساس البيت پر غاړه واخلي. خو بيا هم صلاح قيد احترازي نه دی يعني چي غير صالح ته دې نکاح نه ورکوي، بلکې دا قيد لپاره د مزيد اهتمام په شان کي د صالحينو فافهم.

إِن يَكُونُوا فُقَرَاءَ يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ۗ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٣٢﴾

که دی وي فقيران يعني توان د مهر او نفقې د زوجې نه لري خدای ﷻ به غني ور کړي يعني د فضل او احسان څخه يعني قادر به يې پر مهر او نفقه وګرځوي، او خدای فراخه دی قدرت د ده او ښه خبر دی په حال د بندګانو.

**پوه سه**: چي په دې آيت کي يې رد وکړی د مانع د نکاح ای الفقر يعني لايمنعکم من النکاح الفقر، ولي چي خدای ﷻ متکفل د ارزاقو د عباد کلهم او مال په ياور نه دی سهار نه وي مابنام پيداسي وبالعکس فهذه الآية وعد من الله بالاغناء للناکح، له ابو ابکر صديق رض څخه روايت دی اطيعوا الله فيما امرکم به من النکاح. خدای ﷻ به پوره کړي خپله وعده يعني الغناء کما قال الله تعالٰی ان يکونوا فقراء الآية، او له قتاده رح څخه روايت دی چي موږ ته رسيدلې ده دا خبره چي عمر بن الخطاب رض ويلي دي مارئيت کرجل لم يلتمس الغناء من الباٰة ای النکاح وقد وعد الله فيها ای الباٰة ما وعد يعني قوله تعالٰی ان يکونوا فقراء

الآية، او له عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روايت دی ابتغوا الغناء في الباءة تاسي طلبوئ غناء په نكاح كي واطلبوا الفضل في الباءة، او تاسي طلبوئ فضل د خدای جل جلاله په نكاح كي، اوعمر رضي الله عنه دغه آيت تلاوت كړی يعني ان يكونوا فقراء الآية بغوي رحمه الله وايي چي عمر رضي الله عنه وويل عجب لمن يبتغى الغناء بغير النكاح والله تعالى يقول ان يكونوا فقراء يغنيهم الله الآية، او بزار، خطيب او دار قطني رحمه الله له عائشه رضي الله عنها څخه روايت كړی دی قالت قال رسول الله صلى الله عليه وسلم تزوجوا النساء فانهن ياتين بالمال رواه ابو داوٗد.

**دروش وايي:** چي ائمة الدين رحمهم الله متفق دي پر دې چي نكاح په حال كي د اعتدال د قوت شهواني وعدم التوقان والخوف عن الوقوع في الفاحشة اى الزنى سنة لقول النبي صلى الله عليه وسلم من احب فطرتي فليستن بسنتي ومن سنتي النكاح، وقال رسول الله صلى الله عليه وسلم النكاح سنة من سنتي فمن رغب عن سنتي فليس مني، وقال رسول الله "تناكحوا وتناسلوا فاني اباهي بكم الامم ولو بالسقط او كما قال عليه السلام، وقال رسول الله صلى الله عليه وسلم يا معشر الشباب من استطاع منكم الباءة (اى النكاح) فليتزوج فانه اغض للبصر واحسن للفرج ومن لم يستطع فعليه بصوم (ولي چي نكاح د سړي ستركي پټوي له حرام څخه او ښه ساتونكي ده له فاحشه څخه د فرج، او كه څوك وس نه لري د نكاح نو نفلي روژې دي ونيسي) فانه له وجاء (چي روژې ده لپاره يو نوع د خصي والى دی) فان كان شديد الاشتياق الى الوطي يخاف العنت وهو الزنى وجب عليه (يعني النكاح) عند ابى حنيفة رحمه الله و احمد رحمه الله، وقال مالک والشافعي رحمه الله هو مستحب لمحتاج اليه يجد اهبة (اى كارسازي من المهر والنفقة) او كه توقان او خوف له زنى څخه نه وُ فقال احمد و ابو حنيفة رحمه الله نكاح له افضل من نفل العبادة لانه فيه تكثير الامة المرحومة فانكاح عبادة متعدية والعبادة النفلية عبادة لازمية، وقال المالک والشافعي رحمه الله بعكسه.

**مسئله:** اختلاف الائمة في ترويج المرئة نفسها يعني من غير ولي، لقوله تعالى فلا تعضلوهن ان ينكحن ازواجهن (حيث نسب النكاح اليهن ومنع الاولياء عن عضلهن عن النكاح) او ائمه ثلاثه رحمهم الله وايي چي د ښځي نكاح بېله ولي ممنوع ده والتفصيل في كتب الفقها.

**مسئله**: که یو سړی د ماینې په مهر، نفقه او کالو کې پاته راغلی یعني نه یې سوای اجراء کولای آیا ماینه د نکاح د نسخ حق لري؟

**ځواب**: امام ابو حنیفه رح وایي حق د فسخ نه لري لکن قاضي دي دې ته لاتق د حال سره ددې او د مېړه نفقه وضع کړي او ښځې ته دې ووایي چې د نفقه او د نورو ضروریاتو لپاره پوروته کوه، او د پورو حواله پر مېړ: کوه او قاضي دې مېړ: مجبور کړي چې ته دا حوالې قبلوه. نو که دی یو وخت په قدرت د خدای ﷻ من حیث یحتسب او من حیث لایحتسب غني سو خو د پورو د حواله غاړه به وباسي او که یې قدرت نه کړی پیدا او مړ سو دده له ترکه څخه به د پورورو د حوالې غاړه وباسي. تاریخ وایي چې جعفر بن محمد صادق رح ته یو سړی راغلی شکایت د فقر یې ورته وکړی ده ورته وویل چې نکاح وکړه هغه سړي نکاح وکړه، څو ورځې وروسته راغلی بیا یې شکایت د فقر ورته وکړی ده ورته وویل چې ماینه دې طلاقه کړه، نو یو چا د جعفر بن محمد څخه پوښتنه وکړه چې یو وار دې سړي د فقر شکایت وکړی تا په نکاح سره امر ورکړی. هغه چې نکاح وکړه بیا یې د فقر شکایت وکړی. تا امر د طلاق ورکړی. ددې دوو متضادو امرو سر څه دي؟

جعفر بن محمد رح ورته وویل چې ما چې په نکاح سره ورته وویل زما خیال دا و چې ددې آیت اهل به وي: ان یکونوا فقراء یغنیهم الله الآیة.

**درویش وایي**: چې کمامر في تفسیر هذه الآیة: جعفر رح وایي وروسته تر نکاح چې بیا ده شکایت د فقر وکړی، نو زما گمان داسو چې دی اهل ددې آیت وان یتفرقا (که مېړه او ماینه سره خلاص سي یعني بالطلاق) یغني الله کلا من سعته.

**درویش وایي**: چې پر دې قصه هغه قول د بعض علماؤ بناء کېدای سي چې دوی وایي چې کاهي نکاح واجب الترک وي چې دا نکاح یې سبب د معصیت وګرځي لکه چې مېړه د ماینې د ولور یا نفقې لپاره غلا یا کسبه بري یا په یو بل مفسد اخته سي. نو ماینه دې طلاقه کړي تاچي له عصیان څخه خلاص سي، نو څکه په صحیح حدیث کې راغلي دي چې: یاتي علی الناس زمان لاینال في المعیشة الا بالمعصیة فاذا کان ذالک الزمان حلت الغروبة (نو چې هغه زمانه ورسېږي و مسلمانانو ته روا دی ترک د نکاح او اشتغال په عبادت سره چې تبتل

يې هم بولي او رهبانيت يې هم بولي، وفي الحديث على ماذكر في تفسير الكواشي اذا اتى على امتي مائة وثمانون سنه.

(درویش وايي: والله اعلم لعل المراد سنه (۱۸۰) بعد مضى قرن صحابة او بعد مضى خير القرون كما ورد في الحديث الصحيح خير القرون قرني ثم الذين يلونهم الى اخير الحديث الطويل) حلت الغروبة والترهب على رؤس الجبال انتهى ونقل عن امير المؤمنين علي ﷺ اذا نفذ عدد حروف بسم الله الرحمن الرحيم فانه يكون اوان خروج المهدي عن بطن امه انتهى (درویش وايي والله اعلم بصحة النقل) دا قول د علي ﷺ شيخ اكبر محي الدين ابن العربي په دې دوو بیتو کي راوړی د.

اذا نفذ الزمان على حروف...... ببسم الله فالمهدي قاما

(الف د قاما لپاره د اشباع دی او مراد د قيام ولادت دی لا دعوى المهد ويت كمامر) ولو لا الحسد لظهر سر العدد انتهى قول ابن العربي، صاحب د روح البيان د علي ﷺ د قول او د شعر ابن العربي داسي توجيه کړې ده، حيث قال يقول الفقير كه هره كلمه د راء په بسم الله کي مكرر يعني دوې راءيې وبولي په اعتبار د دې چي په تلفظ او په صفت کي د راء تكرار ستته، نو حساب د حروفو د بسم الله په حساب د ابجد الف ومائة وست وثمانين ته رسيږي (۱۱۸۶ هـ) وروسته دی وايي فالظاهر من حديث الكواشي المراد في الحديث مائة وثمانون بعد الالف.

**درویش وايي**: چي په دې تاويل د حديث معنى د حديث ښخي صحيح ده. ولي چي وروسته تر (۱۱۸۶) زمانه د نهايت فساد او معاصيو ده، نو ځکه عليه الصلوة والسلام الغروبة يعني ترک د نکاح او ترهب پر سرو د غرو روا کړی دی، لكن خبره په دې کي ده چي عدد (۱۱۸۶هـ) خو ډېر د مخه پوره سوی دی، ولي چي اوس سنه (۱۴۲۰ هـ) ده او د مهدي هيڅ درک نسته، ويمكن ان يقال ان سنة (۱۱۸۶) خو د مهدي د ولادت تاريخ دی لا زمان الدعوى وفيه نظر.

**درویش وايي**: چي له دې سببه په نقل کي د قول د علي ﷺ ما داسي وويل والله اعلم بصحة النقل وفي ختم المبحث المذكور يقول الفقير لله غيب السموات والارض والله تعالى اعلم بالصواب.

وَلْيَسْتَعْفِفِ الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا حَتَّىٰ يُغْنِيَهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ

او طلب د عفت دي کوي او کوشش په دفع کي د شهوت دي کوي په روژه سره يا په قلة الطعام يا په اشتغال د اذکارو يا د افکارو في خلق السموات والارض يا په مطالعه د کتابو د صوفيه او غير ذالک. هغه څوک چي نه لري اسباب د نکاح ومالابد منه للناکح لکه ولور چي اوله ورځ د نکاح غوښت غواړي والنفقة وملبوسات الزوجات في العادات وفوات غيرها من حقوق النکاح.

**درويش وايي:** چي وفي مثله قال رسول الله ﷺ ومن لم يستطع (اى النکاح) فعليه بالصوم فانه له وجاء، وقد مر هذا الحديث مع الترجمة.

(حتى يغنيهم آه) حتى غاية للعفة. تر هغه وخته پوري چي غني کوي خداى ج دوى د فضله او رزقه څخه يعني کوشش ته په عفت کي حاجت نسته بلکي ماينه او نکاح وکړه او دفع د غلبه د شهوت په هغې سره وکړه، له يوې څخه نيولي تر څلورو ماينو پوري کما جاء في القرآن الکريم.

**درويش وايي:** چي په ترجمه کي د فتوحات مکي داسي راغلي دي: بعض از صالحان را چيزى نبود و زن خواست، وفرزند آمد وما يحتاج ان نداشت پس فرزند راگرفت وبيرون خانه آمد ودر مردم نداء کرد که اين جزاى آن کس است که فرمان حق نبرد، مردم گفتند زناء کرده ايد؟ گفت نى ولکن حق تعالى فرموده بود: وليستعفف الذين لايجدون نکاحًا الى اخير الآية ومن فرمان حق نبردم وقبل الغنى المذکور في الآية تزوج کردم وبرائ من هنوز فضيحت و رسوايى شد، مردمان بروى شفقت کردند، هرکس قدرى امداد همراه او کرد وباخير تمام بخانه خود بازگشت يعني فکان التزوج سببًا للغنى کما في الآية الاولى ان يکونوا فقراء يغنيهم الله الآية.

وَالَّذِينَ يَبْتَغُونَ الْكِتَابَ مِمَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوهُمْ

او هغه مريان چي غواړي ستاسي مالکانو څخه عقد د کتابت، نو کتاب مصدر دى په معنى معروف سره نه دى بلکي په معنى د عقد د کتابت نو مصدر دى، د باب د مفاعله نحو کاتبه يکاتبه کتابًا مکاتبةً، نو دا يو عقد معاوضه دى گويا مريى له بادار څخه خان رانيسي بما يؤديه من کسبه فيجب فيه الايجاب والقبول من الجانبين.

وليس اعتاقًا معلقًا باداء المال نو نا بالغ مريي سره عقد د كتابت روا دی چي په بيع او شراء پو هيږي لتحقق الايجاب والقبول لان الصبي العاقل من اهل التصرف چي هغه تصرف ده ده په نفع كي تمام وي والكتابة نفع له لانها نوع حيوة له.

**تفريع**: د صبي لايعقل او مجنون سره عقد د كتابت نه دی روا، د عقد كتابت الفاظ په نېز د ابو حنيفه رح دادي چي مولى يعني مالک و خپل مريي ته ووايي كاتبتک على مال كذا (يعني دومره اندازه روپی) ويقول العبد قبلت، نو چي مريی هغه مقدار روپی ورکړي بس دی په خپله ازاد سو لان العتق موجب هذا العقد فيثبت من غير تصريح به.

**فائده**: په عقد كي كتابت شرط ده مال حالاً او مؤجلاً يعني پر يوه ځای لكن په مدت معينه يا يوه يا دوې مياشتي يا كاله وغيره (ومنجمًا) يعني په قسطو، او شافعي او احمد رح چي شرطول د مال حالاً خو نه دی صحيح لانه عاجز مطلقًا او كم از كم دوه قسطه خو غواړي لانه عاجز من اكثر من النجمين في الزمان القليل، او زموږ دليل دادی چي آيت خو مطلق راغلی دی، او بدل الكتابة لكه ثمن په بيع كي دی او مبيع نفس د عبد دی او دا اجماعًا خبره ده چي په بيع كي قدرت د تسليم د مال شرط نه دی، ځكه مفلس سړی ډېر اموال عظيمه رانيولای سي، او بله خبره داده چي امكان لري چي عبد مكاتب دي دوستان او قريبان لري چي و اداء ته د بدل الكتابة به تيارسی وي يا په زكوة كي يا په هبه.

**فائده**: كلمة الفاء للتضمن الموصول لمعنى الشرط، كاتبوهم امر استحباب دی عند جمهور العلماء او په هدايه كي وايي چي دا امر ايجاب نه دی باجماع بين الفقهاء وانما هو امر ندب وهو الصحيح، په هو الصحيح كي غرض د هدايه دادی چي امر اباحت نه دی لكه زموږ بعض مشائخ چي وايي.

إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا

كه ستاسي باور او يقين وُ په دوی كي د خير، ابن عمر رض وايي چي قوت پر كسب يې درلودی وهو قول مالک وسفيان الثوري والحسن والضحاک رحمهم الله، او مجاهد رح وايي چي له خير څخه مراد مال دی ومعنی كه دوی لره مالونه وه، او دا قول ضعيف دی اذ العبد ومافي يده من المال ملک المولی، او اجماعًا وشرعًا

مريې اهل د ملکيت د مال نه دی للمنافات بين المالکية والمملوکية، ابن عباس رض وايي امانةً و وفاءً (يعني امين او وفادار سړی وي) امام شافعي رح وايي چې اظهر د معانيو د خير په مريي کې اکتساب او امانت دی، او صاحب هدايه وايي چې مراد له خير څخه حريت ددوی دی يعني بعد اداء بدل الکتابة وه مسلمانانو ته ضرر نه وي لکه دغه عبد چې کتابت له مولی څخه غواړي کافر وي که ازاد سي معاون د کفارو به وګرځي، نو پر دې تقدير يې کتابت مکروه دی لکن مع هذا که عقد د کتابت مولی ورسره وکړي دی صحيح لازم دی په حق د مولی.

**مسئله**: که د مريي هيڅ کسب نه وي زده لايکره کتابته عند ابی حنيفة ومالک والشافعي رحمهم الله في رواية.

**مسئله**: مکروه دی کتابت د مينځي چې هيڅ کسب يې نه وي زده اجماعًا، ولې چې شايد دا به بدل الکتابة په زنی پيدا کوي.

# وَءَاتُوهُم مِّن مَّالِ ٱللَّهِ ٱلَّذِىٓ ءَاتَىٰكُمْ

او تاسي ورکوئ و دوی ته يعني و مکاتبانو ته له مال څخه د خدای جل جلاله چې تاسي ته يې درکړی دی.

**بوه سه**: چې دا امر الهي باعث کول دي د ټولو مسلمانانو پر کومک د مکاتبينو سره که په فرضي زکوة سره وي او که په نفلي خيرات سره وي، او حسن او زيد بن اسلم رح وايي چې مراد سهم ددوی دی چې خدای جل جلاله دوی ته ورکړي په صدقاتو مفروضاتو کي بقوله وفي الرقاب، لکن ددې کلمات د مفروضه مال سره فقط مناسب نه دی ولې چې دا توهم دا مر هم لپاره د استحباب دی لکه امر د کاتبوهم. نو څرنګه به په فرضي سهم پوري خاص سي د بادار که څه هم زکوة د مکاتب ته خيل نه دی روا لکن دده لپاره بيا مستحب داده چې د بدل کتابت يو قسط دي مثلاً وربربردي، او بعض وايي چې پر مولی دا حط واجب دی وهو قول عثمان و علي والزبير وجماعة من الصحابة رض وبه قال الشافعي رح، او مظهري وايي چې تفسير د ايتا په حط سره نه دی صحيح يعني په آيت کې (غرض دا دی چې تفسير د ايتاء د لفظ په حط سره نه دی روا که څه هم حط المولی خو مستحب کار دی لکن ليس مدلول الآية دليل د ندب دادی چې عبد الله بن عمر رض خپل مريي

مكاتب كړى (۳۵۰۰۰) درهمًا په اخيرو كښتو كي يې (۵۰۰۰) حط وكړى، لان الايتاء يدل على التمليك، په حط كي خو تمليك نشته بلكې حط اسقاط دى ومن ههنا قال ابو حنيفة رح لايجب على المولى شيئًا من البدل اعتبارًا بالبيع (ولي چي عقد كتابت خو هم عقد معاوضه دى لكه بيع كمامر) او حط په هيڅ معاوضه كي كه مستحب وي لكن واجب نه دى، فكذا في عقد الكتابة ليس شئ من الحط بواجب على المولى، حسين كاشفي رح وايي، حويطب صبيح را بصد دينار مكاتب ساخته بود بعد از سماع اين آيت بست دينار باو بخشيد يعني ازان صد دينار بست دينار باو هبه نمود باقى (۸۰) دينا رصبيح بروقت مقرر ادا نمود، وقتل صبيح يوم حنين في الحرب، قال الشاعر:

بشنو از من نكته اى زنده دل ...... و زپس مرگم به نيكى ياد كن
گه بلطف ازاده را بنده ساز ...... گه با حسان بنده ازاد كن

**شان نزول:** مسلم او ابو داؤد له جابر بن عبد الله رض څخه روايت كړى دى چي د عبد الله بن ابي بن سلول يوه مينځه وه چي مسيكه يې نوم ؤ او بله مينځه وه چي اميمه يې نوم ؤ ابن ابى دوى مجبوره كولې پر زنى (يعني د خلكو سره زنى كوئ څندي اخلئ ماته يې راورئ چي دې ته په عربي ضريبة وايي، نو دې دوو رويي. څندي اخلئ ماته يې راورئ چي دې ته په عربي ضريبة وايي، نو دې دوو مينځيانو شكايت وكړى و عليه الصلوة والسلام فنزلت هذه الآية، او په روايت كي د سدي رح راغلي دي چي عبد الله بن ابى يوه مينځه درلوده چي نوم يې معاذه ؤ چي ابن ابى ته به مېلمه راغلى ده به دغه مينځه معاذه ورواستول چي جماع ورسره وكړي دا د ابن ابى احسان او نازول د مېلمه وه، نو دې مينځي شكايت و ابوبكر الصديق رض ته وكړى، ابوبكر رض دا خبره رسول الله ﷺ ته ورسول، عليه الصلوة والسلام امر وكړى چي مينځه څندي راوګرځوي، ابن ابى يوه ناره وكړه يعني خپل قوم ته من يعذرنا (څوک به زما كومک وكړي) من محمد (ﷺ) يغلبنا على ممالیكتنا (چي قبضه كوي زمو پر مالو او مينځيانو) فنزلت، او په بعض روایاتو كي راغلي دي چي دده لعين شپږ مينځياني وې، معاذه مسيكه، اميمه، عمره، اروي او قتليه چي ده به پر زنى مجبوره كولې، او پر هري يوې د خال سره د هغې د ښائست او په خواني ماليه يعني ضريبه اچولې وه روزانه.

**درویش وايي:** چي ددې روایاتو چي په عدد کي تفاوت سته منافات نسته ولې د ابن ابي دغه دنده وه چي رفته رفته شپږو مينځيانو ته ورسېدې.

## وَلَا تُكْرِهُوا فَتَيَاتِكُمْ عَلَى الْبِغَاءِ

تاسي مه مجبوره کوئ خپل مينځيانې پر زنې.

**پوه سه:** چي فتيات جمع د فتاة ده چي مينځي ته وايي لکه فتية چي جمع د فتى ده چي مريي ته وايي که څه هم په لغت کي فتى نر ځوان ته وايي او فتاة ځوانې ښځي ته وايي. لكن دا دوه مشهور لفظه كنايه ده له مريي او مينځي څخه که څه هم کلان سال سپين ږيري او سپين سري وي. وتوجيه تلك الكناية ان العبد والامة مالكان ددوی خدمت په کوي لکه په ځوان نر او ځوانه ښځه تراخيره د عمر.

**فائده:** د فتيات د لفظ مناسبت د بغاء د لفظ سره دی چي زنې ده ولې چي زنې خو ځوانه ښځه کوي غالبًا نه سپين سري ښځي او نه نابالغه نجوني.

**فائده:** اکراه پر زنې هلته بلل کېږي چي دا وېږوي په قتل يا په پرېکولو د يو اندام او په لږ خوشکه او پېشرو مکره نه بلل کېږي.

## إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا لِّتَبْتَغُوا عَرَضَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا

که دوی اراده درلوده د عفت او پاکۍ له زنې څخه.

**پوه سه:** چي بعض مفسرين وايي چي ان په معنی د اذا ظرف دی شرط نه دی، والكلام ههنا كذالك لمطابقة شان نزول كما مر چي مينځيانې تحصن غوښتي چي دا شکايت و عليه الصلوة والسلام ته ورساوه.

**سوال:** چي ان په معنی د اذا دی، نو صراحةً يې اذا ولې نه وو وايه؟

**ځواب:** چونکه ان په مشکوک افعالو کي استعمالېدی او دلته اراده د تحصن د مينځيانو لکه شاذ او نادر کار دی، ولې چي دوی سره نقصان د عقل او دين او كثرة الشهوة الى الجماع اراده د تحصن لري غرض يې توبيخ دی. او سرزنش او اظهار د بې غيرتۍ د مالکانو د مينځيانو يعني تاسي خو نران ياست او ځانونه غيرتمند بولئ تر ښځو، ښځي تحصن غواړي بې غيرته او بې ناموسه يې پر زنې مجبوره کوي، محقق بيضاوي رح وايي چي ارادة د تحصن قيد او شرط د اکراه نه دی، ولې چي اکراه پر زنې خو بېله ارادې د تحصن د مينځيانو د خوا نه پيدا کېږي

ولې که د وی اراده د تحصن و نه کړي نو طوعًا زنې کوي بدون الجبر والاکراه لکه سړی چې جماع د خپلې ماینې سره کوي فافهم.

**یوه سه:** چې دا قید د نهي هم نه دی یعني تخصیص النهي بصورة ارادتهن التعفف عن الزنی، واخراج ماعدی الارادة عن الحکم ای الاکراه، ولې چې اکراه بیله ارادة د تعفف هم پیدا کېږي، ولې چې شاید دې مینځې به د هغه سړي څخه چې بادار وایي زنې ورسره وکړه بد په یې راځي چې یا به سپین ږیری وي او یا به تور مخی الی غیر ذالک، نو بادار یې مجبوره کړي چې حتمًا به زنې ورسره کوې.

او یا مینځه په سبب د دې چې تازه یې جماع کړې وي و بل وار ته یې فعلاً شوق نه کېږي او بادار یې یو پېدال پیدا کړي چې پر جماع د مینځې ډېر مبلغ ورکوي بادار مینځې ته وایي ورسه کوټې ته ما سړی را وستلی دی جماع ورسره وکړه سره د دې چې په مینځه کې خو اراده د تحصن نسته لکن اوس یې شوق نه پر راځي، نو یې بادار مجبوره کړي کوټې ته یې ور واستوي او هغه سړی زنې ورسره وکړي که څه هم د دې شوق نه پر راځي، یا بادار متعدد کسان په یوه شپه د مینځې د زنې لپاره راوستلي وي مینځې ته وایي چې د دغو متعددو کسانو سره په نوبت جماع وکړه په مینځه کې په یوه شپه د دومره جماع توان نه وي لکن مولی یې مجبوره کړي چې که توان لرې که یې نه لرې دا جماع به کوې.

(لتبتغوا) چې تاسې طلبوئ ای مالکانو د مینځیانو په اکراه سره د دوی پر زنې، د متاع سریع الزوال، له کسبه څخه د مینځیانو وبیع اولادهن یعني د زانیه مینځې چې به یې اولاد پیدا سو هغه به یې هم خرڅاوه.

**یوه سه:** چې عرض په لغت عربي کې هغه شي ته وایي چې مستقل ثبوت نه لري له دې سببه متکلمون او حکماؤ عرض د داسې شي لپاره استعمال کړی دی چې قائم په جوهر سره وي کاللون والطعم او هم له دې سببه خلک وایي الدنیا عرض حاضر تنبیهًا علی انها لاثبات لها. فائده: لتبتغوا قید للاکراه لا للنهي فافهم.

وَمَن يُكْرِههُّنَّ فَإِنَّ اللَّهَ مِنۢ بَعْدِ إِكْرَٰهِهِنَّ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣٣﴾

او چې څوک یعني مالکان د مینځیانو دوی مجبوره کړي پر زنې باندې، نو خدای ﷻ وروسته تر اکراه د دوی بخښونکی د ګناه دی مینځیانو لره او مهربان دی، یعني ګناه د زنې بعد الاکراه د مالک مکره په غاړه ده، راوي وایي چې الحسن بن

الفضل رح چي په دا آيت وو ايه نو داسي به يې ويل: لهن والله لهن والله او په مصحف کي د ابن مسعود رض داسي نوشته وه من بعد اکراههن لهن غفور رحيم.

**فائده**: پر تاويل من يکرههن مبتدا، ده خبر يې محذوف دی، ولي چي فان الله الآية خبر نسي کېدای لعدم العائد الى المبتداء، نو تقدير داسي دی ومن يکرههن (فعليه وزره) دا يې خبر مقدم دی فان الله من بعد اکراههن غفور رحيم نو فان الله آه تعليل د جمله سابقې دی. لکن دوی ته خو مغفرت او رحمت ثابت سو او مالکانو ته لکه ابن ابی ته نه مغفرت سته او نه رحمت لقوله تعالى في حق ابن ابی المنافق واتباعه من المنافقين سواء عليهم استغفرت لهم ام لم تستغفر لهم لن يغفر الله الآية.

**سوال**: د زانياتو خو و مغفرت ته ضرورت نسته ولي چي مغفرت خو دمخه گناه غواړي، نو دوی خو گناه نه ده کړې زنی خو مالک په زوره په وکړه؟

**ځواب**: مينځياني که څه هم مالک په زوره زنی ته مجبوره کړي دي لکن د زنی د فعل په جريان کي له مطاوعت څخه په اعتبار د طبعيت بشري خالي نه دی.

**درويش وايي**: چي په تفسير کواشي کي وايي المغفرة ههنا په معنى د عدم الاثم دی لانها لا اثم عليها اذا اکرهت على الزنی بقتل او ضرب مفض الى التلف او تلف العضو انتهى. فقير وايي چي تفسير کواشي للعلامة السمرقندي که څه هم ډېر قديم تفسير دی لکن مغفرت په معنى د عدم الاثم په لغت عربي کي نه دی راغلی.

**سوال**: په هغه آيت کي چي مخاطب يې عليه الصلوة والسلام دی ليغفرنک الله ماتقدم من ذنبک وما تاخر آه خو اثم او گناه نسته، نو ولي د مغفرت لفظ راغلی دی؟

**ځواب**: د هغه آيت ترجمه خو بعض مفسرين په ترک د عزيمت يا په ترک د اولی يا د زلت کوي يا په حسنات الابرار سيئات المقربين سره په معنى د عدم الاثم خو يې هيڅ چا ترجمه نه ده کړې فتدبروا والله اعلم بالصواب.

**پوښتنه**: آيا تر که چا مجبور کړی پر زنی بقطع عضوه او تلف نفسه بان لم يزنی او ده هم زنی وکړه هغه هم مغفور دی او گناه يې د مکره په غاړه ده؟

**ځواب**: لا! هرگز نه الفاعل للزنی باختياره لان انتشار آلته لايکون بالاکراه والاجبار بل بسبب الطوع والاختيار، او په ښځه کي خو ظاهرًا علامات د طوع والاختيار نسته فرج يې پر خپل سابق حال دی، بخلاف الرجل.

وَلَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَیۡکُمۡ اٰیٰتٍ مُّبَیِّنٰتٍ وَّمَثَلًا مِّنَ الَّذِیۡنَ خَلَوۡا مِنۡ قَبۡلِکُمۡ وَمَوۡعِظَةً لِّلۡمُتَّقِیۡنَ ﴿۳۴﴾

لقد آه ځواب د قسم محذوف دی چي لام موطئه للقسم المحذوف يې بولي.
والمخاطب هو النبي ﷺ واصحابه رض بل جميع امته الى يوم القيامة يعني نازل کړی دی موږ په دې سورت کي يعني سورة النور (آيات مبينات) داسي آيات چي بيان د احکامو او حدودو پکښي ښه، يا معنی داده واضحات دي چي عقول سليمه او کتب قديمه يې مصاعدت کوي.

**پوه سه:** چي د مثل معنی قصه عجيبه ده او په عبارت قرآني کي مدخول د من محذوف دی ای قصة عجيبة من جنس الامثال (وهذا هو مدخول کلمة من) د هغو کسانو چي تر تاسي دمخه تېر سوي وه، نو قصه عجيبه د سورت نور قصه عجيبه د عائشې رض ده چي منافقينو متهم بالزنی وګرځول لکه يوسف ؑ چي زليخا متهم په قصد د زنی خپل وګرځاوه. يا مريم رض په سبب د ولادت د عيسی ؑ بلا اب متهمه يې په زنی وګرځول (وموعظةً للمتقين) عطف دی پر مثلاً. يعني په دې آيتو وعظ او نصيحت کړل سوی دی د تقوی داره خلګو لپاره.

**پوه سه:** چي تخصيص د متقين (که څه هم مواعظ د قران عام دی) له دې سببه وکړی چي پر مواعظ د قرآن متقين فائده اخلي، ولي چي متقين له حکاياتو څخه د امم ماضيه وو چي د انبياء عليهم السلام موعظة او تبليغ به يې نه مانه اخير الامر به په عذاب دنيوي مبتلا سوه کفرعون ونمرود وغيرهما، نو متقين عبرت څخه ځني اخلي او د خپل نبي او د قرآن و موعظت ته په احترام ګوري خوفًا من ان ينزل بهم ما نزلت على الامم الماضية، سعدي شيرازي رح وايي:

پند گير از مصائب ديگران.... تا نگيرند ديگران ز تو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز .... چو ديگر مرغ بيند اندر بند

اَللّٰهُ نُوۡرُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ‌ؕ مَثَلُ نُوۡرِهٖ كَمِشۡكٰوةٍ فِيۡهَا مِصۡبَاحٌ‌ؕ

**پوه سه:** چي نور يو کيفيت دی چي په سترګو ليدل کېږي اولاً او په کيفيت سره نور قابل ديد شيان ليدل کېږي (قابل ديد ما ددې لپاره ووايه چي په نور سره اجسام کثيفه ليدل کېږي مثلاً مځکه، اوبه، درختي، ډبري وغيرها او هواء نه په.

ليدل كېږي، لکه د لمر نور يا د سپوږمۍ نور چي پر مځکه واقع سي، يا د شپې په تاريکه خونه کي برق (يعني بجلي) ولګول سي د خوني ټوله شيان ؤليل سي، په دې معنى سره يې اطلاق پر خداى ﷻ نسي کېداى لانه تعالى ليس بجسم له كيفية ظاهرة على الاجسام الكثيفة فهو ليس على ظاهره فالنور المضاف اليه تعالى في قوله مثل نوره. يا مضاف محذوف دى اى خالق نور السمٰوٰت والارض يا ذو النور السمٰوٰت. او يا محمول پر مبالغه دى نحو زيد عدل وزيد كرم كانه نفس العدل والكرم مبالغة. او يا نور مصدر دى په معنى د فاعل دى اى منور السمٰوٰت والارض بالشمس والقمر والكواكب حسًا وظاهرًا، او بالملائكة والانبياء والمؤمنين معنًى وباطنًا او يقال منور (يعني ښائسته کوونکى دى) الارض بالنباتات والاشجار، وقيل معنى الآية الا نوار كلها منه تعالى كما يقال فلان رحمةٌ اى منه الرحمة، وقيل معنى الآية الله مدبر السمٰوٰت والارض لکه يو مشر د قوم چي صاحب د لوى تدبر وي چي قوم دده په تدابيرو سره لارپيدا کوي فلان نور القوم، او سلطان المفسرين عبدالله بن عباس رضي الله عنه معنى داسي کړي ده اى هادي اهل السمٰوٰت والارض.

**پوه سه:** چي مثل په معنى د صفت عجب دى د نور د خداى ﷻ (اى النور المعنوي وهو الهداية) چي په زړه کي د مؤمن سته چي په هغه نور د هدايت مؤمن لار پيدا کړي ومعرفت ته د صانع العالم او و صفاتو ته د خداى ﷻ من العلم والقدرة والخلق وغير ذالک او په هغه نور سره يې تصديق د کلام الله وکړي، او په هغه نور سره حق حق ورته معلوم سو او باطل باطل يې وپېژندى قال الله تعالى فهو على نور من ربه. بغوي وايي چي ابن مسعود رضي الله عنه دا آيت داسي وايه مثل نوره في قلب المؤمن، او بعض مفسرين وايي چي ضمير مجرور د نوره راجع دى و مؤمن ته، ابى بن کعب رضي الله عنه به داسي قرائت کاوه مثل نور قلب من آمن چي هغه داسي بنده دى چي خداى راسخ او محکم کړي وي ايمان او قرآن دده په سينه کي، او حسن او زيد بن اسلم رحمه الله وايي اراد بالنور القرآن. او بعض علماء وايي چي مراد له نوره طاعت د خداى ﷻ دى چي خداى پاک ځان ته مضاف کړى لتشريف المضاف.

**درويش وايي:** چي مرجع د غو ټولو تفاسيرو دې ته دى چي مراد له نور څخه نور معنوي دى لا النور الحسي، پر هر تقدير دا آيت يو تمثيل دى.

**پوه سه:** چي مشکوة په لغت کي هغه غار ته وايي چي بلي خوا ته منفذ نه لري چي په پښتو يې تاخچه بولي، او که يې منفذ درلودی هغ کوة بولي چي په پښتو يې کلکين بولي يعني هغه ځای دی چي کلکين پکښې نصب وي، روح البيان وايي چي دا حبشي لغت دی. حسين کاشفي رح وايي مانند روزينه ايست در ديواري که او بخارج راه ندارد چون طاقی (فيها مصباح) په دې طاق کي يو ځراغ وي (مراد له څراغ څخه فليته ده چي اور پکښې وي يعني بله وي)

**فائده:** له مشکوة څخه مطلب دادی چي رڼا پکښې جمع وي.

**اَلۡمِصۡبَاحُ فِيۡ زُجَاجَةٍ ؕ اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوۡكَبٌ دُرِّيٌّ**

او هغه فليته د يوې ښيښې په منځ کي وي چي صافه روښانه ښيښه وي.

**درويش وايي:** چي فائده د جعل د مصباح په زجاجه کي او زجاجه په تاخچه کي ښه روښنايي ورکول دي لان المكان كلما تضايق كان اجمع للضوء بخلاف الواسع فان الضوء ينتشر فيه (الزجاجة كانها كوب دري) صفت د زجاجه دی چي دمخه ذکر سوه يعني في زجاجة.

**سوال:** نحات وايي چي جمله چي صفت واقع سي عائد و موصوف ته غواړي نو په دې جمله کي عائد څه شی دی؟

**ځواب:** عائد يې وضع د ظاهر يعني الزجاجة په ځای کي د عائد (ای هي كانها) وقس على هذا المصباح في زجاجة چي هغه جمله خو هم صفت د مصباح وه فافهم. والمعنى دا زجاجه چي فليته پکښې بله وي لکه ستوری چي راوځېږي او ښه راپورته سي.

**پوه سه:** چي لفظ د دُرِّيٌّ په تشديد د راء او ياء منسوب الى الدر يعني ملغلره په صفا والي او حسن کي.

**پوښتنه:** د ستوري رڼا خو د ملغلري تر رڼا ډېره ده فما وجه النسبة اى نسبة الكوكب الى الدر. ولي چي مقصود له نسبت څخه زيادت توضيح د منسوب ده مثل زيد قندهاري؟

**ځواب:** معنى د عبارت داده چي دا کوکب احسن او ښه روښانه وي په ستورو کي لکه ملغلره چي روښانه ده تر ټولو دانو لکه عقيق، مرجان، شني دانې وغيرها خصوصاً اذا كانت الدرة فريدة.

**پوه سه**: چي کوکب دري يو دی د پنځو غټو ستورو څخه يعني زحل، مشتري، زهره، عطارد او مريخ. دا ستوری زهره ده چي تر ټولو د غو پنځو ستورو ښائسته او روښانه ستوری دی.

**پوښتنه**: تشبيه يې د لمر او سپوږمۍ سره ولې نه کړه ور، او سره د دې چي لمر او سپوږمۍ تر زهره بالا دي په ضوء کي؟

**ځواب**: څونکه لمر د کسوف په تاريکه کي واقع کېږي او سپوږمۍ د خسوف په دام کي راتله بخلاف الکواکب الخمسة المذکورة. نو ځکه يې لمر او سپوږمۍ مشبه به ونه ګرځول.

**فائده**: خسوف او کسوف دواړو ته په پښتو تندره وايي او زيات تفصيل د دې مبحث په کتابو کي د هيئت يعني الرياضي چي په اوسنی زمانه کي يې بولي.

**كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ يُوقَدُ مِن شَجَرَةٍ مُّبَارَكَةٍ زَيْتُونَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ**

(يوقد) خبر ثان للمصباح يا حال دی له هغه ضمير څخه چي مستکن دی په ظرف مستقر کي اعني في زجاجة چي راجع دی و مصباح ته، يوقد پر صيغه د مجهول غائب ده چي ضمير راجع و مصباح ته دی، والمعنى چي بلول کړه کېږي دغه مصباح (من شجرة) يعني چي ابتداء يوقد المصباح من شجرة، نو کلمه د من لپاره د ابتداء ده، او يا کلمه د من سببيه ده په حذف د مضاف ای من دهن شجرة.

**پوه سه**: چي اول يې شجرة مبهم راوړه بيا يې توصيف د هغې وکړی په مبارکة سره بيا يې بدل د هغې راوړی لقوله (زيتونة) دا ټوله د تعظيم د شان د هغې درختي، او د دې لپاره چي دا درخته په اذهانو کي د سامعينو سره قرار پيدا کوي، ولې هر شی چي وروسته تر انتظار و سامع ته ښکاره سي هغه په ذهن کي د سامع ښه قرار مومي، جامي قدس سره وايي:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ..... با امید رسد امیدواری

د دې درختي د تعظيم وجه داده چي درخته د زيتون کثير البرکة ده او په دې درخته کي فوائد کثيرة سته، ولې چي روغن د دې درختي په څراغانو کي بلول کېږي او دا روغن د څراغ لپاره تر ټولو روغنياتو صفا او رڼا يې ډېره ده، دودی په پوري کېږي، او د دې د روغن رايستلو ته باقاعده رايستونکی نه غواړي بلکي هر سړی يې استخراج کولای سي، بغوي رح وايي چي په حديث شريف کي راغلي دي

چې ددې درختې روغن د ناسور دوا ده، او دا داسې درخته ده چې له اعلى څخه بولې تر اسفل پورې څيراغان په بلېږي، يعنې له اعلى څخه تر اسفل پورې د روغنې موادو مالامال ده. بغوي رح له اسيد بن حضير او اسيد الانصاري رض څخه روايت کړی دی چې رسول الله ﷺ وويل: چې تاسې روغن زيتون خورئ او خانونه په غوړوئ فانه شجرة مباركة (اى من شجرة مباركة) و روى ابو نعيم في الطب عن ابي هريرة رض قال چې رسول الله ﷺ وويل خورئ زيتون او ځانونه په غوړوئ فانه شفاء من سبعين داء منها الجذام (ولې چې زيت شفاء د اوويا (۷۰) مرضو دوا ده چې يو له هغو څخه اتشک دی. او ابن ماجه او حاکم روايت کړی دی له ابو هريره رض څخه كلوا الزيت وادهنوا به فانه طيب مبارک.

**پوه سه:** چې لفظ (لاشرقية) صفت دی د (زيتونة) او حرف نفي جزء د محمول دی چې په منطقو کې يې معدولة المحمول بولي، والمعنى چې دا درخته د زيتون په داسې ځای کې واقع وي چې همېشه لمر پر دې نه راخېژي ولې بيا يې حرارت د لمر سوځي (ولاغربية) او نه په مغرب کې د باغ واقع وي چې لمر همېشه ځندي غائب وي او حرارت د لمر نه ور رسېږي. نو که داسې وي مېوه به يې اومه وي، دا قول د سدي رح دی. او بعض مفسرين وايي لاشرقية تطلع عليها الشمس عند طلوعها فقط، ولاغربية تقع عليه الشمس عند غروبها دون طلوعها فعلى الحالين دانې يې بنه نه پخېږي بلکې يا پر لوړ ځای وي يا په فراخه صحراء کې وي چې همېشه لمر پر برابرېږي. نو مېوه يې بنه پخه وه او روغن يې ډېر صاف وي، او بعض مفسرين وايي چې نه درخته د زيتون شنه وي په مشرق او نه په مغرب کې د مځکې بلکې په منځ کې د شرق او غرب چې ملک شام دی. فان زيتون الشام اجود. حسين كاشفي رح وايي: كه زيتون را هفتاد پيغمبر دعا كرده ببركت و از جمله ايشان ابراهيم عليه السلام، او بعض مفسرين وايي لانابتة في شرق المعمورة نحو كنكدژ و ديار الصين (اى چين) وخطا، ولا في غرب المعمورة نحو طنجة وطرابلس وديار قيروان بل في وسط المعمورة وهو الشام، ولې چې د شام زيتون تر ټولو اجود دي کما مر، او يا په خط استواء کې بين المشرق والمغرب ويقال له قبة الارض، وسط الارض عامرها وغامرها وخرابها وهو مقام تعتدل فيه الازمان في الحر والبرد ويستوى فيه الليل والنهار ابدا ويكون كل منها اثنا عشر ساعة.

**درويش وايي:** چي دا يو غريب تفسير دى چي ډېر تعلق يې په رياضي پورې دى، او وجود د زيتون په داغسي ځاى كي مشكوك دى والله اعلم بالصواب. او حسن بصري رح وايي كه اصل اين شجره از بهشت بدنيا آورده اند پس از اشجار اين عالم نيست ودرختهاى جنت رانه شرقي و نه غربي توان گفت.

يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيٓءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ۚ نُّورٌ عَلَىٰ نُورٍ ۗ

قريب دى چي روغن د زيتون روښان دي سي په خپله له جهته د غايت برېښېدلو او د ډېر صفايي كه يې څه هم اور نه كړي مسه، ولايخفى ان فيه مبالغة في بيان زيت الزيتون وبياضه. او كلمه د يكاد لپاره د تصحيح ددغه مقال ده.

**پوه سه:** چي دا جمله بل صفت دى د شجرة الزيتون، واو عاطفه دى معنى يې داده: لو مسته نار ولو لم تمسسه نار اى يضئ كائنًا على كل حال من وجود الشرط چي مماست د نار دى وعدم وجوده (نور على نور) نور دى پر نور، يعني هو نور متضاعف فان نور المصباح زاد في انارته صفاء الزيت وزهرة القنديل وضبط مشكوة لامنفذ فيه كمامر، محي السنة بغوي شافعي المذهب رح وايي چي اهل علم په معنى كي ددې تمثيل اختلاف لري. بعض علماء وايي چي دا مثال دى د قرآن عظيم الشان چي دى په هر حال كي روښن معجز كتاب دى كه يې څوك مني او كه يې نه مني. گفته اند الشمس شمس ولو لم يرها الضرير (چي ستر گي يې پر لمر برېښني او لمر ته نسي كتلاى) والعسل عسل ولم لم يجده طعمه فاه المرير (يعني چي صفرا، يې غالبه وي او خوله يې ترخه وي همېشه په سبب د غلبه د خلط الصفراء نو دده په خوله كي شيريني د عسلو دده په خوله كي نه احساسېږي. نو نه په لمر كي د رڼا خلل سته بلكې تاوان او خلل د ضرير په ستر گو كي دى او نه د عسلو په شيريني كي نقصان سته بلكې نقصان د مرير په خوله كي دى، نو قرآن كريم داسي روښانه او خوږ شيرين كتاب دى كه څه هم كفار د مكې نه مني...بيت

نقصان ز قابليست وگرنه على الدوام
فيض سعادتش به همه كس برابر است

قال ابن عباس رض وكعب الاحبار رض اخبرني عن قوله تعالى مثل نوره الآية قال كعب هذا مثل ضربه الله لنبيه ﷺ يعني فالمشكوة صدره والزجاجة قلبه والمصباح فيها النبوه، يكاد نور محمد ﷺ ونبوته وصدقه في دعوى الرسالة

يتبين للناس ولو لم يتكلم بانه بني كما كاد ذالك الزيت يضئ ولو لم تمسه نار (اي قبول اهل مكة) نور على نور.

**دروېش وايي:** چي دېره زيبا ترجمه كعب رض د دې آيت وكړه، نو اوس واورئ هغه معجزې د. عليه الصلوة والسلام چي قبل النبوة او بعثت دده رونما سوي دي، په خلاصة السير كي چي يو جامع كتاب د سيرة النبي ﷺ وايي چي د عليه الصلوة والسلام مور وايي چي محمد ﷺ چي زما په حمل راغلى نو ما خوب وليدى چي زما څخه يو نور جلا سو چي په هغه نور كي ما بنګلې د بصرى من ديار شام وليدې، او چي دى زما څخه وزېږېدى پر مځكه پروت ؤ سر يې د اسمان و خوا ته پورته كړى، او حافظ ابن حجر رح وايي چي مور د عليه الصلوة والسلام وايي چي د ما څخه چي عليه الصلوة والسلام جلا سو يعني وه زېږېدى ما يو نور وليدى چي قصور د شام ما په هغه نور كي وليدل. ابو نعيم په دلائل النبوة كي وايي چي انه ﷺ چي وزېږېدى مور يې وايي چي يو سړى راغلى (چي هغه په حقيقت كي ملكه وه) نو عليه الصلوة والسلام يې په اوبو سره چي د مځكي يې را ويستلې درې واره پرېولى، بيا يې يوه ورېښمينه كڅوړه د سپينو ورېښمو چي په هغه كي يو مهر ؤ دا مهر يې ولګاوه په مابين كي د اوږو كالبيضة لكه هګى چي برېښېدله يا لكه د زهره ستورى.

بيهقي، ابن الدنيا و ابن السكن روايت كړى دى چي په شپه د ميلاد د رسول الله ﷺ بنګلهٔ كسرى فارس به زلزله درآمد چهار مناره آن قصر درافتادند و كسرى بسيار ترسيده سبب آن نمی دانست ..... ع: تزلزل درايوان كسرى فتاد.

او اور د آتش پرستانو چي زر كاله مسلسل نه ؤ مړ سوى په ولادت د عليه الصلوة والسلام مړ سو، او د بحيرة سلوه اوبه په مځكه كي كښته ولاړې وجاء في حديث عائشة رضي الله عنها.

**دروېش وايي:** چي كه څه هم عائشه رض په شپه د ميلاد النبي ﷺ په عالم دنيا كي نه وه لكن د رسول الله ﷺ يا د بل راوي څخه د عليه الصلوة والسلام دا قصه اورېدلې وه) چي يو يهودي ؤ په مكه شريفه كي د تجارت لپاره اوسېدى، وه يې ويل يامعشر قريش په هغه شپه چي ميلاد النبي ﷺ كېدى ولد في هذه الليلة نبي هذه الامة (يعني الملة والامة الاخيرة) بين كتفيه شعرات علامة (يعني مهر نبوة) فيها شعرات متواترات (سوال: يهودي نو په غيب څه خبر ؤ؟ ځواب: يهودي عالم التورات ؤ وفي

تاریخ ولادة النبي ﷺ بمکة موجود) قریشو چي تلاش وکړی چي په دې شپه به کوم بنځه د قریشو لـکه سوې وي. خو خبر سوه چي د عبدالله پس مرګي زوی د عبدالمطلب لمسی زوکړی دی. نو قریشو یهودي د ځان سره راهي کړی حتی چي عبدالمطلب ورسره، مور ته د علیه الصلوة والسلام یې وویل چي هغه د نني شپې نو مولود راوباسه، مور د علیه الصلوة والسلام خپل زوی ورته راویستی، او قریشو چي یهودي هم ورسره ؤ شایې ورلځه کړه هغه علامه چي یهودي دوی ته بیان کړې وه پر شا د علیه الصلوة والسلام وبربنډله (یعني خاتم النبوة) یهودي چي هغه علامه ولیدل بېهوشه سو، یهودي ورته وویل ذهبت والله النبوة من الیهود و بني اسرائیل الی العرب رواه الحاکم في المستدرک، او په مواهب اللدینیة چي کتاب د سیرة النبي ﷺ دی قصه د عمیصا الراهب (یعني چي خلوت نشینه صوفي د نصاری ؤ) ده، وه اهل مکه ته وویل چي قریب د هغه زمانه چي په تاسي کي به یو مولود پیدا کېږي یا اهل مکة چي د هغه مولود په دین به سي ټوله عرب (درویش وایي: چي کتابو کي د احادیثو شریفه وو راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام چي وفات کېدی ټوله عرب د لروبر په دین د اسلام مشرفه سوي وه) ویملک العجم فلما ولد قال الراهب لعبد المطلب جده قد ولد لک المولود الذي کنت احدثکم عنه (یعني ستا لمسی) او له عباس بن عبدالمطلب ﷺ څخه روایت دی چي ده و علیه الصلوة والسلام ته وویل یا رسول الله ماته دعوت راکړه د دخول په دین کي ستا یو علامې د نبوت ستا چي ما ته ولیدلې په زانګو کي چي تا د سپوږمی سره سات تېراوه او تا به اشاره کول و سپوږمی ته سپوږمی به هر هغه خوا ته مېلان کاوه علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي د سپوږمی سره خبري کولې دې به زه له ژړا څخه منع کولم او ما به اواز اورېدی د سپوږمی چي تحت العرش به یې سجده کوله.

**پوښتنه**: که دا قصه د ابن عباس ﷺ صحیح وایي، نو خو عباس ﷺ به له اول څخه د مؤمنانو د مکې وای، ولي داعي الی الایمان ي ده بیان کړی دا خو ده په وخت کي د طفولیت د علیه الصلوة والسلام عباس ﷺ لیدلی، نو وروسته لوی سو او څلوېښت کاله عمر ته ورسېدی او نبي سو، نو باید اولین د قریشو عباس ﷺ وایي چي ایمان یې پر راوړی وای او سره د دې چي په دیارلس کاله د اقامت او دعوت د علیه الصلوة والسلام چي تېر سوه په مکه کي عباس ﷺ ایمان رانه وړی حتی د بدر



Scanned by CamScanner

په غزاياوو کي (۷۰) اوويا کسانو څخه د بنديانو چي مديني ته عليه الصلوة والسلام د ځانه سره بوتله يو پکښي عباس ﷺ هم ؤ. لکن بيا يې هم ايمان را نه وړی بلکې په فديه يې ځان خلاص کړی؟

**ځواب**: مذهب د اهل السنة والجماعة دادی چي کفر او اسلام طاعت او عصيان په تقدير او خلق د خدای ﷻ پوري مربوط دی. نو په تېرو کلو کي چي ذکر سوه تقدير د خدای ﷻ نه ؤ رسېدلی نو هغه چشم ديد واقعه يې له دماغه څخه وتلې وه وکان لم يکن شيئًا مذکورًا وګرځوله چي تقدير د رب العزت ورسېدی هغه فارينه يعني زړه قصه خدای ﷻ سبب د اسلام د عباس ﷺ وګرځوله. ولله في کل مايفعل حکم ومصالح، او يله معجزه قبل النبوة د عليه الصلوة والسلام چي مور يې په يو کار اخته وه. نو دده زانګو به په خپله په حرکت کي وه (يعني ملکو به زنګوله) وروی برواية صحيحة چي عليه الصلوة والسلام په اول کي د ولادت په توحيد سره د خدای ﷻ او په عبوديت خبري وکړي لکه عيسى عليه السلام چي وکړې کما ثبت بنص القرآن.

قصة ارضاعه ﷺ في بني سعد: د تاريخ په پاڼو کي راغلي دي چي د قريشو دا عادت ؤ چي خپل شيرخوار زامن به يې صحرايانو ښځو ته په لاس ورکول که به يې خپلي مور شيدې درلودې او که نه، په دې کي ددوی غرض دا ؤ چي د صحرايانو عربي له عجمي الفاظو څخه خالي وي او په ښار کي عرب او عجم دواړه اوسېږي عرب قح له طفل څخه نه جوړېږي، چي په صحراء کي به يې رضاء تکميل سوه او ژبه به يې زده کړه بيا مرضعې و خپل مور او پلار ته تسليم کاوه، البته په دوران کي ددې کلو به مرضعاتو خپل مور او پلار ته يوه شپه او ورځ راوستی بيرته به يې بيوی. تاريخ وايي چي په دغه کال کي چي ولادت باسعادت د عليه الصلوة والسلام منځ ته راغلی، د بني سعد قبيلې ښځي سره د خپلو ازواجو به مکې ته پر اوښانو يا آسانو يا پر خرو راتلې، چي په مکه کي د ثروت والا سړي زوی تر لاسه کړي، ولي چي دا قبيله مسکينان وه او د بزو او مېږو په شيدو وغيره يې خپل ګذاره کول او د طفل پلار به ډېر کومک ورسره کاوه، يعني مالي نقود او جامې به يې ورکولې، نو په هم دې کال د مولود د عليه الصلوة والسلام ددې خلکو په جمله کي چي مکې ته به راتله د کوچنيانو د حاصلولو لپاره حليمه سعديه يوه غريبه ښځه هم وه، او يو ډنګر خره يې درلودی د خپل مېړه سره را روانه سوه.

چونکه ددې مرکب ډېر کرار ؤ هغه نوري ښځې وختې را رسېدلې وې او د سرمايه دارانو زامن یې قبضه کړي وه. حليمه چې راغله هيڅ طفل بل نه ؤ بېله محمد ﷺ چې نورو ښځو ميل نه ورته درلودی، ولې دوی به ویل چې دا طفل بې پلاره یتیم دی مور ته به یې څه کومک را ورسېږي، نو حلیمه چې راغله بل کوچنی خو نه ؤ، نو د بي بي آمنه (چې د عليه الصلوة والسلام مور مبارکه وه) کورته ورغله چې زه دا طفل د رضاع لپاره غواړم، مور یې هر څه عذر ورته وکړی چې زما زوی یتیم دی څه کومک مالي به زه ستا سره وکړم. نو آمنه چې خپل زوی ورته را واخستی حليمې چې وليدی ..... ع: برو عاشق شده بصد دل نی به یک دل.

نو حلیمې دی و چپه تي ته واچاوه، عليه الصلوة والسلام خولې څنډې دورې دورې څنډې کول یعنې نه یې رودی، بیا یې و راسته تي ته واچاوه علیه الصلوة والسلام هغه تی په مینه او محبت سره ورودی ځان یې په موړ کړی وهذا معجزة اخرٰى كما لايخفى، حليمه خپل زوی چې غمرة یې نوم ؤ په چپه تي موړ کړی، نو دواړه بيده سوه، او عليه الصلوة والسلام تر تي رودلو دمخه نه بيدېدی. حليمه وايي چې تر مخه زما په دواړو تيو يوازې زما خپل زوی نه مړېدی لقلة الغذاء المولدة للبن، نن دواړه په ډک نس په ماړه سوه. وهذه معجزة اخرٰى، خير له مکې څخه ټولې د بني سعد ښځې په اتفاق سره روانې سوې، نو د حليمه خر چونکه نهايت ډنګر ؤ، نو دی عليه الصلوة والسلام په خپل غېږ کې واخستی او غمرة پلار په غېږ کې واخستی خر يې پسې شاړه. لکن ټوله د کاروان که اوښان وه که اسانه وه او که غښتلي خره وه يو هم د حليمې تر ډنګر خره نه دمخه کېدل. ولې چې پر ډنګر خره سردار عالم سپور ؤ، وهذه معجزة اخرٰى. ټوله کاروانيان په تعجب کې غرق وه، خير تر کوره پورې ورسېدل. هلته حليمې يو څو ډنګرې مېږې او بوزې درلودې، ددې نور زامن وه چې هغه به يې سهار چراګاه ته ايستلې کلونه د کاختی وه يعنې بارانونه نه وه سوي چراګاه بې نباتاتو وه، په صبا ورځ چې د حليمې زامنو خپل مېږې ويستلې يو ځای پر ښه شنو وښو خدای ﷻ برابر کړه مېږو او پسو په ښه ډک نس هغه غيبي واښه وخوړل او غولانځې يې د شيدو ډکې کورته راوستلې. حليمې چې ورته وکتل کونجې يا دکې يې پر را واخستل مېږو او بزو په شيدو ټولې کونجيانې او دکې ورډکې کړې، نو حليمې زامنو ته وويل

چي ته ولي دا مېږي او بزې په ډک نس راغلې؟ هغوورته وویل چي پر داسي ښه او مرغو ښځي سو چي مېږي او بزې په ډک نس په مړې سوې، وهذه معجزة اخرئ، حليمې خپلي ډکی ته تومنه واچول چي مستې څندي جوړي سي، نو سهار يې غړکه پر وشړيل، دا سلسله جاري وه، د قريې خلګ خبر سوه چي حليمې ته دا نادر د عقل لېږي نعمت د کومي خوا پيدا سو. نو د حليمې او د مېړه يې او د ټولو کلي والو دا يقين سو چي ددې سبب اصلي هم دغه طفل دی چي حليمې له مکې څخه راوړی دی، نو کلي والو خپل زامنو ته وويل چي تاسي خپلي مېږي او بزې د حليمې د زامنو په مېږو او بزو پسي روانوئ هر ځای چي دوی چراګاه پيدا کړه تاسي هم خپلي مېږي او بزې هلته څروئ، اخير الامر د ټوله کلي بزې او مېږي به په ډکو نسو او ډکو غولانځو کور ته راتلې حتی دا ټوله کلي والو د محمد ﷺ يعني د حليمې رضعي زوی بېمحابا پر ګران او معزز سو، حليمه سعديه وايي چي اول وار چي ما رسول الله ﷺ له تي څخه پرې کړی يعني وخت د رضاع دوه کاله يې پوره سوه، نو عليه الصلوة والسلام دا خبري وکړې الله اكبر كبيرًا والحمد لله كثيرًا وسبحان الله بكرةً واصيلاً رواه ابن عباس ؓ.

او له حضرت عباس ؓ څخه روايت دی چي څه وخت چي عليه الصلوة والسلام د حليمې په کور کي دومري عمر ته ورسېدی چي د کوچنيان سره يې سات تېر کړی وای. له کوره به راووتی کوچنيان به سات سره تېراوه عليه الصلوة والسلام به ګوښه ورته ناست ؤ د هلکانو سات تېرولو ته به يې کتل، ابن عباس ؓ وايي چي حليمې دې ته پرېښو چي له کوره لېږي ولاړ سي، يوه ورځ د حليمې فکر نه ؤ نو عليه الصلوة والسلام د خپلي مرضعې خور يعني د حليمې د لور سره چي شيماء يې نوم ؤ دباندي ګوښه تللی ؤ، د حليمې فکر سو پسي راووتل پسي ګرځېدل خو عليه الصلوة والسلام يې سره د خوره وليدی، وخت د دوبي د غرمې ؤ، نو يې پر لور منت وکړی چي تا ولي محمد دې سرې ګرمۍ ته رايستلی دی، شيماء ورته وويل: يا امه ما وجد اخي حرًا رئيت غمامة تظله (ګرمي يې نه ده سوې زما د ورور ما ورېځ وليدل چي پر ده يې سايه کول چي دی به ودرېدی وريځ به هم دده پر سر سايوان ودرېدل چي دی به راهي سو وريځ به هم ورسره روانه سوه) وهذه معجزة اخرئ،

وفي الشمائل المجديه چي د يو کتاب نوم دی چي شمائل د عليه الصلوة

والسلام يې په ښه تفصيل سره بيان کړي دي، د حليمې د خولې څخه يې روايت کړی دی چې دې وويل چې مونږ څراغ ته د شپې نه يو محتاجه سوي د کومې ورځې څخه چې ما محمد کور ته راوړی دی لان نور وجهه الكريم كان انور من كل سراج فاذا احتجنا الى السراج في البيت المظلم جئنا به ؑ فتنورت الامكنة بنور وجهه ؑ وهذه معجزة اخرٰی ..... بيت:

حسن يوسف قدر عنا روی زيبا داری .... آنچه خوبان همه دارند تو تنها داری

له حليمې څخه روايت دی چې ما چې ارضاع د عليه الصلوة والسلام شروع کړه زما شيدې دومره ډېرې سوې چې دده او دده د ورور غمره سره سره ما لسو شيرخوارو ته د کلي او تر لس بالا کوچنيانو ته ورکولې، وهذه معجزة اخرٰی، او حليمه به کاهې د عليه الصلوة والسلام سره صحرا ته ووتل دا وايي چې پر يوه وچه شپله به ورغلو هغه به في الوقت سرسبزه او شاداب سوه، او دې وويل چې د ډېرو خبري ما اورېدلې چې سلام به يې و عليه الصلوة والسلام ته وراچاوه، او د درختې بناخلې به ورته راکږېدلې، وکان النبي ﷺ يخرج مع اخيه الاکبر رعيان الغنم فقال اخوه ان اخي الحجازي القرشي اذا وقف بقدميه على الوادي ينحفر لوقته واذا جاء الى البئر ونحن نسقى الاغنام، نو رالوړې به سوې اوبه د څاه (کوهي) و خولې ته، وهذه معجزة اخرٰی، او چې په لمر کې به ودرېدی وريځې به سايه پر وکړه او دی به ولاړ ؤ وحشي حيوانات به ورته راغځاستل پښې به يې ور مچولې، وهذه معجزه اخرٰی، دا وايي چې يوه ورځ ما محمد ؑ د نيکه او د مور ملاقات ته ور وستلی ؤ، چې د مکې حرم ته داخل سو هُبل چې يو لوی بت ؤ سر يې ورته کښته کړی وکذا جميع الاصنام من اماکنها تعظيمًا له، او حجر اسود ته چې مې وروستی چې مچ يې کړي حجر اسود له خپل ځايه ورته راووتل حتى التصق بوجهه الكريم ﷺ وهذه معجزة اخرٰی.

**درويش وايي:** چې عليه الصلوة والسلام چې تخمينًا د اتو (۸) کالو په سن کې سو مور يې هم وفات سوه، او څلور کاله وروسته يې نيکه عبدالمطلب هم وفات سو، عبدالمطلب د وفات په وخت کې خپل مشر زوی ابو طالب راوغوښتی چې وصيت ورته وکړي، يو وصيت يې دا ؤ چې د عبدالله د يتيم محمد ؑ سره چې ستا وراره کېږي فوق العادة شفقت به پر کوې، رشتيا دا چې ابو طالب په حق کې د

عليه الصلوة والسلام په ښه وجه د پلار وصيت پر ځاى کړى، خير دا قصه يې پر دې ځاى پاته، نور به د عليه الصلوة والسلام حال و څېړو د حليمې په کور کې.

چونکه عليه الصلوة والسلام د خپل رضعي ورور سره د مواشيو پوه ول مختاره کړه که څه هم د حليمې نه وه خوښه لکن د عليه الصلوة والسلام د اصرار په سبب يې مجبورًا ومنله. خير عليه الصلوة والسلام د خپل رضعي ورور سره چراګاه ته د مواشيو تلى وراتلى، په خلاصة السير کې وايي چې حليمې وويل چې زه په کور کې وم چې زما د زوى ضمرة ساه لنډه لنډه کېدله کور ته راغلى او وه يې ويل چې زما ورور قريشي دوو کسو چې سپينې جامې يې اغوستې وې د غره خواته بوتلى نس يې ورڅيرې کړى، حليمه وايي چې زه او مېړه دواړه په وچ تاخت پسې ووتلو عليه الصلوة والسلام مو پيدا کړى چې ولاړ ؤ رنګ يې ډېر متغير ؤ، حليمه وايي چې په غېږ کې مې ټينګ کړى او ما و مېړه ورته وويل مالک؟ عليه الصلوة والسلام راته وويل: جائني رجلان عليها ثياب بيض، نو زه يې ستونې ستخ پرې ايستلم نس (يعني ځيګر مبارک يې تر مراق البطن پورې راڅيرې کړى په يو شي پسې ګرځېدل لا ادري ماهو) (درويش وايي: چې وروسته روايت کې به مفصل راسي) وفي رواية ابى يعلى وابي نعيم وابن عساکر داسې راغلي دي چې درې کسان راغله چې د دوى سره يوه لګنچه ورسره وه د سرو زرو او په هغه کې واوره وه په ډکه پيمانه، يوه زه پر مخکه پرې ايستلم وروسته يې سينه او نس راڅيرې کړى زما د نس کلمې يې راوکښلې په هغه واوره يې ښه پاکې پرېولې بيرته يې و خپل ځاى ته رد کړې، دويم سړى راغلى هغه بيا زما زړه راوکښى عليه الصلوة والسلام وايي ما ورته کتل زړه يې چاک کړى يو څه اندازه توره وينه يې څندې وکښل وه يې غورځول (په بل روايت قال هذا الرجل هذا خط الشيطان منک) بيا دې سړي په خپل ځان کې راسته او چپه خوالاس کړاوه (لکه په يو شي پسې چې ګرځي) نو يوه نوراني ګوتمى يې راوکښل زما د زړه چاکونه يې په هغه واوره راډک کړه هغه مهر يې پر ولګاوه، فامتلاء قلبي نورًا وذالک النبوة والحکمة ثم اعاد مکانه فوجدت برد ذالک الخاتم في قلبي دهرًا، وروسته هغه دريم سړي ورته وويل چې ته ايسته سه، نو هغه دريم سړي پر هغه تپ او څيرې ځاى د مفرق الصدر څخه زما بيا تر منتهى پورې د برخو لاس تېر کړى هغه څيرې ځاى سره پيوند سو.

**درویش وایي:** چي مراد د لاس ته رسېدلو څخه ګنډل د هغه ټپ دي کما في حدیث انس لقد کنت اری اثر المخیط في صدره علیه الصلوة والسلام. وفي هذه معجزة اخری.

**پوښتنه:** په شق الصدر والبطن کي به پر علیه الصلوة والسلام څومره تکلیف تېرېدی. او څومره وینه به څخه بهېدل؟

**ځواب:** دا قدرتي کارونه وه صرف په اشاره د ملائکه دا کار تر سره کېدی. نه وینه بهېدل او نه ژړا و تکلیف پر علیه الصلوة والسلام تېرېدی.

**سوال:** په مخني روایت کي دوه کسه ذکر سوه او په اوسني روایت کي درې کسه ذکر سول؟

**ځواب:** دوه کسه کارکونکي د شق البطن والقلب وه او یو نفر ګنډونکی د شق وه فلا منافات. صرف فرق دادی چي په مخنی قصه کي یواځي شق البطن ذکر کړی ؤ وعدم الذکر لایقتضی عدم وجوده لمکان الاختصار في الحدیث.

**فائده:** شق القلب د علیه الصلوة والسلام درې واره واقع سوی دی، یو دغه ؤ چي ذکر سو چي په حال کي د طفولیت دده واقع سو چي بعض توره وینه یې څخه لېري کړه. ددې څخه مطلب او حکمت د خدای ﷻ دا ؤ چي علیه الصلوة والسلام د نورو کوچنیانو پر طبعي حالت په لهو او لعب کي نه سي مبتلا وکان کذالک لانه علیه الصلوة والسلام لم یلتفت الی اللهو واللعب للصبیان، او دویم وار شق القلب په هغه وخت کي واقع سو چي کله ده مبارک ته امر د تبلیغ د کلمة التوحید ورکړل سو. په دې وار شق کي حکمت الهي دا ؤ چي تحمل د اثقال د رسالت توان ولري او پر اذیت د قریشو صبر وکړای سي وکان کذالک، درېیم وار چي معراج ته بېول کېدی جبرئیل دده شق القلب وکړی او د زمزم په اوبو یې زړه مبارک ورپرېولی، او بعض وینه یې څخه ایسته کړه په ځای کي د هغه شي چي په مثل د واوري ؤ ور واچاوه، په دې شق القلب کي په زړه کي د علیه الصلوة والسلام دومره طاقت پیدا سو چي د ثم دنی فتدلی فکان قاب قوسین او ادنی توان ولري او د جبرئیل په خپل صورت اصلي کي او د جنت او دوږخ د لیدلو او د سدرة المنتهی او انبیاء علیهم السلام د لیدلو په اسمانو کي الی غیر ذالک تحمل وکړای سي وکان کذالک.

له بي بي حلیمې څخه روایت دی چي په وخت کي د حیوة د عبدالمطلب ما

محمد ﷺ دده د ملاقات لپاره بوتلې چې په هغه وخت کې ډېر کوچنی ؤ ، نو مکې ته ورسېدم عليه الصلوة والسلام مي په حطيم کې کښېناوه ما طواف شروع کړی په هر شوط کې مي عليه الصلوة والسلام په حطيم کې ليدی په اخيري شوط کې چې د حطيم برابر ته راغلم عليه الصلوة والسلام نه ؤ خير طواف مي پوره کړی دباندې راووتم قريش ناست وه، ما ورته وويل چې زما رضعي زوی د عبد المطلب يتيم نه راووتی او تاسې نه وليدی؟ هغو ړاته وويل چې له حرم څخه هيڅ کوچنی نه دی راوتلی، ما بغارې کړې چې زما ګران رضعي زوی څرنګه راڅخه ورک سو، نو د قريشو په مجلس کې يو سپين ږيري سړی ناست ؤ چې نوم يې عبد العزٰی ؤ ، هغه راته وويل چې حليمې ته ژاړه مه زه به دې زمونږ خدای ته چې عزٰی يې نوم دی بوځم هغه په دې ورکو شيانو ښه خبر دی، مولانا جلال الدين الرومي قدس سره په مثنوي کې ددې قصې په بيان کې ډېر زړه پورې خواږه ابيات ويلي دي، نو په ګډه به يې واورو.

برد او را پيش عزٰی که صنم ...... هست در اخبار غيبی مغتنم
پير کرد اورا سجود وگفت زود ...... ای خداوند عرب وی بحر جود
اين حليمه ازو طفلی گم شده است ...... نام آن طفل محمد آمده است

حاصل دادی چې نوم د محمد چې عبد العزٰی ذکر کړی ټوله بتان پر سجده پرېوتل او عبد العزٰی ته يې وويل چې دا ته څه وايې تلاش د محمد کوې چې د ټولو بتانو محوه کېده به د دغه طفل له لاسه څخه وي، عبد العزٰی او حليمه حيرانې واخستل اخير حليمه د ځانه سره فکر وواهه چې ورسه نيکه عبد المطلب په خبر کړه چې د خپل لمسي تلاش وکړي، دا چې ورغله عليه الصلوة والسلام د خپل نيکه په غېږ کې ناست ؤ يعني يو سړي چې په واقع کې ملکه وه راوستلی ؤ تا چې د بتانو د سجدو او وينا ؤ معجزه ښکاره سي.

**درويش وايي:** چې په دې قصه کې معجزه نه بلکې معجزات باهرات دي.

**پوښتنه:** دغه درې ملکې څوک وې چې د عليه الصلوة والسلام او زړه اپرېښن يې ورو کړی؟

**ځواب:** جبرئيل، ميکائيل او اسرافيل عليهم السلام، په حديث کې د انس رضی الله عنه راغلي دي: لقد کنت اری اثر المخيط في صدره ﷺ.

قال ابن عساکر رح: ابو طالب حين قحط الوادي (ای وادي مکة چې بارانونه

پر بند وه استسقاء يې وکړه ومعه النبيﷺ فاخذ ابو طالب النبيﷺ والصق ظهره (او چسپه يې کړه ملا د عليه الصلوة والسلام په کعبه پورې. او ورته وه يې ويل چې خواست د قحط وکړه. نو عليه الصلوة والسلام اشاره په ګوته سره و طرف ته د اسمان وکړه او په اسمان کې يوه ټوټه د وريځې نه وه فاقبل السحاب من ههنا ومن ههنا. او ډېر په شړپ باران شروع سو او وادي د ملکې مالامال وبهېدلې. وفي ذالک قال ابو طالب شعر. يعني په شان کې د محمدﷺ:

وابيض يستسقى الغمام بوجهه ....... ثمال اليتامى عصمة للارامل

(پريا درس دی د يتيمانو او کونډيانو ښځو) په خلاصة السير کې وايي چې عليه الصلوة والسلام دوولس کاله عمر ته ورسېدی خرج معه عمه ابو طالب الى الشام للتجارة. نو چې دوی ورسېدل بصرى ته بحيرا الراهب من النصارى عليه الصلوة والسلام وليدی عرفه بصفته. نو بحير الراهب راغلی او عليه الصلوة والسلام يې تر لاس ونيوی او داسې يې وويل هذا رسول رب العالمين يبعث الله رحمةً للعالمين چا راهب المذکور ته وويل ته په دې د څه درک پوه سوې. ده ورته وويل ستاسې قافله چې تر دغې غونډۍ را واوښتل فلم يبق حجر ولا شجر الا خر ساجداً لله تعالى. او سجده نه کوي دغه شيان مګر په استقبال کې د نبي. او موږ ته په خپلو کتابو کې دا خبره معلومه ده چې نبي اخير الزمان په عربو کې پيدا کېږي چې حليه د هغه به کذا وکذا وي چې هغه حليه په دغه شخص محمد (ﷺ) کې ښکاره کېږي. او ابو طالب ته يې وويل چې که ته دغه ستا وراره شام ته درسره بوزې چې هورې يهودان آباد دي. نو يهودان يې هم پر حليه پېژني نه بايد درڅخه مړ يې نه کړي. نو ابو طالب عليه الصلوة والسلام سره د ابوبکر او بلال رضي الله عنه له ېږي بېرته مکې ته رد کړه.

**درويش وايي:** چې خديجه رضي الله عنها يوه متموله ښځه وه چې د پلار د خوا ډېر مال ورپاته سوی ؤ او هم د مېړه د خوا. او ډېر لوی تجارت يې کاوه په مزدورانو او مريانو. نو ابو طالب دې ته ورغلی چې دا زما وراره ستاسره مزدور کړه. چونکه عليه الصلوة والسلام په مکه کې ډېر پر قريشو ګران ؤ حتى چې امين مکه يې باله. نو خديجه په ډېر محبت او اعزاز عليه الصلوة والسلام ته فوق العاده تنخواه مقرره کړه او د مکې ټوله تجارت يې دده پر ذمه ورکړی او نور مريان يې دده زير دست وګرځاوه. خير شپې او ورځې تېرېدلې مياشتې او کلونه تېرېدله چې د عليه الصلوة والسلام عمر پنځه

ویشت (۲۵) کاله ته ورسېدی. خدیجې علیه الصلوة والسلام د شام په تجارت واستاوه او خپل مریی میسره یې ورسره کړی. شام ته چې دوی ورغله د یو راهب د یهودانو صومعة ته نژدې د یوې درختي تر سایه لاندې یې اوطاق ونیوی. راهب چې خبر سو د خپلې صومعة څخه راووتی. میسره ته یې وویل اشاره یې و علیه الصلوة والسلام ته وکړه چې دا سړی څوک دی. میسره ورته وویل رجل من قریش من اهل الحرم المکي. راهب ورته وویل چې تر دې درختي لاندې بېله نبي هیڅ څوک نه دی کښېنستلی. او راهب و علیه الصلوة والسلام ته رانژدې سو او داسې یې وویل امنت وانا اشهد انک الذي ذکره الله في التورات. وروسته یې و علیه الصلوة والسلام ته وویل چې ته لمن د شا څخه پورته کړه. علیه الصلوة والسلام چې لمن پورته کړه راهب خاتم ولیدی او مچ یې کړی او داسې یې وویل اشهد انک رسول الله النبي الامي العربي الهاشمي المکي صاحب الحوض الکوثر والشفاعة (یعني الکبرٰی) ولواء الحمد. میسره وایي چې څه وخت چې غرمه سوه لمر به تود سو دوې ملکې به د اسمان څخه راکښته سوې پر علیه الصلوة والسلام به یې سایه وکړه وهو یسیر علی بعیره. خیر دا سفر چې پای ته ورسېدی او میسره و خدیجې ته دا ټوله ماجری قصه وکړه. نو د خدیجې شوق وسو چې دده سره نکاح وکړي چې دده عمر په دې وخت کي څلوېښت کاله ؤ او د علیه الصلوة والسلام عمر پنځه ویشت کاله ؤ. نو خدیجې ابو طالب راوغوښتی او ورته وه یې ویل چې ستا د وراره سره زه نکاح کوم که ستا منظور وي. ابو طالب ورته وویل ته چې مالداره ښځه یې او زموږ کورنی غریب او بې وسه خلک یو حتی چې زما وراره ستا سره مزدور دی. خدیجې ورته وویل چې هر څنګه چې دی زه ستا د وراره سره نکاح کوم که ته مي قبلوې. ابو طالب هم په دې نکاح راضي سو. نو خدیجې لویه مهماني جوړه کړه او د اهل مکه او د قریشو ټوله سرداران او سرمایه داران یې راغونډ کړه وروسته. د مهمانۍ د پای ته رسېدو وروسته خدیجه رض راووتل او وه یې ویل چې تاسې زما څخه پوښتنه وکړئ چې دده دې مهمانۍ سبب او باعث څه ؤ. نو دی ورته وویل چې باعث دده دې مهمانۍ دا ؤ چې زه د ابو طالب د وراره محمد سره نکاح کوم ټولو په یوه خوله وویل ولنعم ذالک النکاح. په پښتو وایي ډېر ښه ډېر ښه. په اردو وایي بهت اچها بهت اچها په فارسي وایي بسیار خوب بسیار خوب. نو ابو طالب یوه بلیغه خطبه وویل او ایجاب و قبول یې وکړی او عقد د نکاح بسته سو. علیه الصلوة والسلام او خدیجه رض سره کور او کهول سوه.

**تنبیه:** د علیه الصلوة والسلام ټوله عیالونه که تارینه وه که ښځینه د دغې بیبي صاحبې خدیجې رضی الله عنها له نسل څخه پیدا سوي دي، یو ابراهیم چي د ماریه قبطیه څخه خدای ﷻ ورکړی.

**فائده:** د علیه الصلوة والسلام ټوله زامن په کوچني والي کي وفات سوي دي حتی چي ابراهیم د شپاړسو میاشتو په عمر کي وفات سو، والله اعلم شاید سر به یې دا وي چي تر علیه الصلوة والسلام وروسته نبي نسته، مګر لوني یې ټولي ژوندۍ پاته سوي حتی چي د مړو خاوندانې وګرځېدلې، او خدای ﷻ په هر کار کي حکمت لري.

**درویش وایي:** چي دا ؤ تفصیل د مولود د علیه الصلوة والسلام چي د معتبره کتابو څخه فقیر نقل کړی دی. ما سوی د دې څخه کوم د مولود مجالس او محافل چي پیران د کوټې د ښار او د شاوخوا چي انعقاد کوي مبني پر خود بیني یا د جهل د پیر صاحب دی، او بعض کارنامې د هغو مفضي و اهانت ته د علیه الصلوة والسلام دي. نوم اخستل د هغو محافلو مناسب نه دي.

**درویش وایي:** چي اوس بیرته د قرآن عزیز د تفسیر پر لور.

يَهْدِي اللَّهُ لِنُورِهِ مَن يَشَاءُ

او هدایت کوي خدای ﷻ و نور ته خپل چي ایمان او قرآن دی او رسول علیه السلام دی و هغه چاته چي د خدای ﷻ ورته اراده سي یعني بحسب استعداده لقبول ذالک النور.

وَيَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ۝

او خدای ﷻ بیانوي په قرآن کي داسي امور چي د حواسو د هغو وه فهم ته لار نه وي په امثال محسوسه وو سره تاچي خلکو ته په واضح توګه معلومه سي، او خدای ﷻ په هر شي ښه خبر دی. دا جمله حال ده له فاعل څخه د یضرب.

فِي بُيُوتٍ أَذِنَ اللَّهُ أَن تُرْفَعَ

**پوه سه:** چي کلمه د في متعلق ده په وروسته یسبح پوري او بیوت جمع د بیت ده. په مفردات کي وایي چي بیت ځای ته د انسان وایي د شپې تېرولو لپاره که د ډبرو څخه وي که د ختو څخه وي او که د وریو څخه د پسو وي او که د وجغونو څخه د بزې وي او که د وبر څخه د اوښانو وي. او مراد له بیوت څخه مساجد دي لقول ابن عباس رضی الله عنه المساجد کلها بیوت الله في الارض تضيء (چي بربښني) و اهل

السماء ته لکه ستوري و اهل الارض ته چي اجازه او اعلام کړی دی خدای ﷻ اذان ترفع په تقدیر د باء ای بان ترفع تلک البیوت، دا جمله تو له صفت ده د بیوت.
او مجاهد رحمه الله وايي چي معنی د ترفع په صیغه د مجهول ان تبنٰی، قال رسول الله ﷺ من بني لله مسجدًا بني له بیتًا في الجنة متفق علیه (چي چا جوړ کړی مسجد یعني خالص د خدای ﷻ لپاره نه د ریاء او نه د اضرار د بل مسجد لپاره، نو هغه چاته کور جوړیږي په جنت کي) وقال الحسن رحمه الله معناه تعظیم لایذکر فیها القبیح من القول ولا النجس من الاشیاء ولا الجنب والحیض والنفساء، بغوي رحمه الله وايي چي هر یو یونبي بناء کړی دی (۱) الکعبة بناها ابراهیم و اسماعیل علیهما السلام (۲) ومسجد بیت المقدس بناها داؤد و سلیمان علیهما السلام (۳) ومسجد القباء (۴) ومسجد المدینة بناهما رسول الله ﷺ.

**درویش وايي:** چي صحیح قول د ابن عباس رضي الله عنه دی چي له بیوتو څخه عام مساجد مراد دي ولا وجه لتخصیص هذه الاربعة وان کانت هذه الاربعة افضل من المساجد الاخر.

## وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُۥ يُسَبِّحُ لَهُۥ فِيهَا بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ ۝

او ذکر کړه کیږي په هغو مساجدو کي نوم د خدای ﷻ (یعني تلاوة القرآن وغیرها من الاذکار في الصلوة وخارجها) لمانځنه کیږي خاص د خدای ﷻ لپاره بلا ریاء وسمعة په دغو مساجدو کي (یسبح) صفة اخرٰی لبیوت.

**پوه سه:** چي (غدو) جمع د غدوة ده چي اول د ورځي ته وايي، او آصال جمع د اصل ده بضمتین چي هغه جمع د اصیل ده کذا في مجمع البحار.

**فائده:** اهل التفسیر وايي المراد به الصلوة المکتوبات لان المساجد بنیت في الاصل للمکتوبات، نو صلوة الغدو صلوة الفجر دی. او دا نور څلور لمونځونه په آصال کي داخل دي، نو پر دي تقدیر مراد له آصال څخه مابعد الزوال الی العشاء الآخیرة، او بعض مفسرین وايي چي له غدو څخه مراد صلوة الصبح دی او له آصال څخه د مازدیګر لمونځ مراد دی خصها بالذکر لکمال الاهتمام بهما لان الصبح وقت النوم والغفلة خصوصًا په لنډو شپو کي، او عصر وخت د تجارت او د خرید و فروخت دی په بازارو کي. ولهذا قال رسول الله ﷺ من صلی البردین دخل الجنة. رواه مسلم (یعني چي چا وکړه د خنک وخت دوه لمونځونه چي د سهار او

مازدیگر لمونځونه دي) او بغوي رح وایي چي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي د تسبيح الغدو تفسیر په صلوة الغداة او صلوة الضحیٰ (یعني د څاښت لمونځ) سره کړی دی، او دا حدیث د ابو یمامه رض کما رواه الطبراني عنه قال رسول الله ﷺ من مشی الی صلوة مکتوبة وهو متطهر (له صلوة مکتوبه څخه مراد صلوة الغداة دی ما یدل علیه مابعده) فاجره لا جر الحاج المحرم ومن اتی الی صلوة الضحیٰ لاینصبه الا ایاه فاجره کاجر المعتمر الی اخیر الحدیث.

**فائدة لابدمنها:** علماء په یوه خوله وایي چي افضل د نوافلو صلوة التهجد دی چي ادنیٰ یې څلور او اعلیٰ یې دوولس رکعته دی او منجی له عذاب القبر څخه او له دهشت څخه د قیامت د ورځي هم دغه د تهجد لمونځ دی. او علماء دا هم وایي که څوک له فقره بېرېږي صلوة الضحیٰ دي څلور رکعته وکړي لکن پر دې ترتیب چي په اول رکعت کي به والشمس والضحیٰ وایي او په دویم رکعته کي به واللیل اذا یغشیٰ آه وایي. بیا به په قعده اولی کي علاوه تر التحیات به اللهم صل اللهم بارک کما هو قانون جمیع النوافل الرباعیة، او په دریم رکعت کي به سبحانک اللهم آه وایي کما هو قانون الفقه في النوافل الرباعیة او وروسته تر الحمدلله به سورة الضحیٰ آه وایي او په څلورم رکعت کي به الم نشرح لک صدرک آه وایي، وقت صلوة الضحیٰ د بعض عوامو دا خیال دی چي لمر دوې یا درې نېزې قدر راپورته سوه د صلوة الضحیٰ وخت دی، لکن دا خبره غلطه ده هغه ته صلوة الاشراق وایي او د صلوة الضحیٰ وخت ډېر وروسته دی، له نهه (۹) بجو څخه نیولې بیا تر یوولس نیمو (۱۱/۵۰) بجو پوري دی.

رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ

داسي خلک چي دوی نه مشغوله کوي تجارت چي بیع او شراء دواړ ته شامل دی.

**بوه سه:** چي تخیص د رجال ددې کبله دی چي غائب په ښځو کي جهل او غفلت دی. ولي چي ناقصات العقل والدین بلل سوي دي (رجال) رجال فاعل د یسبح دی.

**پوښتنه:** په تجارت کي خو بیع او شراء دواړه داخل وه، نو بیع یې ولي بیا راوړه؟

**ځواب:** له دې سببه چي د ګټي یعني ربح درک په بیع سره معلومېږي یعني چي څوک شی رانسي او بیرته یې خرڅ کړي دا معلومېږي چي ما ګټه وکړه. او بعض مفسرین وایي چي مراد له تجارت څخه شراء ده که څه هم د تجارت د لفظ اطلاق پر

بيع هم كېږي، نو د تجارت څخه يې شراء مراد څرنګه وګرځول، جواب لأن الشراء مبدء التجارة كما هو المعتاد.

**بوه سه:** چي بعض مفسرين وايي چي مراد له ذكر الله څخه حضور دى مساجد و ته لپاره د اقام الصلوة، سالم له ابن عمر ﷺ څخه روايت كړى دى چي زه په بازار كي وم چي اذان وسو د اقام الصلوة دكانداران ټول ولاړ سوه د دكانو دروازې يې وتړلې فدخلوا المساجد ففيهم نزلت هذه الآية. قاله البغوي ؒ.

**بوه سه:** چي تجارت صفت د تاجر دى من بيع وشراء، او روح البيان وايي چي مراد له ذكر الله څخه تسبيح وتحميد وتمجيد دى يعني سبحان الله والحمد لله والله اكبر.

## وَإِقَامِ الصَّلٰوةِ وَإِيتَآءِ الزَّكٰوةِ

له اداء كولو څخه د لمانځه په خپلو اوقاتو كي، او ابن الشيخ وايي چي مراد له اقام الصلوة څخه اتمام د لمانځه دى، برعاية جميع ما اعتبره الشرع من الاركان والشرائط والسنن والاداب والمتكاسل في شئ منها ليس في شئ من اقامة الصلوة.

**درويش وايي:** چي دا تفسير انسب دى د لفظ سره د اقام الصلوة چي په ځاى كي د مدح ذكر سوى دى، يعني بايد مؤمن كامل سره د شغل په معاملاتو كي من البيع والشراء لايشغل التجارة قلبه عن ذكر الله يعني يكون ظاهر مع الناس وقلبه وباطنه مع الله، ولهذا الصوفي كائن اى في الناس بائن عن الناس.

**فائده:** بوه سه چي اصل د اقام اقوام وُ واو متحرک ماقبلش حرف صحيح ساكن چي قاف حركت د واو يې و قاف ته وركړى وروسته واو چي متحرک وُ في الاصل او ماقبل يې مفتوح وُ يعني بالفعل په الف يې بدل كړى دوه ساكنه سره جمع سوه الف د عين يې ساقط كړى عوض يې تاء راوړه په اخير كي اقامة سو وروسته يې كلمة د تاء حذف كړه په عوض كي يې اضافت راغلى اقام اصلوة سو وهذا هو المراد بما اجمل في المظهري وروح البيان وغيرهما حيث قالوا عوض فيه الاضافة من التاء المعوضة من العين الساقط بالاعلال.

(وايتاء الزكوة) او وركړه د زكوة كوي يعني المفروضة (ابن عباس ﷺ وايي اذا حضر وقت الزكوة لم يحبسوها. يعني چي پر مال كال تېر سو مه يې منع كوئ، او بعض مفسرين وايي چي مراد له زكوة څخه معنى لغوي ده چي ټولو اعمال صالحه وو ته شامل دى)

يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ الْقُلُوبُ وَالْأَبْصَارُ ۝

او دوی سره ددې چې اعمال مذکوره هم کوي بېرېږي (يخافون. حال دی د فاعل څخه د يسبح او يا له فعوله څخه د تلهيهم)

**بوه سه:** چې له يومًا څخه مراد ورځ د قيامت ده او تتقلب صفت د يومًا دی. والعائد الى الموصوف الضمير في تتقلب. والمعنى تضطرب وتتغير من الهول زړونه د اهل محشر او سترګې ددوی.... بيت:

درآن روز کز فعل پرسند وقول ...... اولو العزم راتن بلرزد زهول

او بعض مفسرين وايي تتقلب فيه قلوب الكفار كما كانت عليه في الدنيا من الكفر والشک في يوم الحساب وتتفتح ابصارهم من الاغطية فتبصر مالم تكن تبصر ولم تتحسب وتتقلب قلوب المؤمنين وابصارهم عما كانوا عليه من القناعة بمشاهدة الامثال فيرون الله سبحانه كالقمر ليلة البدر وكالشمس في رابعة النهار وقيل تتقلب القلوب يوم القيامة من الخوف والرجا. تخشى الهلاک ويطمع النجات.

لِيَجْزِيَهُمُ اللَّهُ

متعلق بيسبح او يا په يخافون پورې. نو پر دې تقدير لام د عاقبت دی نحو لدو للموت وابنو للخراب. لام غايه نه دی. ولې چې لام د غايت او د علتيت خو افعال اختياره وله وي او خوف خو له افعال اختياره وو څخه نه دی.

أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ ۗ وَاللَّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝

ښه جزاء ده ما عملوا في الدنيا من الطاعات يعني الجنة چې ددوی سره وعده کړل سوې وه په دنيا کې. او دوی ته به زيادت وکړي پر جزاء موعود باندې (او يا به يې ثواب د اعمالهم الحسنة ددوی دومره زيات کړي چې پر زړو ددوی به نه وو ګرځېدل) د خپل فضل څخه او خدای ﷻ رزق ورکوي و چاته چې اراده يې سي بې حسابه.

**بوه سه:** چې بغير حساب کنايه ده له فراخی څخه د فضل او احسان د خدای يقال فلان ينفق بغير حساب ای يوسع كانه لايحسب ما ينفقه يعني و ما ينفق ته حساب نه کوي.

**فائده:** امام راغب اصفهاني وايي چې آيت لاتلهيهم الآية پر دې دلالت نه کوي چې تجارت حرام يا مکروه دی بلکې نهي د استغراق في التجارة وترک الصلوة والطاعات.

**حكايت:** روايت سوى دى چي ملك حسين چي بادشاه د هرات ؤ د حضرت قطب الاقطاب خواجه بهاؤ الحق والدين محمد نقسبندي څخه يې پوښتنه وكړه كه: درطريقت شما ذكر جهر وخلوت وسماع ميباشد فرمودند كه نمى باشند، ملك حسين گفت كه مبناى طريقه شما برچيست؟ فرمود خلوت درانجمن يعني ظاهرًا بامخلوق باش وقلبًا باخدا، وسفر دروطن خود مسافرباش.... بيت:

بر فلك برتربود اسرار او.......... شيئًا لله شيئًا لله كار او

**وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍ بِقِيعَةٍ يَحْسَبُهُ الظَّمْآنُ مَاءً**

(والذين كفروا) هذه الجملة الى اخيرها معطوفة على مضمون الكلام السابق تقديره المهتدون بنور الله يجزيهم الله احسن ماعملوا والذين كفروا لاينفعهم اعمالهم (اعمالهم) يعني هغه عملونه چي له قسم څخه د خير د كارو وي لكه صلة الارحام وعتق الرقاب د قريبانو سره احسان كول، او د مريانو ازادول) وعمارة البيت (او خدمت كول د بيت الله شريف) وسقاية الحاج (او اوبه وركول له ځاه څخه د زمزم و حاجيانو ته) وقرى الاضياف (او ډوډى وركول و مېلمنو ته) واراقة الدماء (او وينې بهيول د اوښانو د فقراؤ لپاره) او نور ورته ښه كارونه كول كه ايمان ورسره ملگرى ؤ لوى لوى ثوابونه به خداى ﷻ وركړي لكن كه ايمان ورسره ملگري نه وي، نو اعمال د دوى (كسراب).

**پوه سه:** چي سراب و هغه شي ته وايي چي غرمه د ډوبې په وخت كي خصوصًا په صحراء كي چي شگنه مځكه وي لكه اوبه چي بهېږي د كتونكي په نظر كي ورځي (بقيعة) البقيعة والقاع المستوي من الارض ته وايي (يحسبه الظمان مآء) دا جمله صفت د سراب ده او ضمير منصوب يې راجع دى و سراب ته، او ضمان ږېر تږي سړي ته وايي يعني گمان كوي پر سراب يعني د لېري څخه چي اوبه دي.

**سوال:** پر دې سراب كه تږى وي كه نه وي گمان د اوبو كوي، نو تخصيص د ضمان يې ولې وكړى؟

**څواب:** د تخصيص سبب يې دادى چي تشبيه د كافر ورسره صحيح سي، يعني لكه كافر چي د خپلو ښو كارو كمامر محروم سو په وخت كي د سخت احتياج د هغو و ثواب ته يعني في يوم القيامة‌نو دغه رنگه ظمئا په وخت كي د سختي تندي محروم سو له اوبو څخه چي دده په توهم كي سراب اوبه وې په منډه منډه ورروان ؤ

لکن اوبه نه وي، او په بل عبارت ابتداء یې مطمع وه که د کافر د ښو عملو ابتداء مطمع دده وه چي هر وخت د حاجت به ماته په کار سي، او د سراب د لیدونکي هم ابتداء مطمع وه یعني زه به خپل سخته تنده په ماته کرم . او انتهاء یې مؤیس سوه یعني نا امیدي ته منجر سوه هم د کافر دا په ورځ د اخیرت او هم د ظمئا طمع نا امیدي ته منجر سوه چي دی د سراب و ځای ته ورسېدی.

## حَتّٰىٓ اِذَا جَآءَهٗ لَمْ يَجِدْهُ شَيْـًٔا وَّوَجَدَ اللّٰهَ عِنْدَهٗ فَوَفّٰىهُ حِسَابَهٗ

تر دې اندازې چي ظمئان سراب ته ورغلی (یعني ځای ته د سراب چي دده په ګمان اوبه وې) ده نه کړی پیدا سراب هیڅ شی یعني هغه شی چي دده ګمان پر کېدی یعني اوبه، او ده پیدا کړی عذاب د خدای ﷻ ای اعطاه الله جزاء اعماله کامله وافره علی حسب عمله.

**سوال:** وجد الله خو عطف دی پر لم یجده یا پر جآئه والضمیر المرفوع في کل منهما راجع الی الظمئان، نو څرنګه ده معنی ددې چي ظمئان عذاب د خدای ﷻ عند السراب پیدا کړی؟

**ځواب:** چي ورځ د قیامت سي کافر ډېر سخت تږی وي پر دوږخ یې د سراب خیال راسي، نو چابک ور روان سي چي ځان به ښه په اوبه کړي لم یجده یعني دوږخ هیڅ شی د ماظنه څخه دده و وجد عذاب الله عنده (په نږدې د سراب مرئي دده) یعني النار.

**درویش وایي:** چي بې تکلفه او مناسب ځواب دادی چي کلمه د حتّی عاطفه نه ده بلکې ابتدائیه ده، متصل ده په قول سره د اعمالهم کسراب والمعنی حتی اذا جاء الکافر عمله في الآخرة لم یجده شیئًا و وجد الله عنده، نو ضمیر مرفوع په جائه په تاویل د کل واحد و کفارو ته راجع دی لا الی الظمئان کما یتوهم من الظاهر وصار منشاء السوال المذکور والضمیر المنصوب في جائه و عمل ته د کافر راجع دی لا الی السراب فتدبر غایة التدبر.

## وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ۝

او خدای ﷻ ژر دی حساب دده، لانه تعالی لایشغله حساب شخص او قوم عن حساب شخص اخر او قوم آخر. له عارفینو څخه روایت دی چي حساب د ټولو

كافرانو او مسلمانانو سره دا يوه خبره ده. من ترا بودم تو كرا بودي. يعني من خالق تو ورازق تو وشافي تو ومشكل كشاي تو بودم تو عبادت كرا كردي و اعمال ريائي براى كه ميكردى.

## اَوْكَظُلُمٰتٍ

(او كظمات) عطف على قوله كسراب و كلمة او للتخيير يعني مخاطب مخير دی په تشبيه کي د اعمال حسنهٔ د کفارو کما مرت کي د سراب بقيعة سره کوي په دي اعتبار چي دوی ته نفع په ورځ د قيامت او سبب د نا اميدی دي په هغه ورځ او د غم دی لانعدام شرط نفعها في يوم القيامة وهو الايمان فيهم. او يا يې تشبيه ده د ظلمات متراكمة من لج البحر والامواج والسحاب په دې اعتبار چي د غه اعمال ددوی له نوره څخه د حق خالي دي چي ايمان دی. او يا کلمه د او لپاره د تنويع ده په دې لحاظ چي اعمال ددوی که حسنات وي كالصدقة وصلة الرحم ونحوها كما مرت بالتفصيل فهي كالسراب في عدم النفع يوم القيامة لعدم الشرط اى الايمان او که اعمال ددوی قبيحه وي كالكفر وسائر المعاصي، نو لکه ظلمات آتيه دي، او يا تنويع يې په وخت کي ده، ولي اعمال ددوی لکه ظلمات وه په دنيا کي او لکه سراب دي په آخرت کي.

**درويش وايي:** چي دا احتمالات د نهايت بلاغت د كلام الله دي.

## فِيْ بَحْرٍ لُّجِّيٍّ يَّغْشٰىهُ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ سَحَابٌ

كائن وي دا ظلمات په يو درياب کي چي ژور وي او كثير الماء وي. بيضاوي وايي چي لجئ معظم حصې ته د ابو وايي كما في النهاية والقاموس. او بعض مفسرين وايي چي د لجي معنا داده چي يو په بل پسې مسلسلې څپې وهي (يغشاه) صفة اخرى دی د بحر چي پټ کړي وي دا بحر (موج) څپو.

**فائده:** سبب د څپو اضطراب د بادو دی والموج مايعلو من الماء.

(من فوقه موج) چي لوړي تر هغې څپې نوري څپې وي. والحاصل چي امواج يو په بل پرله پسې چي يوه تېرېږي يا نه وي تېره سوې نوري څپې پر راسې چي اول قسم ته يې امواج مترادفه وايي او دويم قسم ته يې امواج متراكمه وايي (من فوقه) سربېره پر موج ثاني وريځ وي چي د سپوږمی او ستورو نور يې پټ کړی وي.

**ظُلُمٰتٌۢ بَعۡضُهَا فَوۡقَ بَعۡضٍؕ اِذَاۤ اَخۡرَجَ يَدَهٗ لَمۡ يَكَدۡ يَرٰىهَاؕ**

(ظلمات) خبر د مبتداء محذوفي دی. بعض ددې تاريکيو يو پر بل سربېره وي، چې دی لاس راوباسي چې ده ته نژدې عضوه ده چې دی ورته وګوري.

**سوال:** د يده ضمير خو راجع و شخص واقع في البحر د ن او هغه خو دمخه نه دی ذکر سوی. نو اضمار قبل الذکر به نه وي؟

**خواب:** ذکر د مرجع عام دی که لفظًا وي او که حکمًا وي. دلته ذکر حکمي سته. ولې خبري د کفارو په باره کي رواني دي.

(لم يكد يرٰها) قريبه هم نه وي چې ودې ويني فضلاً عن ان يراها، وحاصل التشبيه چې ورته ودغه مثال ته اعمال د کفارو دي من الکفر والمعاصي وانکار الحق تاريکی. دي پر زړو ددوی بعضها فوق بعض چې هغه ظلمات مانع د اهتداء څخه د زړو ددوی ده او د ادارک څخه د حق چې اسلام دی.

**فائده:** نو کفر او انکار الحق چې له اعمالو څخه د زړو دی کالبحر اللجي المظلم يغشاه ظلمات المعاصي کالاستهزاء بالنبي ﷺ وقولهم انه ساحر او مجنون او مفتر او يعلمه البشر کالامواج التي بعضها فوق بعض. او ختم او طبع پر زړه د کافر لکه وريځ پر امواج ده، نو چې کافر اراده وکړي د فکر وهولو په امورو کي د اسلام او د قرآن او د نبي ﷺ چې د اجلی بدهياتو څخه دی لم يکد يرٰی تلک البدهيات الاوليات والشاهد علی ذالک چې کافر د انبياء عليهم السلام خصوصًا النبي الانور محمد المصطفٰی ﷺ مع تواتر معجزاتهم خصوصًا معجزاته عليه السلام کشق القمر. وکلمة التوحيد للحجارة في يد فرعون هذه الامة ابوجهل وغير ذالک، او له غايت جهل څخه ددوی اعتقاد د الوهية او د استحقاق د عبادت ومصنوعه ددوی په لاسو جوړ سوو بتانو ته لري فحق القول.

**وَمَنۡ لَّمۡ يَجۡعَلِ اللّٰهُ لَهٗ نُوۡرًا فَمَا لَهٗ مِنۡ نُّوۡرٍ ۴۰**

چې چا ته خدای جل جلاله نه وي ورکړی نور د زړه، نو نسته هغه نور د بلي خوا څخه.

**فائده:** هدايت امر وهبي د خدای جل جلاله دی، پر خدای جل جلاله واجب نه دی، بلکي حصول د علم بالنتيجة بعد ترتيب الصغرٰی والکبرٰی علی الشرائط المنطقية امر عادي وهبي دی وليس بواجب علی الله عند اهل الحق.

**حکایت:** یو بادشاه وُ چې خپل زوی یې یو عالم الرمل ته سپارلی وُ چې ده ته علم الرمل ورزده کړه چې پر پټو شیانو علم ولري، نو عالم الرمل د بادشاه د زوی سره ډېره جان فشاني وکړه او قواعد د علم رمل یې پوره په زده کړه، نو بادشا ته یې راوستی چې زوی دي پوره علم الرمل زده کړی، نو بادشاه لپاره د امتحان د زوی په جیب لاس ننه کړی او ګوتمۍ چې په منځ کې یې غمی وُ په موټه کې ونیول زوی ته یې وویل چې زما په لاس کې څه شی دی، زوی چې یې قواعد د علم رمل پر کار واچولې پلار ته یې وویل یو ګردی شی دی، پلار یې ورته وویل صحیح ده، نور؟ زوی یې ورته وویل چې په دې ګردي شي کې خلاف د جنس د ګردي شي بل شی سته (یعني غمی د ګوتمۍ چې ګوتمۍ خو د زرو وه او غمی یو قسم قیمتي ډبره وه) پلار یې ورته وویل نور بیان؟ زوی یې ورته وویل چې د ژرندي پل دی (یعني د ژرندي پل خو هم ګردی دی او په منځ کې د لاندي پله لرګی دی) نو ځکه ده ورته وویل د ژرندي پل دی، نو بادشاه رملي عالم ته وویل چې دا وه ستا د علم رمل ښووته؟ رملي عالم ورته وویل چې د رمل علم صرف نښاني د شي پوره بیانوي لکن نوم د شي نه اخلي، وروسته به عامل فکر ورته وهي چې دغه نښانې چې پکښې وي هغه به فلانی شی وي، ستا زوی چې په علم رمل پوري اړه درلوده پوره یې بیان کړی لکن د فکر ځای ته چې راغلی کوته سو، ولي عقل یې نه درلودی چې پلار له جیبه څخه شی راوکښی او په موټه کې یې هم ټینګ نیولی دی، نو باید ویلي یې وای چې ګوتمۍ ده.

**درویش وایي:** چې دا حکایت ما ددې لپاره راوړی چې علم پر شي وروسته تر تهیه د اسبابو د هغه هم موهبي شی دی لکن عادي واجب نه دی.

**تنبیه:** ډېر کسان داسي سته چې په امورو کې د دنیا یعني په تجارت وغیرها کې ډېر ناپوه وي لکن په امورو کې د آخرت ډېر هوشیار وي، او ډېر داسي کسان هم سته چې په امورو کې د دنیا من البیع والشراء ډېر پوه وي چې خاوري یې په لاس کې زر ګرځي (دا یو متل دی د سړي د دنیا پوهنې په باره کې) لکن هغه سړی په امورو کې د آخرت ډېر کوته وي یعني خیر او شر د آخرت نه پېژني.

ع:... دا باران چې پر همه وو ځکو اوري ... مشرف کړی ذات د کیمیا ولي (کیمیا یو بوټی دی د یو لرګي نوم دی) بغوي رح وايي چې مقاتل رح ویلي دي چې دا آیت یعني ومن لم یجعل الله له نورًا الآیة په شان کې د عتبه بن ربیعه بن امیه

نازل سوی دی چي دی په دین حق پسي ګرځېدی او د کراستي کالي به يي اغوستي وه فلما جاء الاسلام كفر به.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يُسَبِّحُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالطَّيْرُ صَافَّاتٍ

**بوه سه:** چي مراد له رؤيت څخه رؤيت علمي دی او تعبير په رؤيت سره له دې سببه دی چي دغه علم چي حاصل سي په وحي سره هغه مشابه دی د علم حاصل بالمشاهده سره في الوثاقة فالمعنى الم تعلم يا محمد علمًا حاصلاً بالوحي يشبه الرؤية البصرية په وثاقت کي.

**فائده:** علم حاصل بالاستدلال الصحيح العقلي او په كشف صريح سره هم داغـسي محکم علم دی.

**نوجمه:** آيا ته نه وينې چي د خدای ﷻ تسبيح وايي (يعني شاهدي اداء کوي پر تنزيه د خدای ﷻ د ټولو نقائصو څخه) هغه څوک چي په اسمانو کي دي، من الملائكة والنجوم وغيرها او هغه څوک چي په مځکه کي دي من الانس والجن وغيرهم والمقصود جميع المخلوقات. او صيغه د من چي په ذوی العقول پوري خاص ده را يې وړل تغليبًا لذوى العقول على غيرهم، والقرينة على ارادة جميع المخلوقات قوله تعالى (والطير صآفات) او مرغان چي غوړولي يې وي خپل وزرونه په هغوا کي يعني هغه هم د خدای ﷻ تسبيح وايي (ان الله يسبح له) مفعول د ترئ دی.

**فائده:** د صآفات قيد يې ددې لپاره وواېه چي هغه مرغان چي پر مځکه وي هغه خو په من في الارض کي داخل وه (الطير) عطف دی پر من چي فاعل د يسبح دی. طير جمع د طائر ده لکه رکب جمع د راکب ده، والطائر كل ذی جناح يسبح (چي ګذاره کوي په هوا کي)

**فائده:** استفهام د الم تر لپاره د تقرير دی ای قد علمت يا محمد وبعبارة اخرئ استفهام لپاره د انكار دی پر حرف نفي داخل سو. نو نفي د نفي اثبات دی فيرجع الى التقرير.

كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهُ وَتَسْبِيحَهُ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴿٤١﴾

ای كل واحد من جماعة المسبحة. په تحقيق خبر دی خدای ﷻ (صلاته) ای دعائه او په تسبيح د هغه، او خدای ﷻ ښه خبر دی په هغه څه چي دوی يې فعل کوي من الطاعة والصلوة والتسبيح فيجازيهم على اعمالهم.

**فائده:** په دې آيت کې توبيخ او وعيد دی د کافرانو د انس او جن حيث لا يسبحون الله اختيارًا.

**وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ۞**

او خاص خدای ﷻ لره دی سلطنت د اسمانو او ځمکې (لانه خالقهما ومالکهما، او دغه هغه شيان دي چې په اسمانو او ځمکې کې دي من الذوات کالملائکة والنجوم وغيرهما، او يا په ځمکه کې ذوات د انس او جن او د جميع انواع الحيوانات والنباتات الى غيرها) او خاص خدای ﷻ ته ده رجوع د ټولو فيجازي کل واحد على مقدار عمله. وقد جاء في الحديث الصحيح: حتى يقتص للشاة الجماء من الشاة القرناء. (کسات به اخلي د بې ښکره بزې د ښکروري بزې څخه) چې پر جماء يې ظلم کړی وي.

**پوښتنه:** وروسته تر کسات اخستلو نو په جماء او قرناء څه کيږي؟

**ځواب:** ثم يقول الرب تعالى کونوا ترابًا. ولې دا حيوانات عجم خو مکلف نه دي چې جنت يا دوزخ ته يې واستوي.

**اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُزْجِيْ سَحَابًا ثُمَّ يُؤَلِّفُ بَيْنَهٗ**

ته نه وينې (ددې استفهام او رؤية تفسير تېر شو) چې خدای ﷻ سوق کوي د وريځې.

**فائده:** اصل معنى د تزجيه دفع الشئ ومنها البضاعة المزجاة (يعني بېکاره) کما في سورة يوسف لانها يدفعها کل احد يعني دفع کوي اونې اخلي.

**پوه سه:** چې ضمير د بينه راجع دی و سحاب ته والمضاف محذوف ای يجمع بين قطعات السحاب المتفرقة.

**ثُمَّ يَجْعَلُهٗ رُكَامًا فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ**

بيا گرځوي دا وريځ يو پر بل سرپېره، ته وينې (ای مخاطب غير معين) څاڅکي د باران راوځي له چاکو څخه د وريځې.

**وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ جِبَالٍ فِيْهَا مِنْ بَرَدٍ**

او خدای ﷻ نازلوي له اسمانو څخه.

**پوه سه:** چې من جبال بدل اشتمال دی له من السماء څخه.

**فائده:** مراد په دې آيت کي له سماء څخه وريځ ده لان کل ماعلاک فهو سماء، او مراد له جبال څخه هغه غټي غټي ټوټې د وريځي دي چي لکه غرونه په لوی والي کي، او د فيها ضمير راجع دی وسماء ته چي له جملې څخه د مؤنثاتو سماعيه وو دی (من برد) بيان دی للجبال، او برد ته په پښتو ژلۍ وايي، او بعض مفسرين وايي چي په اصلي اسمان کي ډېر غرونه دي د ژلۍ او د واوري، او يوه ملکه يې پر مقرره کړې ده هغه ملکه په اراده د خدای ﷻ ژلۍ يا واوره په وريځ کي سوق کوي الى ماشاء الله تعالى من قطر من اقطار الارض والله اعلم.

## فَيُصِيبُ بِهِ مَنْ يَشَاءُ وَيَصْرِفُهُ عَنْ مَنْ يَشَاءُ

نو خدای پاک ورسوي دغه ژلۍ و هغه چا ته چي د خدای ﷻ اراده وي، نو کښتونه بلکې بعض اوقات مېږي او بزې تو له هلاک کړي، او لېري کړي دغه ژلۍ د هغه چا څخه چي د خدای ﷻ ورته اراده سي، نو هغه ته مالي او جاني تاوان نه ورسېږي.

## يَكَادُ سَنَا بَرْقِهِ يَذْهَبُ بِالْأَبْصَارِ ﴿٤٣﴾

قرينه وي چي رڼا د برق چي په پښتو يې پېلبو بولي چي يو دي سي ديد د سترګو د کتونکو.

**پوهه:** چي پېلبو ته چي ځوک ډېر وګوري رونډ که نسي د سترګو ديد يې ډېر کمزوری کېږي وذالک ثابت بالتجربة.

## يُقَلِّبُ اللَّهُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ

بعض مفسرين ددې آيت داسي ترجمه کوي چي تر شپې وروسته ورځ او تر ورځي وروسته شپه راځي، او بعض وايي چي کاهي د شپې ساعات ورځي ته ورکړي يعني ورځ اوږده سي لکه په دوبي کي، او بعض وخت د ورځي ساعات شپې ته ورکړي، نو شپه اوږده سي لکه په ژمي کي، يا په تغيير د احوالو د شپې او د ورځي بالحر والبرد، يعني چي شپه بالجملة ځه ناځه خنکه وي، او يا په نور او ظلمت کي چي ورځ که څه هم توره وريځ وي نوراني وي تر شپې که اسمان صاف وي او د ځور لسم سپوږمۍ هم وي مثلاً.

## إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِأُولِي الْأَبْصَارِ ﴿٤٤﴾

په تحقيق په مذکوره شيانو کي (د مذکوره په ويلو سره هغه سوال دفع سو چي

مناسب د ماسبق ذکر سوی د قدرت الهي د نخښو خو تلک ؤ) عبرت، يعني دلالت دی پر وجود د صانع قادر بکمال القدرة، خاوندانو ته د کتلو (اولی جمع ده، مګر د لفظ خپل مفرد نه لري بلکې مفرد يې ذو دی.

**پوه سه:** چي ابصار جمع د بصر ده په معنی د ليدو د سترګو ده، او خودي سترګو ته هم وايي او قوت قلبي چي مدرک د اشياؤ دی بصيرت هم وايي او بصر هم وايي، والمعنی ان من له بصيرة له مذکوره شيانو څخه پند اخلي و معرفت ته د مدبر په قدرت تامه او په علم شامل الدال قطعًا علی الوحدانية. له سعيد بن المسيب رح څخه چا پوښتنه وکړه: ای العبادة افضل؟ ده ورته وويل التفکر في خلق الله والتفقه في دينه. ودې تفکر في الخلق ته سعدي شيرازي قدس سره اشاره کړې ده په دې بيت کې:

برګ درختان سبز در نظر هوشيار ........ هر ورقی دفتريست معرفت کردګار

**وَاللّٰهُ خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٍ مِّنْ مَّآءٍ**

او خدای ﷻ پيدا کړې ده هره دابه د مخصوصو اوبو څخه چي نطفه يې بولي (الدابة کل مايدب ای يتحرک علی الارض من الحيوانات) نو په دې آيت کې تنزيل دی د غالب حيواناتو علی الکل، ولي چي بعض حيوانات له هګۍ څخه پيدا کېږي، او بعض د عفوفاتو څخه پيدا کېږي.

**پوه سه:** چي ملکو او جن ته دابه نه وايي، او بعض علماء وايي چي اوبه اصل دي د ټوله مخلوق، قال البغوي رح وذالک ان الله خلق الماء ثم جعل بعضه ريحًا يعني هواء فخلق منها (دا ضمير وريح ته راجع دی چي مؤنث سماعي دی) الملائکة وبعضه نارًا فخلق منها الجن (نار هم مؤنث سماعي دی) وبعضه طينًا فخلق منه آدم عليه السلام.

**فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى بَطْنِهٖ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى رِجْلَيْنِ ۚ**

په دې حيواناتو کې بعض هغه دي چي پر نس ځي لکه ماران، چينجيان او ماهيان، او بعض د دوابو پر دوو پښو تګ کوي لکه انسان، چرګان او نور مرغان.

**سوال:** مشي خو د پښو تګ ته وايي، نو يمشي علی بطنه څرنګه صحيح کېږي؟

**خواب:** چونکه ماشي البطن يې يې د ماشي علی الرجل سره جمع کړی، نو ۱ دواړو تګ چي په عربي يې زحف بولي مشي وويل.

وَمِنْهُم مَّن يَمْشِي عَلَىٰ أَرْبَعٍ

او بعض يې پر څلورو پښو تګ کوي لکه اوښان. غواګانې. پسونه وغيرها كالسباع درنده ګان.

**سوال:** بعض دواب خو پر ډېرو پښو تګ کوي لکه ځنځه، غونډک. جولاګې وغيرها هغه يې ولې نه کړل ذکر؟

**ځواب:** عدم ذکر يې په سبب د عدم الاعتداد بها لقلتها . او يا ددې چې د هغو مشي لکه د څلورو پښو والا مشي دی.

**بوه سه:** چې تعبير په من سره او تذکير د ضمائرو له جهته څخه د تغليب د عقلاؤ دی.

يَخْلُقُ اللَّهُ مَا يَشَاءُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٤٥﴾

خدای ﷻ پيدا کوي هغه شيان چې ورته اراده يې سي (يعني ماذکر ومالم يذکر من البسائط والمرکبات مع اختلاف الصور و الهيئات والحرکات والطبائع والاحوال مع اتحاد المادة على مقتضى مشيته وارادته وحکمته) په تحقيق خدای پر هر شي قادر دی فيفعل مايشا ، بلا منازع لامعقب لحکمه.

لَّقَدْ أَنزَلْنَا آيَاتٍ مُّبَيِّنَاتٍ ۚ وَاللَّهُ يَهْدِي مَن يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٤٦﴾

اللام موطئة لقسم محذوف، ما نازل کړي دي په قرآن کريم کي آيتونه ظاهرونکي د حق او توحيد (ظاهر الدلالات على وجود صانع العليم الحکيم في مصنوعاته القدير على مايشاء بانواع الدلالات من المطابقة والتضمنية والالتزامية. لکن هغه چا لره چې القى السمع وهو شهيد ) او خدای ﷻ هدايت کوي و هغه چا ته چې اراده د هدايت يې وکړي حسب استعداده باختياره ولاري سمې ته چې دين د اسلام دی چې سړی رسوي و مراتبو ته د قرب الى الله والفوز بالجنة والنجات من النار، ددې معنی داده چې ايمان موهبي شی دی لايحصل بالنظر في الدلائل الا بتوفيق الله وهدايته.

بغوي رح وايي چې بشر المنافق په منځ کي دده او د يوه يهودي په منځ کي خصومت و، نو يهودي و بشر منافق ته وويل چې ددې خصومت فيصله پر محمد (ﷺ) چې ته يې په دين کي داخل يې کوو. او منافق ورته وويل چې فيصله به يې پر

كعب بن الاشرف كوو. ولي چي محمد پر موږ ظلم كوي. او حق په جانب كي د يهودي ؤ هغه پوهېدی چي محمد فيصله بالحق كوي، او كعب بن الاشرف رشوت خوره ؤ. د منافق خيال ؤ چي څه رشوت به ور كړي او ستا پر خوا به فيصله وكړي فنزلت هذه الآية.

وَيَقُولُونَ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالرَّسُولِ وَأَطَعْنَا ثُمَّ يَتَوَلَّى

وايي دوی يعني منافقين چي موږ ايمان راوړی دی پر خدای ﷻ او پر رسول او موږ اطاعت او فرمانبرداري كوو د خدای ﷻ او د رسول، بيا اعراض او روی گرداني كوي له ايمان څخه، چي امتناع كوي د قبوله د حكم د رسول هلته چي دوی پوهېږي چي حكم د رسول پر خلاف د رايي د دوی دی.

**پوښتنه:** شان نزول د آيت كمامر خو په بشر منافق كي ؤ كمامر، نو صيغه د جمع يې ولي راوړه؟

**ځواب:** چونكه د بشر او د ټولو منافقينو حال او مقال سره يو ؤ. نو ځكه يې صيغه د جمع راوړه.

فَرِيقٌ مِّنْهُم مِّن بَعْدِ ذَٰلِكَ ۚ وَمَا أُولَٰئِكَ بِالْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٧﴾

(فريق منهم) فاعل د يتولّى دی. مراد له فريق څخه بشر منافق وامثاله. وروسته تر قول د دوی يعني آمنا بالله آه، او نه دي دغه كسان (اشارة الى المنافقين كلهم. اشاره ودې ته ده چي منافقين بتمامهم كه څه هم امنوا بالله آه په خوله وايي لكن په زړو كي يې ايمان نشته، او يا اشاره ده فريق متولی عن حكم الرسول ته) نه دي مؤمنان هغه مؤمنان چي تا ته يې حال معلوم دی، او خدای ﷻ يې هم په صدق او اخلاص خبر دی. له حسن رح څخه روايت دی چي يو سړی له منافقينو څخه په خصومت كي د يو بل چا سره چي هغه به بر حق ؤ، او هغه ته به خصم د ده دعوت د فيصلې پر عليه الصلوة والسلام وركړی په ښه اخلاص به يې هغه دعوت قبول كړی. ولي چي دی په دې پوهېدی چي رسول الله ﷺ زما په حق كي فيصله كوي په حق سره. او چي د منافق به ظلم په خيال كي ؤ يعني ناحقه دعوه. نو چي به دعوت سو د حكم ته د عليه الصلوة والسلام اعراض به يې وكړی، او دا به يې ويل راځه فلاني ته ورسو چي ژوندی مثال د هغه ناحقه دعوی د بشر منافق و د يهودي سره كمامر تفصيله.

## وَإِذَا دُعُوٓا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ

چي دوی يعني منافقينو ته به دعوت ورکړل سي و حکم ته د خدای او د رسول د خدای ﷻ. او بعض محققين وايي ورسوله يې عطف کړی پر لفظ الله له دې سببه چي حکم د رسول حکم د خدای ﷻ دی. کريمه: وما ينطق عن الهوی ان هو الا وحي يوحی. نحو اعجبني زيد وکرمه.

**پوه سه:** چي جمله د اذا دعوا آه عطف ده پر ما اولئک بالمؤمنين باندي (ليحکم بينهم) چي حکم وکړي په منځ کي د دوی. ضمير د ليحکم راجع و رسول ته دی.

**سوال:** په دمخه آيت کي دعوت د خدای او د رسول دواړو ذکر سوی ؤ او په ليحکم کي يې يواځي ضمير و عليه الصلوة والسلام ته راجع کړی؟

**ځواب:** ددې سببه چي مباشر د حکم د خدای ﷻ خو عليه الصلوة والسلام دی حيقةً وظاهرًا که څه هم حکم د عليه الصلوة والسلام حکم د خدای ﷻ دی باطنًا.

بيت:... گفته او گفته الله بود ........ گرچه از حلقوم عبد الله بود

## إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٤٨﴾

نابېره يوه ډله د دوی يعني ظالمانه او ناحقه دعوه يې په چا کړې وي اعرض کوونکي وي يعني له حکم څخه د رسول.

## وَإِن يَكُن لَّهُمُ الْحَقُّ يَأْتُوٓا إِلَيْهِ مُذْعِنِينَ ﴿٤٩﴾

او که چېري حق په جانب د دوی يعني خصم يې پر باطل دوی راځي و عليه الصلوة والسلام منقادين او فرمان برداره د رسول د حکم. ولي چي د دوی يقين دی چي عليه الصلوة والسلام حکم بالحق کوي.

## أَفِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَمِ ارْتَابُوٓا أَمْ يَخَافُونَ

آيا په زړو کي د دوی ناجوړي د ظلم ده، که د دوی په زړو کي شک دی ستا په نبوت کي يعني پر تا يې د تهمت ځای پيدا کړی، نو يقين يې په نفاق بدل سوی دی. او که دوی بېرېږي چي تا ته د فيصلې لپاره نه دريځي.

أَنْ يَحِيفَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُ ۚ بَلْ أُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿٥٠﴾

چي ظلم دي وكړي خداى او رسول د خداى ﷺ پر دوى په فيصلو كي د حكوماتو. بلكي دوى دي ظالمان پر خپلو ځانو بالكفر والنفاق وعدم الانقياد بحكم الله ورسوله. او علاوه پر هغه دوى ظالمان دي پر خلكو چي اموال د دوى بالباطل خوري په رشوت او تحاكم و كعب بن الاشرف وغيره ته.

**بوه سه:** چي كلمه د بل اضراب دى د قسمين اخيرينو څخه لتحقق القسم الاول.

**فائده:** تقسيم داسي دى چي منافقينو چي امتناع له تحكيم څخه د عليه الصلوة والسلام كوي (۱) يا به خلل او نقصان په دوى كي وي (۲) يا په حاكم كي چي عليه الصلوة والسلام ؤ، بر دوهم تقدير (۳) يا دا نقصان به په حاكم كي ثابت ؤ د دوى، او يا به متوقع ؤ، اخير دوه قسمه خو دواړه باطل دي، ولي منسب د نبوت د عليه الصلوة والسلام او نهايت امين والى د عليه الصلوة والسلام حتى قبل النبوة دى منع كوي د ورته كارو څخه، فتعين القسم الاول وهو الخلل والنقصان فيهم من النفاق، او شاهد د خلل په دوى كي دا دى چي حق د دوى په جانب كي ؤ يأتوا اليه مذعنين.

**فائده:** اورد ضمير الفصل الذي فائدته الحصر في قوله تعالى بل اؤلئک هم الظالمون، ليدل على نفي ذالک من غير المنافقين يعني چي دلالت پر دې وكړي چي دا خلل د اعراض له حكم څخه عليه الصلوة والسلام حصر پر دوى دى متجاوز و مخلص مؤمنانو ته دى.

**بوه سه:** چي عادت د خداى ﷺ په قرآن كريم كي ذكر د اعداء الله وكړى وروسته ذكر د احباء الله كوي وما ينبغي لهم فقال جل ذكره.

إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ
أَنْ يَقُولُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٥١﴾

**بوه سه:** چي كلمه د انما لپاره د حصر ده، يعني نه دى قول د مؤمنانو مگر دا، والمراد بالمؤمنين ههنا بقرينة ذكرهم عقب المنافقين المخلصون منهم چي دوى وبلل سي و خداى او رسول ته يعني و حكم ته د خداى او رسول، تا چي حكم وكړي رسول د خداى ﷺ.

**بوه سه:** چي تحقيق د دې خبري چي د څخه خداى او رسول دواړه ذكر سوه او په

لیحکم کي يې مفرد ضمير و رسول ته راجع کړی عنقریب تېر سو فتذکر.

**فائده**: قوله لیحکم منصوب دی په ان مقدر سره وروسته تر لام (ولي حرف جر پر فعل نه داخلېږي کما تقرر في کتب النحو) خبر د کان دی او اسم د کان ان یقولو دی. چونکه ان مصدریه دی نو معنی د ان یقولوا قولهم ده چي مونږ واورېدی دعوت د خدای او رسول ته دده. او مونږ اطاعت کوو او اجابت کوو د هغه دعوت.

(و اولئک هم المفلحون) او دغه کسان چي مذکور قبل هذا قول ددوی ؤ، دوی دي فلاح او خلاصون مندونکي له عذاب څخه د خدای په دنیا او آخرت کي دون غیرهم، ضمير فصل :هم: لپاره د حصر دی.

# وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَخْشَ اللّٰهَ وَيَتَّقْهِ

که څوک اطاعت وکړي د خدای او د رسول د خدای یعني في بقية عمره، قال ابن عباس رض فیما ساءه وسره، او د خدای ﷻ څخه بېرېږي یعني د خپلو ګنهو په سبب ومخالفة احکامه تعالی او ځان له عذاب څخه د خدای ﷻ خلاصوي په امتثال کي د اوامرو دخدای او په منع کي د ځان له منهیاتو څخه او په محافظت سره د احکامو د خدای او د حدود د خدای ﷻ.

**فائده**: د صرفو په کتابو کي وايي چي لپاره د تخفیف په کتف بکسر التاء کي کتف هم روا دی، لکن دا قانون مقید دی په دې سره چي یوه کلمه وي، نو اصل د یتقه یتقیه ؤ چونکه کلمه د یاء په جزم کي ولاړه وه لان کلمة من شرطية جازمة نو یتقه بکسر القاف والها پاته سو. بیا يې خلاف القیاس قاف ساکن کړی یتقه جوړ سو، ما وویل خلاف القیاس لان اسکان العین انما کان قیاسًا فیما هو کلمة واحدة کمامر آنفًا، او د یتقه د ضمير سره دوې کلمې دي لکن قراء ضمير منفصل لکه متصل وګرځاوه، ولي تقه پر وزن د کتف، نو يې ځکه يې قاف ساکن کړی فافهم وتدبر.

**یوه سه**: چي دا قرائت د حفص رح دی، او جمهور قاریان يې یتقه بکسر القاف علی الاصل، وبعض قراء کلمة د ها ساکن وايي په وصل او وقف کي او بعض قاریان يې په کسره د هاء وايي.

# فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ

نو دغو کسانو بری پیدا کړی پر نعیم مقیم في جنت نعیم او پر رضوان د رب رحیم.

وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِنْ أَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ

یعني منافقین قسم اخلي په خدای ﷻ سره، که ته دوی امر کړې چي له کوره ووځي او مالونه پرېږدي، او یا معنی دا چي جهاد ته ووځي (لیخرجن) جواب دی لاقسموا علی الحکایة او جزاء د شرط معنی، بغوي رح وایي چي منافقانو به علیه الصلوٰة والسلام ته وویل: اینما کنت اکن معک (هر چېري چي ته یې موږ درسره یو ستا سره) ولان خرجت خرجنا معک وان اقمت اقمنا معک وان امرتنا بالجهاد جاهدنا، قال الله تعالی ردًا لقولهم.

**پوه سه:** چي د قسم او یمین معنا یوه ده، نو بناء علی هذا جهد منصوب دی چي مفعول مطلق دی یعني مضاف دی و مصدر ته د اقسموا من غیر لفظه، والمعنی په نهایت ټینګ قسم سره او په مبالغه سره په قسم کي غرض ددوی انکار دی له امتناع څخه ستا له محکمي څخه.

قُل لَّا تُقْسِمُوا ۖ طَاعَةٌ مَّعْرُوفَةٌ ۚ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ

ته ورته ووایه چي قسمونه مه اخلئ یعني په دروا غو یعني ستاسي دا طاعت معلوم دی چي دا ستاسي د خولې خبري دي د اعتقاد خبري نه دي، او ورته خبري تاسي عرف کړ خپل دی چي په خوله وعدې راکوئ او په عمل کي یې نه پیاده کوئ (او بعض مفسرین وایي چي طاعة معروفة مبتداء ده خبر یې محذوف دی، والمعنی طاعة معروفة في الشرع وهي مایکون باللسان والجنان افضل من الخلف ای القول الکاذب، او بعض مفسرین وایي چي د آیت معنی داده المطلوب منکم طاعة معروفة لا الیمین بالطاعة نفاقًا) په تحقیق خدای ﷻ خبر دی په عمل ستاسي چي نفاق دی، نو کلمه د ما مصدریه ده او یا په هغه شي چي تاسي یې عمل کوئ، نو کلمه د ما موصوله ده او عائد یې محذوف دی.

قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ ۖ

ته ورته ووایه چي اطاعت کوئ د خدای ﷻ او اطاعت کوئ د رسول.

**پوه سه:** چي کلمه د قل یې مکرره کړه لپاره د تاکید د امر بالاطاعة یعني في الفرائض والسنن والجهاد في سبیل الله لرجاء رحمة الله تعالی.

فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُم مَّا حُمِّلْتُمْ

که تاسي ايها المنافقون اعراض وکړی له اطاعت څخه (وفيه التفات من الغيبة الى الخطاب معهم) يعني پر عليه الصلوة والسلام لازم تبليغ دی او پر تاسي هغه شی لازم دی چي پر تاسي خدای ﷻ لازم کړی دی من الامتثال.

**يوه سه:** چي تولوا صيغه د مضارع ده اصل يې تتولوا بصيغة الخطاب لكن يوه تايې څندي حذف کړه، فانما آه جزاء د شرط محذوف ده اقيم علته ماقامه، والتقدير فان تتولوا تخسروا انفسكم ولاتفرون الرسول شيئًا لانه عليه ای الرسول ماحمل عليه وقد ادى ما كان عليه من التبليغ على اتم وجه وعليكم ما حملتم، لكن تاسي اعراض کوئ د ما حمل عليكم من الاطاعة.

وَإِن تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا ۚ وَمَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ۝

(وان تطيعوه) عطف على ان تولوا يعني كه تاسي اطاعت وکړئ د رسول ﷺ في جميع امركم به (تهتدوا) جواب للشرط تاسي به لار پيدا کړئ و حق ته په دنيا کي او و جنت ته په آخرت کي. او نه دی لازم پر رسول باندي مگر نه تبليغ د اوامرو او منهياتو د خدای ﷻ چي هغه هم په ښه واضح دول وي.

**يوه سه:** چي دا جمله بيان دی د ما حمل على الرسول من جانب الله ﷻ.

**يوه سه:** چي حاكم په مستدرک او طبراني له ابي بن كعب ؓ څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام او اصحاب دده چي مديني منورې ته راغله او انصارو ځای ورکړی او فوق العادة کومک يې ورسره کاوه، نو كفارو د عربو ټولو په يوه خوله د انصارو ؓ په دښمني لاس پوري کړی او د هر طرف تهديد د حملې پر مدينه منوره د انصارو ؓ تر غوږو تېرېدې حتى چي اهل مدينه كه مهاجرين كه انصار وه د شپې او د ورځي مسلح بيدېدل او مسلح به گرځېدل، نو دوی په خپلو کي سره وويل چي داسي وخت به هم پر موږ راسي چي آمنين مطمئنين يو د شپې او د ورځي لانخاف الا الله. فنزلت هذه الآية.

وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ

وعده کړې ده خدای ﷻ د هغو کسانو سره چي ايمان يې راوړی وي د تاسي څخه يا اهل المدينة الذين هم مع رسول الله ﷺ من المهاجرين والانصار حين نزول الآية.

**درویش وایي:** چي ما دا قید ووایي حین نزول الآیة لپاره د دفع د یو سوال چي منږ هم به ویل چي مخاطب چي علیه الصلوة والسلام او من معه دي، نو قید د منکم مستدرک دی، ولي چي آمنوا له هغه ځخه اغناء راولي. حاصل د ځواب دادی چي مراد عامة المؤمنین نه دي بلکې هغه مؤمنان دي چي نزول الآیة په مدینه منوره کي موجود دي ولایفید ذالک الا قید منکم فتامل هداک الله لدقائق القرآن الکریم.

## وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ

او عمل د صالح کارو هم کوي، هر آئینه به خدای ﷻ تاسي خلیفه ګان وګرځوي په مځکه کي یعني خلافت او امارت د مځکي به وتاسي ته وسپاري، یعني دا خوف او ویره ستاسي به په امنیت او امارت دربدله کړي.

**بوه سه:** چي صالحات عام دي واجباتو سننو وغیرها ټولو ته شامل دي.

**بوه سه:** چي دا جواب د قسم محذوف دی. والتقدیر وعدالله واقسم ای والله لیستخلفنهم الله.

**سوال:** قسم د خدای ﷻ د کوم ځای ځخه فهمیږي؟

**ځواب:** وعده د خدای ﷻ په سبب د حتمي تحقق نازل منزلة القسم ده، والمعنی والحاصل للآیة لنورثنهم ارض الکفار من العرب والعجم فنجعلهم یعني نجعل منهم خلفاء ملوکا واجب الطاعة سیاسة، وفي الحدیث لیدخلن هذا الدین علی ما دخل علیه اللیل.

## كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ

صفت د مصدر محذوف دی ای استخلافا کاستخلاف الذین من قبلهم من الانبیاء لکه داؤد او سلیمان علیهما السلام، وهذا قول قتادة رح. یا لکه استخلاف د بني اسرائیلو په مصر او په شام کي چي جبابره خدای ﷻ هلاک کړه، واورثهم ارضهم ودیارهم واموالهم یعني کما کان وعد موسی علیه السلام في التوراة بفتح بلاد الشام، لکن دا وعده په حیات کي د موسی علیه السلام نه سوه پوره. ولي د تیه قصه په منځ کي ځلوېښت کاله حائل سوه وروسته تر وفات د موسی یوشع بن نون علیه السلام خدای ﷻ نبي کړی، نو دده په لاس فتح د شام وسوه او ښارونه د شام پر بني اسرائیلو باندي وه وېشل سول. داسي وعده خدای ﷻ د محمد ﷺ سره کړې ده کریمه: لیظهره علی الدین کله، ووعد بفتح الشام لکن دا وعده هم په حیوة کي د رسول الله ﷺ نه

سوه پوره بلکې فتح د شام په خلافت کې د عمر رضي الله عنه پوره سوه کما في کتب السير.

وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَىٰ لَهُمْ

او هرآئينه خدای جل جلاله به مقرر او ثابت وګرځوي دين ددوی په داسې دول چې عمل به تولو احکامو ته د دين کېږي بلا منازع، هغه دين چې خدای جل جلاله مختار کړی دی د دوی لپاره، ابن عباس رضي الله عنه په تفسير کې د تمکين داسې وايي يوسع لهم في البلاد حتى يملكوها ليظهر دينهم الاسلام على سائر الاديان آه، وقد انجز الله وعده.

وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِّن بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا ۚ يَعْبُدُونَنِي لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا

او خدای جل جلاله په بدل کړي يعني په زړو کې ددوی به پيدا کړي وروسته تردې چې دوی ببرېدل له کفارو څخه کمامر امنًا يعني د زړه داد او بېغمي، او زما عبادت به کوئ او نه په شريکوئ زما سره يعني په عبادت کې هيڅ شی نه بت او نه ملکه او نه ستوري او نه سمعه او ريا.

**پوه سه:** چې جمله د يعبدونني حال ده له من الذين آمنوا منكم څخه، فائده د حال داده چې وعد د نصر د خدای جل جلاله مقيد دی بالثبات على التوحيد، ابو العالية وايي چې خدای جل جلاله غالبه وګرځاوه نبيه محمد صلى الله عليه وسلم پر جزيره د عربو کاملًا. فآمنوا و وضعوا السلاح ثم قبض الله نبيه صلى الله عليه وسلم نو دوی داغسې په امن کې وه په خلافت کې د ابوبکر رضي الله عنه او په خلافت کې د عمر رضي الله عنه وفي اوائل خلافة عثمان رضي الله عنه و اول فتنة وقع في المسلمين واقعة قتل عثمان رضي الله عنه ثم وثم.

وَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿٥٥﴾

او څوک چې کافر سي يعني مرتد سي العياذ بالله او ناشکري د نعمت د امن او تمکين ونه کړي او تائيد د دين الذي ارتضى لهم له لاسه ورکړي، نو دغه کسان دي خارج له حدود څخه د ايمان او عن الطاعة قال البغوي رحمه الله قال اهل التفسير او من كفر بهذه النعمة (يعني الامن والتمكين في الارض) هغه کسان دي چې عثمان رضي الله عنه يې په شهادت ورساوه، فلما قتلوه غير الله مابهم من الامن وادخل عليهم الخوف حتى صاروا يقتتلون بعد ما كانوا اخوانًا، بغوي رحمه الله وايي فما قتل بني قط الا قتل به سبعون الفًا ولا خليفة المسلمين كعثمان رضي الله عنه الا قتل به خمسة وثلاثون الفًا.

**فائده:** وروسته د خلافت څخه د خلفاء راشدينو منکر سوه روافض او خوارج

وروسته تر ټولو يزيد بن معاويه حيث قتل ابن بنت رسول الله ﷺ يعني الحسين بن فاطمة رضي الله عنهما ومن معه من اهل بيت النبوة. او اهانت يزيد پليد وکړې د اولاد سره د عليه الصلوة والسلام او يزيد پليد به فخرًا ويله هذا يوم بيوم بدر او بيا يزيد پليد لښکر واستاوه و مدينې منورې ته چې د عليه الصلوة والسلام قيام ګاه ده حيًا وميتًا. نو په حره کې د مدينې منورې يې ډېر مسلمانان په قتل ورسول او د مسجد نبوي يې نهايته سپکاوی وکړې، او بيا يې لښکر واستاوه مکې مکرمې ته او په منجنيق يې مکه مکرمه درې ورې کړه، او عبدالله بن الزبير رضي الله عنه چې د ابوبکر الصديق رضي الله عنه لمسی د بي بي اسماء رضي الله عنها زوی ؤ د زمزم د ځاه پر غاړه يې حلال کړی وا باح الخمر حتی کفر يزيد بدين الله. قاله المظهري رحمه الله.

**درويش وايي:** چې علماء اختلاف لري بعض وايي چې پر يزيد لعنت نه دی روا، او بعض علماء توقف کوي، لکن د قوله د مظهري يعني قوله وکفر دا صراحةً معلومېږي چې پر يزيد پليد لعنت روا دی لانه کفر بدين الله. او علامه ثاني محقق تفتازاني په شرح العقائد کې وايي ونحن لانوقف في شانه بل في ايمانه فلعنة الله عليه واعوانه انتهی، راوي وايي چې عبدالله بن الزبير رضي الله عنه چې يزيد ذبح کاوه دده د مور اسماء رضي الله عنها عمر تخمينًا د سل (۱۰۰) کاله په شاوخوا کې ؤ. نو دا راغله پر لکړه يې تکيه کړې وه چې دد ې د زوی د وينو بوږ سو د مور يې شيدې ترتيو راتوی سوې او حيض هم ورغلی، نو دې وويل چې زويه هغه ځای چې ته اولاً پکښې پيدا سوی وې هغه دريسي وژړل او هغه تيو چې تا شيدې ځنې رودلې وې هغو هم دريسي وژړل زه نو نه دريسي ژاړم انا لله وانا اليه راجعون يې ووايه راهي سوه نعم الصبر لهذه المرئة.

وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٥٦﴾

او تاسي اقامت د لمانځه کوئ.

**بوه سه:** چې اقامة الصلوة په هر ځای کې د قرآن کريم چې راسي که په لفظ د مصدر وي او که په لفظ د فعل وي او که په لفظ د اسم فاعل وي معنی يې اداء د لمانځه ده په ټولو ارکانو او واجباتو او سننو او په خشوع او خضوع سره، په بل آيت مبارک کې چې راغلي دي ان الصلوة تنهی عن الفحشاء والمنکر هغه دغه کامل لمونځ دی. او ورکوئ زکوة د ټولو اموالو که نقود وي او که مواشي وي چې د نصاب او د شرائطو د وجوب بيان يې په کتابو کې د فقه شريف راغلی دی. او

اطاعت کوئ د رسول الله ﷺ في جميع ما يامركم به وينهاكم عنه، راجين ددې اوسئ چې پر تاسي به رحم وکړل سي د خدای ﷻ له جانبه څخه او يا لکی ترحمون.

**درویش وايي:** چې په عطف کې د اقيموا الصلوة آه عظيم اختلاف دی د مفسرينو، روح البيان وايي چې معطوف پر مقدر دی چې مقام يې تقاضٰی کوي ای فآمنوا وعملوا صالحًا واقيموا الصلوة الآية، او روح المعاني وايي چې زما په نېز چې مختاره دی هغه داده چې عطف پر مقدر ده چې نظام القرآن يې تقاضٰی کوي. ولي خدای ﷻ په دمخه آيت کې وويل ومن كفر بعد ذالك الآية فهم منه النهي عن الكفر فكانه قيل فلا تكفروا واقيموا الصلوة الخ. او مظهري رح وايي چې جمله واقيموا الصلوة سره د معطوفاتو عطف ده على قوله تعالى واطيعوا الله آه مع كثرة الفاصل بين المعطوفين فراجع الى التفسيرين ای روح المعاني والمظهري.

## لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا

ته گمان مه کوه يا محمد ؑ، او يا کل سامع پر هغو کسانو چې کفر يې مختاره کړی وي چې دوی دي خدای ﷻ عاجزه وکړ څوي له اهلاک څخه ددوی په مځکه کې.

**درویش وايي:** چې ابوجهل چې سره د زرو کسانو بدر ته ورغلی او په مقابل کې يې درې سوه دیارلس (۳۱۳) کسان مسلمانان د عليه الصلوة والسلام سره وليدل، نو ډېل فوج ته يې داسي امر صادر کړی خذوهم واحصروهم واربطوهم بالحبال ولا يقتل احد اسيره من المؤمنين الى آن آمرهم فيهم، نو له دې وينا څخه د فرعون الامة ابوجهل داسي فهمېده چې خدای عاجزه دی له اهلاک څخه زموږ په مځکه کې د بدر اخير الامر خدای ﷻ ډېل قدرت عظيمه و ابوجهل ته وروښو چې په شمول دده اوويا کسان پر ميدان د بدر قتل سوه او اوويا کسه اسيران سوه په لاسو کې د مسلمانانو راغله او بقيه لښکر د ابوجهل په تېښته ولاړل او په مسلمانانو کې په دې معركة صرف څورلس کسه شهيدان سول.

**پوه سه:** چې ابن عامر او حمزه له قراء سبعه وو څخه دا لفظ لايحسبن په ياء د غيبت وايي او الذين يې فاعل بولي، والمعنى لايحسبن الكافرون انفسهم معجزين آه، او نور قاريان يې لاتحسبن الذين په تاء يعني مخاطب وايي، والخطاب للنبي ﷺ. والذين كفروا مفعول اول دی او معجزين مفعول ثاني دی.

مُعۡجِزِيۡنَ فِي الۡاَرۡضِ ۚ وَمَاۡوٰىهُمُ النَّارُ ؕ وَلَبِئۡسَ الۡمَصِيۡرُ ۝

او ځای ددوی دوزخ دی، دا جمله حال د الذين څخه بد ځای دی د ورتګ اور یعني دوزخ.

**بوه سه:** چي لاتحسبن آه وعيد للكافرين متصل بقوله ومن كفر بعد ذالك آه.

**بوه سه:** چي ابن ابي حاتم د مقاتل بن حبان څخه روایت کړی دی چي د اسماء بنت مرثد يو مريی وُ چي د هر وخت به كور ته راتلی په داسي حال كي چي د دخول دده په داسي حالت د اسماء نه و خوښ مثلا بعض عورت اندامونه ددې به لڅ وه. نو دا ښځه و عليه الصلوة والسلام ته راغله او داسي يې ورته وويل ان خدمنا وغلماننا يدخلون علينا في وقت نكرهها فانزل الله هذه الآية الى اخيره، او بغوي رح وايي چي ابن عباس رض وايي چي عليه الصلوة والسلام يو هلک د انصارو څخه چي نوم يې مدلج وُ عمر بن الخطاب رض ته يې په وخت كي د غرمې وروواستاوه چي عمر رض راوبولي، نو مدلج چي د عمر رض په كور ورننوتی. عمر رض په مكروه حالت كي وليدی فانزل الله هذه الآية.

**درويش وايي:** ولامنافات بين الروايتين في شان نزول هذه الآية، ولي چي احتمالات موجود دي چي دغه دواړې واقعې يو د بل سره نژدې واقع سوي وي والله اعلم بالصواب.

**بوه سه:** چي احكام مذكوره په دې آيتو كي تتمه د احكامو سابقه وُ ده.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لِيَسۡتَاۡذِنۡكُمُ الَّذِيۡنَ مَلَكَتۡ اَيۡمَانُكُمۡ

والمراد بالخطاب الرجال والنساء معًا لكن تغليب يې وركړی و رجالو ته، ولي الذين آمنوا خطاب دی د رجالو، ای هغه كسانو چي ايمان يې راوړی دی (فائده: آمنوا چي يې ووايه اشاره وديې ته ده چي دا استيذان له احكامو څخه د ايمان دی) هر آئينه طلب د اذن دي كوي هغه كسان چي په ملک كي ستاسي دراسته لاسو وي يعني مريان كه د ښځو او كه د نرو.

**سوال:** د مريي ملک ته ملک يمين ولي وايي؟

**خواب:** په دې سبب چي په وخت كي د رانيولو د مريي يا د مينځي غالبًا مشتري قيمت د هغو په راسته لاس وركوي.

وَالَّذِيْنَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلٰثَ مَرّٰتٍ

او هغه هلکان چې احرار وي چې نه وي رسېدلي ودرجې ته د بلوغ معهود، درتې واره یعني په درې وختونو کې

**پوهه سه:** چې تعبیر د بلوغ څخه په حلم سره چې معنی یې احتلام دی له دې سببه دی چې احتلام اظهر له دلائلو څخه د بلوغ د نر دی. وبلوغ الغلام صیرورة الغلام بحال لو جامع انزل.

**پوهه سه:** چې مراهق چې بلوغ ته نژدې سي په حکم کې د بالغ دی.

مِنْ قَبْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَحِيْنَ تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ مِّنَ الظَّهِيْرَةِ وَمِنْۢ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ

د مخه تر لمانځه د سهار ولې چې دا وخت د دې دی چې خلک د خوبه راوینېږي او د خوب کالي کاږي او د بیدارۍ کالي اغوندي، او هغه وخت تاسي کاږۍ جامې خپلې چې د یقظه په حالت کې مو اغوستي وي د غرمې د خوب لپاره (من الظهیرة) بیان للحین.

**پوهه سه:** چې ظهیرة په لغت کې شدة الحر عند انتصاف النهار.

ثَلٰثُ عَوْرٰتٍ لَّكُمْ

برفع ثلث خبر د مبتدا، محذوفي دی یعني هي ثلث آه.

**پوهه سه:** چې اصل د عورت خلل ته وایي، اوبعض علماء وایي چې عورت مشتق له عار څخه دی اې پېغور. ځکه ښځي عورت بولي ولې د ښځي لڅوالی پېغور دی.

**مسئله:** مقتضی د دې آیت دا ده انه لایجوز لعبد ان کان صغیراً عاقلاً ان یدخل علی سیده بدون الاستیذان، ولا لامة ان تدخل علی سیدتها واما دخول العبد البالغ او المراهق علی سیدته فحرام في جمیع الاوقات. واما دخول الامة التي یجوز له چې سید ته یې وطی روا وي فیجوز دخولها في کل وقت کالزوجة ولایجوز لصغیر عاقل یعني په جماع پوهېږي ان یدخل في احد هذه الاوقات بغیر استیذان ویجوز لهم ان یدخلوا بغیر استیذان في غیر هذه الاوقات.

لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌ بَعْدَهُنَّ طَوَّافُونَ عَلَيْكُمْ

يعني ايها الذين تسكنون البيوت (اې هغه كسانو چي په كورو كي اوسېږي) او نه پر مملوكينو او پر اطفالو چي تاسي ته درځي د خدمت لپاره يا نحو ذالک ګناه او حرج پس له اوقات ثلثه ؤ څخه يعني په ترک کي د اذن غوښتلو لدفع الحرج عليهم و عليكم في الاستيذان منهم في كل دخول لمخالطتهم ډېر طواف کونکي دي پر تاسي يعني يدخلون ويخرجون كثيرا.

**پوه سه:** چي دا جمله بيان د مرخص ده في الدخول مع عدم الاستيذان.

بَعْضُكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ

يعني بعض ستاسي طائف دي على بعض او يطوف بعضكم على بعض، دا جمله بدل ده له جملې سابقې څخه وبيان له.

**فائده:** په دې آيت کي خداى ﷻ عبيد او اطفال من جنس انفسهم وبلل لكثرة مخالطتهم، نو دوى يې بعض د مخاطبينو وبلل.

كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٥٨﴾

بيانوي خداى پاک وتاسي ته آيات د احكامو د شريعت په قران كريم کي او خداى پاک ښه خبر دى په احوالو ستاسي او په هر حكم کي حكمت لري، بغوي وايي چي علماء په حكم کي ددې آيت اختلاف لري بعض علماء وايي چي دا آيت منسوخ دى قال ابن عباس ؓ چي په زمان قديم کي نه خلګو لره پر دې وي او نه دروازې وكان الولائد والخدم يدخلون بيوت الناس، نو ډېر وخت به د خلګو او د ښځو دا دخول او خروج نابره نه ؤ خوښ. نو خلګ مامور سول بالاستيذان في الاوقات الثلث المذكورة ثم بسط الله على الناس، نو پر دروازه يې پر دې واچولې چي په دې سره استيذان ته ضرورت نسته وذهب قوم الى انها غير منسوخة. له موسى بن عائشه څخه روايت دى چي ما له شعبي ؒ څخه پوښتنه وكړه ددې آيت په باره کي چي دا آيت منسوخ دى. قال لا والله قلت ان الناس لايعملون بها قال الله المستعان، وقال سعيد بن جبير ؒ ان الناس يقولون نسخت هذه الآية والله مانسخت لكنها مما تهاون به الناس لكن مظهري وايي چي صحيح داده چي دا آيت منسوخ نه دى لكن حكم په استيذان معلول په علت دى چي اختلال واقع کېږي

په تستر کي د عورات په دغو درو وختو کي كمايدل عليه قوله تالی ثلث عورات لكم او دغه خلل په تستر کي د عورات فارق دی په منځ کي د دغو دوو وختو او د نورو وختو في الاستيذان في الاول وعدم الحاجة الى الاستيذان في الناس.

**قانون اصول**: اهل اصول الفقه وايي چي عدم د حكم (چي عدم استيذان دی في غير هذه الاوقات الثلث) په تېرد عدم د علة (چي اختلال في الستتر په غير کي د دې درو اوقاتو) نسخ نه بولي.

**تفريع**: كه خلكو ته اختلال په تستر کي نه راتلی په دغو درو اوقاتو کي هم بيا په دغو درو اوقاتو کي هم استيذان ته ضرورت نشته مثلاً يو سړی د كور د باندې مهمان خانه وه چي چاته ممانعت نه ؤ او نه خلل په ستر کي ؤ نو استيذان ته هم ضرورت نشته والله اعلم.

وَإِذَا بَلَغَ الْأَطْفَالُ مِنكُمُ الْحُلُمَ فَلْيَسْتَأْذِنُوا كَمَا اسْتَأْذَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ

چي ټردې سي كوچنيان ستاسي و بلوغ ته، نو دوی به اجازه غواړي لكه چي اجازه غوښتل هغو كسانو چي تر دوی دمخه وه يعني في الاوقات كلها. ولي چي مبيح د دخول بغير الاستيذان وهو كثرة المخالطة په سبب د بلوغ زائل سو چي هغه مبيح طفوليت ؤ، اكثره مفسرين وايي چي حكم د دې آيت عام دی و هر هغه چاته چي دخول غواړي يا پر نرانو يا پر ښځو كه محرمات وي دا ښځي او كه اجنبيات وي (لكن په استيذان کي د محرماتو غاړي تازه كول يا ټخي كول هم كافي دی) او په اجنبيات صريح استيذان غواړي. په حديث شريف کي راغلي دي چي يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه چي زه د مور كور ته ورځم استيذان غواړي؟ فقال عليه السلام نعم. هغه سړي ورته وويل چي زه خو د مور سره په كور کي يم. فقال رسول الله ﷺ استاذن عليها. هغه سړي ورته وويل چي زه خو د مور خادم يم قال[۴] استاذن عليها اتحب ان تراها عريانة قال لا قال[۴] فاستاذن عليها (ولو بالتنح نح) له حذيفه[۵] څخه چا پوښتنه وكړه ايستاذن الرجل على امه؟ قال ان لم يفعل (يعني كه هميشه دخول بلا اذنه ؤ) رئ منها مايكره (يعني يو وخت به يې لڅه وويني)

**پوه سه**: چي امر بالاستيذان في هذه الآية للاستحباب. نو كه څوک خپل كور ته ورتلی او په كور کي خالص محرمات دده وي لكه مور، خور، خاله، عمه وغيرها يكره الدخول فيه من غير الاستيذان (يعني بوجه من الوجوه) لكن مكروه

تنزيهي دى. واما الدخول في بيت غيره من غير استيذان فحرام لايجوز لقوله تعالى: يا ايها الذين آمنوا لاتدخلوا بيوتا غير بيوتكم حتى تستانسوا. او دغه رنګه حرام دى دخول و هغه كور ته فيه نساء اجنبيات داسي اجنبيات چي نرو ته دخول نه وي روا بېله استيذان لقوله تعالى قل للمؤمنين يغضوا من ابصارهم.

**پوهسه:** چي دخول د مريي چي بالغ وي پر خپل مالکه ښځه بېله استيذان په نېز د مالک او شافعي رح روا دى بېله استيذان ولي دوى وايي چي مريى د مالکي ښځي محرم دى. نو استيذان يې صرف مستحب دى كما في المحرمات النسبية او په نېز د امام اعظم ابو حنيفة رح محرم يې نه دى نو پر مذهب دده استيذان واجب دى كمامر في سائر الاجنبيات.

**درويش وايي:** چي په زمانه کي د اصحاب کرامو رض عمومي استيذان په السلام عليكم هل لي في الدخول، نو که به د نعم جواب ورکړل سو داخل به سو. او که نه بيا به يې وويل السلام عليكم هل لي في الدخول وهكذا تر دري واره پوري كه به جواب د نعم ورته راغلی خوبښه که نه نو به تلی. او د پښتنو استيذان د دروازې په ټکولو سره دى تر هغه وخت يې ټکوي چي څوک له کوره ورته راووځي او جواب د لا يا نعم ورکوي.

**درويش وايي:** چي هغه خبره چي روح البيان کړې ده په حواله د تتمه چي دخول د عبد بالغ په غير کي د اوقات ثلثه روا ده بېله استيذان بالاجماع آه. دعوه د اجماع يې بې ځايه ده كمامر آنفا من اختلاف ابي حنيفة رح.

**فائده:** په عمومي مسلمانانو کي دا احکام نه دي جاري خصوصا په پښتنو کي. ولي يو ورور د بل ورور کور ته بېله استيذان ورځي اګرچه د ورور مايينه خو دده محرم نه ده او که په يوه کور کي دوه وروڼه سره اوسيږي هر ورور بېله استيذان کور ته دداخليږي بلکي د ورور زامن هم بېله استيذان داخليږي.

**پوښتنه:** دوى خو عمومي سراى ته بېله استيذان په غير کي د اوقات ثلثه ؤ داخليږي او په آيت کي خو د بيوت لفظ راغلى دى؟

**ځواب:** دغه مذکوره کسان خونو ته هم بېله استيذان ورځي.

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۵۹﴾

دغسي لکه تاسي چي واورېدى خداى ﷻ بيانوي خپل آيات دالة پر احکامو

شرعیه وو او خدای ﷻ خبر دی په ټولو احوالو او په هر کار کي حکمت لري.

**پوه سه**: چي والله علیم حکیم یې مکرر راوړی د مبالغه په امر کي د استیذان.

**فائده**: علامه د بلوغ د صغیر یوه داده چي ماینه لري ځندي امیدواره سي. او بله داده چي په خوب کي احتلام ورپیښ سي او یا ذکر په لاس کي مږي انزال سي. او د صغیره نجلی بلوغ په احتلام او انزال سره هم دی او په حیض او حمل سره هم دی. او که دا علامې هیڅ نه سوي پیدا نو بلوغ د نر پر پنځلس (۱۵) کاله سره دی او د ښځي دا په دوولس (۱۲) کاله سره. او روح البیان د دواړو ته په پنځلس کاله سره بللی دی وقال وبه یفتی. والتفصیل في کتب الفقه الشریف.

## وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ الّٰتِیْ لَا یَرْجُوْنَ نِکَاحًا

والقواعد مبتداء ده. من النساء حال دی له ضمیر ځخه د قواعد.

**پوه سه**: چي قواعد که څه هم جمع مؤنث ده لکه ضوارب جمع ضاربة لکن دلته یې مفرد قاعد دی ولي دا صفت خاصه د ښځي دی نو تاء د تانیث ته حاجت نه لري لکه حیض او حمل چي صفت خاصه د ښځي دی. نو مفرد د حوائض حائض او د حوامل حامل بلا تاء التانیث. په قاموس کي وایي القاعد المرئة التي قعدت عن الولد والحیض وعن الزوج چي په پښتو یې سپین سرې ښځه بولي (التي لایرجون نکاحًا) صفت د قواعد دی یعني طمع د نکاح نه لري په سبب د کبرسن. ربیعه رح وایي چي مراد هغه سپین سرې دي چي نر یې وویني بد یې ځندي راځي او که چیري دا سې سپین سرې وه چي په ځان یې ګوته وهل یعني لاسونه یې سره کول او سپین سر یې په نکرزو یا په تور رنګ واهه او مخ یې غوړاوه هغه په دې ایت کي نه دي داخلي.

## فَلَیْسَ عَلَیْهِنَّ جُنَاحٌ اَنْ یَّضَعْنَ ثِیَابَهُنَّ

پر دوی نسته ګناه (خبر د مبتداء دی او کلمة د فاء یې ورسره راوړه لتضمن المبتداء معنی الشرط کما هو القانون النحوي) چي دوی ایږدي او کاږي خپل کالي.

**پوه سه**: چي مراد د کالو ځخه بعض کالي دي کما یدل علیه قرائة ابن مسعود وابی بن کعب ان یضعن من ثیابهن. یعني من تبعیضي یې راوړی فلا یجوز لهن کشف بطنها وظهرها وماتحت سرتها. او تر نامه لاندي دمخ خوا او د شا خوا. لکن مخ لڅېدل او سر لڅېدل او بازو ګلان لڅېدل ورته روا دی. دغه رنګه د پښو

لخپل او د ماتحت الرکبة لخپل ورته روا دی.

**غَيْرَ مُتَبَرِّجٰتٍۢ بِزِيْنَةٍ**

**یوه سه:** چي اصل معنی د تبرج الظهور دہ لکن په استعمال کي دي ته وايي چي ښځه زينت او جمال خپل و خلکو ته ورښيي. وفي الحديث يکره عشر خلال منها التبرج بالزينة لغير محلها (لس خويونه مکروه دي د هغه ښځه يو ښکاره کول دي د زينت ده خپل محل ځخه پرته). هغه نور نهه خويونه د اختصار له کبله متلوي سوه، صاحب الهداية وايي چي تبرج اظهار الزينة دی په ښځه کي و بېګانه خلکو ته وهو المذموم. واما للزوج فلا. وهو معنی قوله عليه السلام لغير محلها (يعني محل د زينت مېړه دی).

**یوه سه:** چي غير متبرجات حال دی د فاعل ځخه د يضعن. نو دا قيد دی د عدم الحرج في وضع ثياب العجائز يعني يکون وضع الثياب للعجوزات لغير اظهار الزينة للرجال. نو د هغه سپين سري که يې غرض په وضع کي د ثياب اظهار د خپل زينت وي فذالک الوضع حرام عليها.

**فائده:** قلعه (يعني کلا) ته هم برج په دغه معنی د ظهور وايي. او د وولسو بروجو ته چي بروج وايي لانها محال ظهور الکواکب السبع السيارة و الکواکب الثوابت.

**فائده:** تبرج باب د تفعل دی چي په شافيه کي وايي چي يوه فائده د باب د تفعل داده چي تکلف دی په مجرد کي لکه تزهد فلان يعني په ډېر تکلف يې ځان زاهد کړی او طالبانو ز دکړي ته تعلم وايي لانه لابد في طلبه وتحصيله من التکلف. دلته چي يې دا لفظ راوړی دی لپاره چي سپين سري ښځي خو محل د زينت نه دي لکن دا په ځان کوته وهي او ځان په تکلف سره ښائسته کوي کمامر من قبل فافهم.

**وَ اَنْ يَّسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَّهُنَّ ؕ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝**

چي دوی له ځان ځخه طلب د عفت وکړی يعني الکف عما لايليق ولايحل لهن والمراد چي وضع د جامو دي نه کوي عند الرجال خير (لهن) يعني تر وضع الثياب لانه قد يفضي الی الفتنة والتستر ابعد من التهمة. او خدای جل جلاله اورېدونکی دی د دوی د خبرو د نرو سره او خبر دی په مقصد د دوی في وضع الثياب.

**یوه سه:** چي د دې آيت معنی هغه قول د علما، ربانيون دی التقوی فوق امر الفتوی. وايضا ورد في الحديث الصحيح لايبلغ العبد انيکون من المتقين حتی

يدع مالس به (يعني في امر الفتوى) حذرًا مما به باس (يعني في امر التقوى) له ابن سيرين رئيس المعبرين رح څخه روايت دی چې ما وطي نه دي كړي قط (هيڅ كله) نه په ويښه او نه په خوب كې غير ام عبدالله چې دده ماينه وه، دی وايي چې زه په خوب كې يوه پېګانه ښځه وينم او زه پوه سم چې دا خو ماته نه ده روا نو ستركي څنډي وا روم، يو بل عالم وايي: ليت عقلي في اليقضة (يعني چې په ويښه د نامحرمي ښځې څخه مخ وا روم) لكه حال د ابن سيرين رح په خوب كې.

**حكايت**: د يو سړي سپين سړې مور ناجوړې وه، نو يو طبيب ته يې وروستل د علاج لپاره، طبيب چې ددې و جوړ كړې هيئت ته او د زينت و كالو ته او عطر لګولو ته فكر وواهه، نو وه يې ويل چې دا ښځه ډېره محتاجه ده و مېړه ده، د سپين سري زوی وويل چې سپين سري ښځې مېړه څه كوي، مور يې ورته وويل ويحك انت اعلم ام الطبيب (خوار سې ته پوهېږې كه طبيب) ښځې كه زوړ مېړه درلودی چې عضو تناسل يې مراوی ؤ د هغه سره يې وطي زړه نه غواړي بلكې د ځوان سره يې وطي زړه غواړي.

لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ

چې فاقد البصر وي (بالفارسية نابينا، يعني نسته پر رانده ګناه) او نه پر ګوډ يا چې زنګون يې درد كوي و ډوډی ته سم نسي كښېنستلای، او نه پر مريض وبال سته، والمرض خروج د بدن دی له اعتدال خاص څخه وله اقسام شتی كما هو ظاهر.

**شان نزول**: دغو درو ډلو نه وه خوښه چې د جوړانو خلكو پر يوه ستر خوان يا كاسه ډوډی وخوري، ولې روند خو لوی لوی ګولې كوي او كاهي د كاسې له يوه جانبه ډېل جانب ته لاس غځوي او دی په ځان نه پوهېږي، او اعرج چې سم نسي كښېنستلای د دوو كسو ځای نسي، او د مريض به شايد بد بوی ولاړيږي يا به يې پزه بهېږي ونحو ذالك چې د كاسې او ستر خوان سړي ته تكليف رسېږي، نو دا آيت مذكوره نازل سو.

وَلَا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ أَن تَأْكُلُوا مِن بُيُوتِكُمْ

او نسته پر تاسي حرج چې تاسي خوراک وكړئ په كورو كې خپل (نو كلمه د من جاره په معنی د فاء جاره ده)

**پوه سه**: چې مراد له بيوتكم څخه هغه كور نه دی چې په هغو كورو كې ستاسي زوجات او عيال موجود وي.

**فائده:** په بيوتكم كي بيوت د اولاد هم داخل دي لان بيت الولد كبيته، په حديث صحيح كي راغلي دي انت ومالك لابيك اخرج هذا الحديث اصحاب ستة الصحاح والحاكم عن عائشة رض وقال رسول الله ﷺ ان اطيب ما ياكل الرجل من كسبه وان ولده من كسبه رواه الترمذي وابو داؤد والدارمي من حديث عائشة رض.

**اَوْ بُيُوْتِ اٰبَآئِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اُمَّهٰتِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اِخْوَانِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اَخَوٰتِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اَعْمَامِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ عَمّٰتِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اَخْوَالِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ خٰلٰتِكُمْ اَوْ مَا مَلَكْتُمْ مَّفَاتِحَهٗٓ اَوْ صَدِيْقِكُمْ ؕ**

**درويش وايي:** چي د ټولو كلماتو ددې آيت تفسير ظاهر دی مگر اخيري عبارت ابن عباس رض وايي مراد خندي وكيل د سړي او ناظر يې دی په مځكه كي او په ماشيه حيواناتو كي. نو ده ته حرج نشته چي خورک وكړي يعني وكيل او قيم او ناظر له مېوې څخه د باغ يا له شيدو څخه د مېږو او بزو لكن ورسره وړي به يې نه او نه به يې ذخيره كوي، او ضحاک رح وايي چي مراد بيوت د مريانو دي وذالک لان السيد يملک منزل عبده، (او صديقكم) يعني بيوت صديقكم.

**پوه سه:** چي مفاتح خزانو ته وايي كما في قوله تعالى وعنده مفاتح الغيب (اى خزائنه) لايعلمها الا هو. عكرمه رح وايي چي كه څوک كيلي د باغ و چا ته وركړه فهو خازن فلاباس ان ياكل الشئ اليسير. يعني چي كور ته يې نه يوسي او د بل وخت ذخيره يې نه وگرځوي.

**پوه سه:** چي صديق هغه اشناى ته وايي چي په اشنايي كي صادق وي، ولي چي د داسي اشنايانو تر منځ تبسط في اموالهم سته.

**فائده:** صديق يوه او جمع دواړو ته ويل كيږي كالخليط. او بغوي رح وايي قال ابن عباس رض چي دا آيت نازل سوی دی په حارث بن عمرو كي چي دی غزاء ته ولاړی سره د رسول الله ﷺ او مالک بن زيد چي د ضعفاؤ څخه ؤ پر خپل كور يې خلف پرېښو، نو غازي حارث بن عمرو رض چي له غزا. څخه راغلی مالک بن زيد رض ډېر په جهد او په لوږه كي وليدی، نو غازي ورته وويل چي زما د كوره به دي څه دی خوړلي، مالک بن زيد رض ورته وويل چي ما حرج كاوه او گناه مي بلل چي بېله اجازي ستا له كوره خوراک وكړم، فانزل الله تعالى هذه الآية. قال البغوي رح چي حسن او

قتاده رحمه الله دخول د بیت الصدیق والتمتع بطعامه من غیر استیذان منه (ای الصدیق) في الاكل د دغه آیت په سبب روا بولي ومعنی الآیة من اوله الی صدیقکم پوري داده چي نشته حرج پر تاسي چي له کورو څخه د دغو مذکوره کسانو اذا دخلتموها خورک وکړئ که څه هم دوی نه وي حاضر په کور کي مګر طعام به در سره وړئ نه.

**پوه سه:** چي بعض علماء وايي چي دا حکم په اول کي د اسلام ؤ بيا منسوخ سو. لکن صحیح داده چي منسوخ نه دی لکن محمول پر دې دی چي خورک کونکی د دغو کسانو له کورو څخه پر دې باور ؤ چي صاحب البيت په دغه خوراک راضي دی یا په اذن صریح سره یا قرینه سره ولذالک خصص المذکورین في الآیة بالذکر فانه یعتاد التبسط بین هؤلاء، نو تخصیص د دغو کسانو جاري مجری العادة دی ورنه که څوک د اجنبي کور ته ورسي او په دې پوهيږي چي صاحب البيت راضي دی په اکل د طعام دده باذن صریح یا دلالةً ده ته روا دی.

**مسئلة فقيهة:** په دې آیت سره احناف دلیل وايي يعني چي عادت جاري دی په انسباط سره بین المحارم کما هو مدلول هذه الآیة چي قطع الید پر هغه چا چي غلا وکړي د ذی رحم له کور څخه خواه هغه مال مسروق ملک د ذی رحم وي او که مال د بل چا وي د ذی رحم محرم په کور کي پروت وي لان الحدود یندرء بالشبهات وهذه الآیة تورث شبهة کما لایخفی.

**سوال:** پر دې تقدیر باید قطع الید نسي لازم پر هغه چا چي د صدیق له کوره غلا وکړي لان الصدیق مذکورة في هذه الآیة ایضًا؟

**ځواب:** صداقت او اشنايي خو عارضي شی دی ګاهي وي ګاهي نه وي بخلاف القرابة النسبية. او بل جواب دا دی چي غله چي د صدیق له کوره غلا وکړه صداقت يې په عداوت بدل سو. بغوي رحمه الله ويلي دي چي عطاء الخراساني رحمه الله وايي چي غني سړی ورغلی د ذی قرابت او صداقت وکور ته او هغه ته يې دعوت ورکړی نو هغه فقیر چي يې کورته راوستی غني به ورته وویل چي ته ځپله ډوډی خوره زه حرج او ګناه بولم چي ستا سره زه ډوډی وخورم، ولي زه غني یم ته فقیر یې فنزلت هذه الآیة.

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَاْكُلُوْا جَمِيْعًا اَوْ اَشْتَاتًا

نشته پر تاسي ګناه او حرج چي ډوډی خورئ يا په جمع واريُ يا جلا جلا او په بعض رواياتو شان نزول ددې آیت داسي بیان کړل سوی دی چي بني لیث بني بکر چي

يو قوم وُ د كنانه د لوى قوم څخه، چي د دوى عادت دا وُ چي ډوډۍ يې يواځې نه خوړل يعني د ومره مهمان فرست قوم وُ نو ګاهي به داسي پيښه سوه چي ډوډۍ به مخ ته پرته وه د سهار څخه تر ماښامه پوري نو تر ماښامه چي به مېلمه نه سو پيدا چي دده سره ډوډۍ وخوري، نو ماښام به يې ډوډۍ يوازي وخوړل، وهذا قول قتادة والضحاك وابن جريج رحمهم الله ، او ابن جرير د عكرمه او ابى صالح څخه روايت كوي چي دا آيت په انصارو كي د مدينې منورې نازل دى چي دوى ته به مېلمه راغلى دوى ډوډۍ نه خوړل تر هغو چي مېلمه نه واى ورسره خوړلې يعني كه څه هم به مېلمه بل ځاى ډوډۍ خوړلې واى فنزل الرخصة لهم ان ياكلوا كيف شاؤا جميعًا او اشتاتًا.

**فائده:** په باب كي د صداقت له حسن بصري رح څخه روايت دى چي يو وخت دى كور ته ورغلى يو ډله دده د اصدقاؤ څخه ناسته وه چي دده تر چارپايي لاندي طعام پروت وُ هغو بلا اجازه راخستى وُ خوړى يې، نو د حسن رح مخ له خوشاليه ويرېښېدى وقال هكذا وجدنا من لقى من البدريين رض. حسين كاشفي ميګويد كه فتح موصلي رح درخانه دوستى آمد ودوست درخانه موجود نبود از جاريه او كيسه دراهم را طلبيد جاريه كيسه بر آورد وفتح موصلي از آن كيسه چند درهم كه ضرورت داشت ګرفت وكيسه پس بجاريه داد، وچون خواجه (يعني مالک خانه) بخانه رسيد وصورت حال زجاريه بشنيد درشكرانه آن انبساط و دوستى فتح موصلي ودادن جاريه كيسه را آن كنيزک را ازاد كرد وبنواخت انتهى.

درويش ميګويد كه اين است حقيقت دوستى وصداقت ودرنګارستان كه نام كتاب است آورده:

شبى ګفتم نهان فرسوده را ...... كه بود آسوده در كنج رباطى
زلذتها چه خوشتر درجهان ګفت ...... ميان دوستداران انبساطى

ديګر شاعرى ګفته:

ياران بجان مضايقه باهم نميكنند ...... آخر كسى بحال جدائى چرا كند
بسيار جد وجهد ببايد كه تا كسى ...... خودرا بآدمى صفتى آشنا كند

اين بود چند جمله معترضه كه دربيان حقيقت صديقيت دربيان آمده وپس بتفسير قرآن كريم رو مى آورم.

**فَإِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ مُبَٰرَكَةً طَيِّبَةً**

چي داخل سئ تاسي کورو ته. بعض مفسرین وايي چي معنی د آیت دا ده اذا دخلتم بیوتًا لکم چي کور والا نه وه یعني مثلاً د پلار کره تللي وه، نو پر ځانو سلام وواياست. یعني قولوا السلام علینا وعلی عباد الله الصالحین فان الملائکة ترد علیهم. او بعض مفسرین وايي چي يو وبل ته دي سلام ووايي.

**پوښتنه**: په قرآن کریم کي خو انفسکم راغلی دی. نو بل سړی خو د سړي نفس نه دی؟

**ځواب**: د نفس اطلاق پر جماعت چي په دین کي یو وي هم کېږي یا په قرابت کي یو وي هم کېږي. قال الله تعالی لاتخرجوا انفسکم من دیارکم (یعني قریبان او عزیزان له کورو څخه مه باسئ) وقال عز من قائل: لاتلمزوا انفسکم (عیب مه وایاست پر خپلو ځانو یعني د خپل دین پر شریکانو یا د قرابت پر شریکانو الی غیر ذالک من الآیات الکریمات)

**بوه سه**: چي تحیة مصدر دی غیر لفظ تسلموا فان التحیة هو التسلیم (لکه قعدت جلوسًا) بخاري او مسلم له ابی هریرهؓ روایت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ خلق الله تعالی آدم علی صورته (ای الصورة المختار له تعالی فالاضافة الی الضمیر تشریف المضاف) طوله (۶۰) زراعًا فلما خلقه (ای نفخ فیه الروح) فقال اذهب الی هؤلاء الملائکة جلوس فسلم فاستمع مایحیوک فانها تحیتک وتحیة ذریتک فقال ای ادم السلام علیکم فقالوا السلام علیک ورحمة الله ای زادوا ورحمة الله.

**درویش وايي**: چي دا حدیث ما دد ي لپاره راوړی چي تحیه او سلام سره یو دي فافهم.

(من عند الله) ای کائنة من عنده تعالی مشروعة من لدنه (مبارکة) یعني مقرونة بذکر البرکة وهي الزیادة في الخیرات فیقول السلام علیکم فیقول السلام علیکم والبرکة. بعض علماء وايي چي خدای ﷻ تحیة د سلام توصیف په برکت سره وکړی ولي چي امید ستهء د زیادت د خیرات او ثواب به وګرځي (طیبة) پاک له ریا، څخه ولا نفاق فیها صادرة من طیب النفس وقیل تطیب نفس د اورېدونکي یعني په خوشاله کېږي. له انسؓ خادم رسو الله ﷺ څخه روایت دی چي ته ملاتي سي د یوه سره د امت زما فسلم علیه یطل عمرک واذا دخلت بیتک فسلم علیهم ای من کان من الرجال والنساء حتی زوجته یکثر خیر بیتک وصل صلوة الضحی فانها صلوة الاوابین ای الرجاعین الی الله تعالی.

**درویش وايي:** چي سلام و ماینې ته په ښځتنو کي بې ناروا والي ناروا دی، بلکي چي مېړه راسي ماینه یې ناسته وي ماینه به ولاړېږي مېړه ته به سلام وايي.
ابن عباس رض وايي چي مسجد ته داخل سئ فقل السلام علینا وعلی عباده الصالحین یعني چي څوک په مسجد کي نه وي، او که په مسجد کي خلک وه په خبرو سره اخته وه بیا دي السلام علیکم ووايي.

**مسئله:** که په مسجد کي خلکو لمونځ یا ذکر یا تعلیم او تعلم کاوه فلا یسلم لانهم مشغولون بالعبادة، کریمه: واذا حییتم بتحیة فحیوا باحسن منها او ردوها چي تاسي ته تحیة یعني السلام ووېل نو تاسي جواب ورکوئ په ښه تحیه سره او یا ردوئ په هغه قدر چي سلام والا درته ویلي وي یعني وعلیکم السلام. په صحیح حدیث کي راغلي دي چي یو صحابي رض راغلی و رسول الله ﷺ ته یې داسي تحیه ووېل السلام علیکم. علیه الصلوة والسلام ورته ووېل وعلیکم السلام ورحمة الله (دا یو رد دی بالاحسن) بل سړی راغلی علیه الصلوة والسلام نه یې داسي تحیه پېش کړه السلام علیکم ورحمة الله. علیه الصلوة والسلام ورته ووېل وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته (دا بل رد دی په احسن سره) درېیم سړی چي په دمخه دوه جواب کي د علیه الصلوة والسلام حاضر ؤ ولاړ سو بیرته راغلی و علیه الصلوة والسلام ته یې داسي تحیه پېش کړه السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته، علیه الصلوة والسلام ورته ووېل وعلیکم السلام (دا رد بالمثل دی) هغه درېیم سړي ورته ووېل نقصتني من حصتي زما حق دي راکم کړی؟ علیه الصلوة والسلام ورته ووېل چي تا ماته شی پرې نه ښو چي زه یې درزیات کړم، نو ځکه مي رد بالمثل وکړی.

**مسئله:** سلام اچول سنت دی او جواب ورکول یې واجب دی.

**مسئله:** سلام اچول یا ردول سنت یا واجب کفایي دی مثلاً یو جماعت د خلکو راروان ؤ نور خلک ناست وه یوه ووېل السلام علیکم. د ګردو د سنت السلام اجراء وسول، او که په ناستو خلکو کي و علیکم السلام یوه ورته ووایه د واجب الرد مجرا ورکړه سوه.

**سوال:** څوک چي و چاته سلام ووايي جواب ورکونکی ورته ووايي وعلیکم السلام، دا واو عاطفه پر کوم ځای عطف دی؟

**ځواب:** پر مقدر و المعنی عليّ وعلیکم السلام، نو ځکه کافر چي د سړي ته

لکه منافقینو چي به علیه الصلوة والسلام ته ژوولی سلام داسي السام علیک (د سام معنا مرگ دی) په جواب کي به يې صرف علیکم وایي، اله عبدالله بن عمر رض څخه روایت دی چي د علیه الصلوة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه ای الاسلام خیر (یعني ای افعال الاسلام خیر) علیه الصلوة والسلام وفرمایل تطعم الطعام (یعني مهمان یا مسکین ته ډوډۍ ورکوه وتقرئ السلام علی من عرفت او لم تعرف متفق علیه. وعن ابي هریرة رض قال قال رسول الله ﷺ للمؤمن علی المؤمن ست خصال (ای حقوق) (۱) یعوده اذا مرض (۲) ویشهده (ای جنازته) اذا مات (۳) ویجیبه (یعني قبلونه دده د عوت یعني د میلمستیا دي کوي) اذا دعاه (۴) ویسلمه اذا لقیه (۵) ویشمته اذا عطس (او یرحمک الله دي ورته وایي چي هغه ونړي) (۶) وینصح (خیرخواهي دي کوي د مسلمان اذا حاب او شهد) رواه النسائي وروی الترمذي والبزار نحوه. وعن ابي هریرة رض مرفوعًا یسلم الراکب علی الماشي والماشي علی القاعد والقلیل علی الکثیر ویسلم الصغیر (یعني کشر سړی) علی الکبیر (پر مشر سړي) متفق علیه الا ان الجزء الآخیر منه رواه البخاري فقط. وعن ابي امامة رض مرفوعًا اولی الناس من بدء بالسلام.

**درویش وایي**: چي و مسائل السلام کثیرة.

كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٦١﴾

داغسي خدای ﷻ بیانوي وتاسي ته آیات قرآنیه چي مشتمل پر احکامو د دین وي.

**پوه سه**: چي دا آیت دري واره مکرر راوړی دی لپاره د مزید تاکید او لپاره د تفخیم د احکام چي مختص وه په تفخیم پوري، په اول دوه واره کي هغه څه وویل چي مقتضی وه د تفخیم وهو علم الله وحکمته او دا اوس راوړه په مقصود سره ختم کړی فقال (لعلکم تعقلون) شاید تاسي به حق او خیر في الامور زده کړئ.

**درویش وایي**: چي ابن اسحاق او البیهقي في الدلائل کي د عروة بن کعب القرضي رض روایت کړی دی چي قریش په کال د احزاب (پوه سه: چي پوره بیان د غزوة الاحزاب سره د مکمل تفسیره به په یوویشت جزء سورة الاحزاب کي راسي ان شاء الله تعالی منتظر اوسئ) نو دوی واړول په مجمع الاسیال کي (چي د یوې شلې نوم دی) من رومة بئر بالمدینة چي مشري او قیادت ددوی د ابو سفیان پر

غاړه ؤ، او د غطفان د قبیلې کافرانو په نقیبین کې (چې د یو ځای نوم دی) الی جانب احد او ؤ علیه الصلوة والسلام ته ددې احزابو د راتلو خبر ورسېدی، نو امر د خندق یې وکړی. نژدې و مدینې ته او علیه الصلوة والسلام په خپل نفس نفیس سره په خندق کې کار کاوه او مسلمانانو هم کار کاوه په کولنګانو او بېلچو وغیرها. او بعض کسانو د منافقانو ځانونه له کارو ځخه د خندق د کیندلو وسپمول او ګاهې چې به حاضر سول په یو لږ ضعیف کار به یې عمل وکړی او بیر ته به په پټه بېعلم د رسول الله ﷺ خپلو کورو ته ولاړل او د علیه الصلوة والسلام ځخه یې د تګ اجازه نه غوښتل او یو مسلمان که به یو ضروري حاجت چې لابد منه به ؤ د کور د تګ به ورپېښ سو، نو اجازه د کور تلو به یې ځندي وغوښتل او د بیرته د راتلو وعده به یې ورکړه او علیه الصلوة والسلام به اجازه ورکړه کما سیناتي في کل ذالک في سورة الاحزاب بالتفصیل التام، نو خدای ﷻ دا ورو ستهٔ آیتونه تر اخیره پورې د سورت نازل کړه.

**اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاِذَا كَانُوْا مَعَهٗ عَلٰۤى اَمْرٍ جَامِعٍ**

نه دي مؤمنان کامل الایمان مګر هغه کسان دي چې ایمان یې راوړی وي پر خدای ﷻ او پر رسول د خدای ﷻ د صمیم القلب ځخه او د محکمه عقیدې سره، یعني نه هغه کسان په خوله وایي آمنا ولم تؤمن قلوبهم وهم المنافقون. او چې وي د علیه الصلوة والسلام سره پر یو کار جامع (پوه سه! چې توصیف د امر په جامع سره مجاز دی للمبالغة. والمراد علی امر یقتضی ان یجمع الناس لذالک الامر کحفر الخندق فیما نحن فیه) ونحو ذالک کالجمعة والاعیاد.

**لَمْ يَذْهَبُوْا حَتّٰى يَسْتَاْذِنُوْهُ ؕ**

دوی نه سره متفرق کېږي او نه چې د هغه کار ځخه چې دوی پر غونډ سوي وه، تر هغه وخته چې اجازه به د رسول الله ﷺ ځخه غواړي او علیه الصلوة والسلام به هم اجازه ورکوي.

**پوه سه:** چې ودې ته ضرورت نسته لکه چې بعض مفسرینو ویلي دي چې مراد د مؤمنینو ځخه کامل مؤمنان دي لانه حکایة عن حال الموحدین من المؤمنین، ذالک الوقت ای وقت حفر الخندق وقد کانوا کلهم کاملین في الایمان وکان

شانهم ذالک ای لم یذهبوا الخ دون المنافقین کمامر عنقریب.

**پوه سه:** چي عدم التخلف د رسول الله ﷺ په مواضع د شدت دلیل واضح دي پر ایمان کامل ددوی، بیرته په وروسته آیت خدای ﷻ ددوی صدق ایمان پر وجد ابلغ راوګرځاوه وقال:

إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ

په تحقیق (یوه ابلغه وجه) هغه کسان چي ستا څخه اجازه غواړي (یعني لاجل ضرورة لابد منه) هم دغه کسان هغه دي چي ایمان یې پر خدای ﷻ او پر رسول د خدای سته، اولئک آه دویم مبالغه په ایمان کي ددوی کما لایخفی علی مزاول کتب النحو والمعاني.

فَإِذَا اسْتَأْذَنُوكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ فَأْذَن لِّمَن شِئْتَ مِنْهُمْ

نو چي دوی اجازه وغواړي ستا څخه لپاره د بعض ضروري کار چي دوی یې مجبوره کړي وه وتلو ته.

**فائده:** بعض چي وایي اشاره ودې ته ده چي په ټولو کارو کي که ضروري وي که معمولي کار وي دوی باید اجازه ستا څخه وغواړي، نو په دې سره یې دائره د انصراف پر مسلمانانو تنګه کړه (فاذن آه) جواب د شرط دی نو ته اجازه ورکړه وهغه چا ته چي ستا خوښه وي.

**پوه سه:** چي اجازه ورکول یې مفوض کړه و مشیت ته د علیه الصلوة والسلام اشاره ودې ته ده چي امر د فاء ذن لپاره د اباحت دی ولیس للوجوب یعني چي حتماً به علیه الصلوة والسلام اجازه ورکوي. ولي که اجازه ورکول بعد الاستیذان واجب وای پر علیه الصلوة والسلام بطل فائدة الاستیذان لانه لایعجز احد من الاستیذان، وفیه دلیل علی ان بعض الاحکام کان مفوضاً الی رایه ﷺ وکذا الی رائ الامام وخلیفة المؤمنینؤ، وروسته تر علیه الصلوة والسلام.

وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٦٢﴾

او ته طلب د بخښني وکړه ددوی لپاره د خدای ﷻ څخه (یعني وروسته تر اذن فان الاستیذان ولو بعذر قصور منهم لان فیه تقدیم لامر الدنیا ولي چي استیذان خو د دنیاوي کارو لپاره دی او ثبات امر د دین دی پر هغه ده مقدم کړی فافهم) په

تحقیق خدای ﷻ بخښونکی دی د تقصیراتو د مسلمانانو، او رحیم دی چي پر دوی اساني جوړوي، وقال البغوي رح قال المفسرون في سبب نزول هذه الآية كان رسول الله ﷺ اذا صعد المنبر يوم الجمعة واراد احد ان يخرج من المسجد لحاجة او عذر لم يخرج حتى چي مخامخ به عليه الصلوة والسلام ته ودريدی چي عليه الصلوة والسلام به هم وليدی، نو عليه الصلوة والسلام به په دې پوه سو چي دا سړی اجازه د تلو غواړي، نو به يې اجازه ورکړه لمن شاء لكن اجازه به يې په اشاره د لاس ورکړه لا بالقول، قال اهل العلم وكذالك كل امر اجتمع عليه المسلمون مع الامام لا يخالفونه ولا يرجعون عنه الا باذنه او چي دوی اجازه وغواړي بيا هم د امام خوښه ده که اجازه ورکوي او که نه.

**مسئله**: د اجازې غوښتل هلته غواړي چي د سړي پاته والی په مسجد کي امکان نه لري يعني سخت مجبور وي چي نور نسي کښېنستلای په مسجد کي، مثلاً ښځه د جمعې د لمانځه لپاره راغلې وه حيض ورغلی، يا سړی په مسجد کي ناست ؤ داسي بولو ونيوی چي پر دې ويريدی چي په مسجد کي به بولي راڅخه توی سي، يا غائط غلبه پروکړه الی غير ذالک من الاعذار فلاحاجة الى الاستيذان من الامام لان الله تعالى يعلم حاله فله اجازة الخروج من المسجد بامر تعالى.

لَا تَجْعَلُوا دُعَآءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَآءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا ۚ

تاسي مه ګرځوئ ايها المؤمنون بلنه د رسول الله (ﷺ) ويو کارته که امر جامع وي او که غير وي، لکه بلنه د بعض ستاسي تاسي لره و يو کارته، يعني د بلني او دعوت الرسول اجابت کوئ او امتثال د امر ددوی کوئ او مه ګرځوئ د رسول دعوت لکه د نورو خلګو دعوت، ولي د نورو خلګو په دعوت کي خو اعراض روا دی، او داغه رنګه سستي په اجابت کي د غير هم روا ده او رجوع بيله اذنه هم روا ده، او مبادرت او اجابت د رسول ﷺ واجب دی او سستي دده په اجابت حرامه ده او رجوع بيله اذنه دده هم حرامه ده، نو پر دې تقدير دا آيت لکه هغه آيت دی چي خدای ﷻ وايي: يا ايها الذين آمنوا استجيبوا لله وللرسول اذا دعاكم لما يحييكم.

**فائده**: پر دې تقدير اضافت د دعاء و رسول ته اضافت دی د مصدر و فاعل ته او مفعول محذوف دی يعني الى اي امر كان، او مجاهد او قتاده رح وايي چي معنا د آيت داده چي تاسي مه ګرځوئ ناره و عليه الصلوة والسلام ته لکه ناره ستاسي بعض

و بعض ته مثل یا زید، یا عمرو الی غیر ذالک، یعني په نامه ور ناري کوئ بلکې په الفاظو د تعظیم او احترام ناره ورته کوئ مثل یا رسول الله یا نبي الله یا حبیب الله الی غیر ذالک، ابو نعیم رح په دلائل کې وایي د ضحاک رح څخه په روایت او هغه له ابن عباس رض څخه په روایت کان الناس یقولون یا محمد یا ابا القاسم، لکن هذا التاویل لایناسب ما سبق من حفر الخندق في غزوة الاحزاب، او تر هغه وروسته آیتونو سره هم مناسب نه دی یعني الخروج باستیذان وبغیر استیذان او بل په دې سبب دا تاویل ناسب نه دی چې دعا الرسول آه خدای پاک مشابه کړې وه کدعاء بعضکم بعضاً، په مشبه به کې خو دعاء مضاف ده وفاعل ته ولې چې وروسته مفعول به مذکور منصوب لړي اعني بعضاً، نو په مشبه کې هم باید اضافت د دعاء ورسول ته اضافت د مصدر و فاعل ته وي غایته انیکون المفعول محذوفًا کمامر، قال البغوي رح قال ابن عباس رض معنی الآیة داده چې ویرېږئ له بښيرا څخه د علیه الصلوة والسلام که تاسي دی زهیر کړئ او درد مو وروستی فان دعائه مستجاب موجب لسخط.

**درویش وایي:** چې بخاري په خپل صحیح کتاب کې له عائشې رض څخه روایت کړی دی چې یهودان نبي علیه السلام ته راغله او داسي یې وویل السام علیک یعني رنګ یې د سلام ور کړی او په معنی کې مرګ دي وي پر تا. فقال ع علیکم فقالت عائشة رض السام علیکم ولعنکم الله وغضب علیکم فقال رسول الله ﷺ مهلاً یا عائشة علیک بالرفق وایاک والعنف (سختي) والفحش (بده ویناً) قالت اولم تسمع ماقالوا؟ قال اولم تسمعي ماقلت لهم رددت علیهم فیستجاب لي فیهم ولا یستجاب لهم في. مظهري وایي چې پر دې تقدیر باید لفظ د آیت داسي وایي کدعاء بعضکم علی بعض. ولې چې د لفظ د دعاء چې ښيرا مراد وي صلة یې علی راځي انتهی بحاصله، والجواب عنه ان حروف الجر تستعمل بعضها بمعنی بعض فیکون علی التقدیر المذکور کلمة د لام په معنی د علی ده فافهم.

قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ يَتَسَلَّلُوْنَ مِنْكُمْ لِوَاذًا

په تفسیر کواشي کې وایي چې قد دلته لپاره د قلت د متسللینو نه دی لانهم کانوا اقل من غیرهم، او روح البیان وایي چې کلمه د قد لپاره تخصیص ده که څه هم پر مضارع داخل دی بطریق الاستعارة، ولې راتلونکی وعید پر تحقیق دلالت کوي آه. او د تسلل معنی وتل دی له منځ څخه تدریجًا وخفیة یعني کرار کرار په

پټه سره، والحاصل يعلم الله الذين يخرجون من الجماعة قليلاً قليلاً على خفية.

**پوه سه**: چي لواذ مصدر دی چي په يو شي سره ځان پټ کړي د بېري د دې چي څوک يې ونه ويني كذا في الوسيط، په قاموس کي وايي چي اللوذ بالشئ الاستتار والاحتضان به (يعني ځان ساتنه په هغه شي سره چي دی پټ کړي) مثلثة الفاء (يعني لام د لواذ مفتوح مضموم مكسور درې سره راغلی دی) او د نصب وجه يې داده چي حال من ضمير يتسللون اى ملاوزين.

**پوه سه**: چي لواذ يعني په پټه وتل عام دی که تسلل له صف څخه د جنګ د کفارو وي او که له مسجد څخه په ورځ د جمعې او که د نورو مجامع حقه وو څخه کحفر الخندق، علماء وايي چي پر منافقانو خطبه د عليه الصلوة والسلام په ورځ د جمعې ډېره درنه پر بوتل لكونهم كافرين بالقلوب، نو دوی به ځانونه پټول په بعض اصحابو سره چي د تجديد الوضوء لپاره به وتل او يا يو په بل به يې ځانونه پټول او له مسجد څخه به وتل، نو خدای عالم الغيب والشهادة دا وعيد ودوی ته ورکړی.

فَلْيَحْذَرِ الَّذِيْنَ يُخَالِفُوْنَ عَنْ اَمْرِهٖٓ

پس ودې بېرېږي هغه کسان چي مخالفت له امر څخه کوي (ضمير يا راجع دی و خدای ﷻ ته لانه الامر حقيقة دی، او يا و رسول الله ﷺ ته لانه المقصود بالذكر)

اَنْ تُصِيْبَهُمْ فِتْنَةٌ اَوْ يُصِيْبَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۶۳﴾

چي دوی ته به ورسېږي يو غم په دنيا کي يا په مال کي يا په اولاد کي كالمرض والقتل والهلاک، او يا ورسېږي دردناکه عذاب يعني في الآخرة، او په جلالين کي وايي ان تصيبهم فتنة بلية تظهر نفاقهم، او يصيبهم عذاب اليم اى عذاب عاجل في الدنيا انتهى.

اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

الا حرف تنبيه دی يعني خبردار خدای ﷻ لره دي هغه شيان چي په اسمانو کي دي من الملائكة وغيرها او په ځمکه کي دي من الانس والجن وغيرهم يعني خلقًا وملكًا وتصرفًا ايجادًا واعدامًا واعادة يوم القيامة.

قَدْ يَعْلَمُ مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ ۖ وَيَوْمَ يُرْجَعُونَ إِلَيْهِ

په تحقيق خداى ﷻ علم لري ايها المكلفون ستاسي پر احوالو او اوصافو چي له جملي څخه د هغه الموافقة او مخالفت دى او اخلاص او نفاق دى (ويوم يرجعون آه) عطف دى على ما انتم عليه، نو يوم مفعول به دى ظرف نه دى اى يعلم تحقيقًا هغه ورځ چي راجع کړه کېږي يعني المنافقين المخالفين لامر الله ورسوله و خداى پاک ته د عذاب او د جزاء بالنار في اسفل السافلين.

فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوا ۗ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٦٤﴾

خداى به دوى خبر کړي په اعمالو ددوى (على رؤس الاشهاد واي خزي اخزى من اظهار اعمالهم النفاقية على جميع عظيم الآخرة) او خداى شمل علمه په هر شي خبر دى وان کان المنافقون چي کوشش يې کاوه په دنيا کي په ستر کي د اعمالو خپل عن عيون المؤمنين.

**درويش وايي:** چي الحمد والمنة والصلوة والسلام على خير البرية وعلى آله وصحبه الكملة قد وفقني الله لتفسير سورة النور وقت الضحى يوم السبت (١٥) تخمينًا من شهر الشوال المكرم سنه (١۴٣٠) هـ ق، ارجوا من الله القادر المتعال ان يوفقني لتفسير بقية اجزاء و سور القرآن الكريم انه تعالى على كل شئ قدير وبالاجابة جدير.

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سكين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹



سُوْرَةُ الْفُرْقَانِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ سَبْعٌ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَّسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّسِتُّ رُكُوْعَاتٍ

تَبٰرَكَ الَّذِيْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ نَذِيْرَا ۝

**پوهه سه:** چې د تبارک معنی ډېر والې دی. نو مضاف ورسره محذوف دی، ای تبارک خیر الذي آه. تبارک مشتق دی له برکت څخه چې معنی یې کثرة الخیر دی.

**فائده:** تبارک یې پر نزول د قرآن مرتب کړی لکون الفرقان مما فیه من کثرة الخیر دینیًا ودنیویًا. کما لا یخفی.

**ښهانه فائده:** مولی فناري رح په تفسیر کې د فاتحة الکتاب داسې ویلې دي چې صاحب بن عباد (چې د عارف اللغة نوم دی) په دریو الفاظو کې مترددو (۱) الرقیم (۲) تبارک (۳) والمتاع.

**درویش وایي:** چې په دې معنی نه چې د الرقیم لفظ چې په قرآن کې ذکر سوی دی یعني ان اصحاب الرقیم آه. په هغه نه پوهېدی چې سپې څنډي مراد دی. یا د تبارک په معنی، مراد په دې آیت کې او په تبارک الذي آه چې راغلی دی نه پوهېدی بلکې پوهېدی چې د تبارک چې هر ځای په قرآن کې راغلی دی معنی یې تکاثر خیر الذي ده. او د متاع په معنی في القرآن الکریم کې خو پوهېدی چې معنا یې بې ثبات سریع الزوال شئ ده، ولې لفظ متاع چې څو واره په قرآن مجید کې راغلی دی معنی یې په دغه کریمه: وما حیوٰة الدنیا الا متاع الغرور، لکن دی په دې کې مترددو چې عرب قح او خالص عرب دغه الفاظ په کوم شي کې استعمالوي خیر په دې دوران پر ډېرو قریو د اعرابو وګرځېدی لکن په مقتضی ددې محاورې: هر که جوینده بود یا بنده بود. یو ورځ یوې قریې ته وارد سو. له ښځې څخه یې واورېدل چې خپل کوچني زوی ته یې وویل: این المتاع؟ ابن صغیر ورته وویل جاء الرقیم واخذ المتاع وتبارک الجبل. دی ډېر خوشاله سو چې دری لفظه یې یو ځای واورېدل. جامي رح وایي:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ...... باامید رسد امیداوری

نو د ښځي څخه یې پوښتنه وکړه چې تا او ابن صغیر څه وویل او څه مو مرادو هغې ورته وویل چې ما د ابن صغیر څخه پوښتنه وکړه این المتاع یعني خمیره

چېري ده (یعني چي ښځي یې په اوبو لنده کړې نور اوره په اغږي) کوچني راتله وویل چي سپی راغلی خمیره یې واخستل غره ته پورته سو، نو ماته معلومه سوه چي متاع شی حقیر ته وایي، او رقیم سپي ته وایي او تبارک په معنی د صعد دی انتهی په پښتو ژباړه.

او په برهان القران کي (چي د یو کتاب نوم دی) وایي چي تبارک یو داسي لفظ دی چي بېله خدایه په بل چا کي نه مستعملېږي وخص بهذا الموضع لان مابعده امر عظیم، وهو القرآن المشتمل علی جمیع معاني کتب الله او دد ې لفظ یعني تبارک مضارع د استعمال په میدان کي نه ده وارده انتهی.

**فائده:** فرقان مصدر دی په معنی د جلا والي د دوو شیانو سمي به القرآن مبالغةً لغایة فرقه بین الحق والباطل والمؤمن والکافر.

(علی عبده) مراد له عبد څخه بنده اخلص ونبیه الاخص وحبیبه الاعلی وصفیه الاولی محمد المصطفی ﷺ دی.

**پوهسه:** چي په دې اضافت کي تشریف دی د علیه الصلوة والسلام په دې معنی چي عبد مطلق یعني من کل الوجوه دی دی. او تفضیل ده دی پر ټولو انبیاؤ فانه تعالی لم یسم احداً منهم بالعبد المطلق وفیه رد علی النصاری حیث یقولون عیسی هو الله او ابن الله بان الرسول لایکون الا عبداً للمرسل ولهذا قدم في التشهد عبده ورسوله (لیکون للعالمین نذیراً) چي وګرځي دا عبد لپاره د عالمیانو بېرونکی له عذاب څخه د خدای ﷻ په فرقان منزل سره د انس او جان که ده د زماني وي او که وروسته راغي الی یوم القیامة فالنذیر بمعنی المنذر.

**سوال:** نذیر فعیل له بابه د مجرد او منذر خو صیغه اسم فاعل له باب څخه د افعال ای الانذار، نو څرنګه فعیل په معنی د مفعل کېدای سي؟

**ځواب:** قاضي بیضاوي رح وایي چي فعیل په معنی د مفعل په کلام کي د عربو راغلی دی او دا بیت یې شاهد ګرځولی دی:

امن ریحانة الداعي السمیع ...... یورقني و اصحابي هجوع

ریحانه د شاعر خور وه چي خلکو په اغواء خندي بېولې وه او شاعر سره د څو کسانو په طلب کي د هغې راوتلي وه، نور ملګري ده د شپې په خواږه خوب بیده وه او شاعر ته خوب نه ورتلی د خور د سودا له جهته، نو یې دا بیت وواېه چي معنا

يې داده پر طريقه د تجاهل د عارف. آيا د ربحانه له خوا يو بلونکي چي په ما خبري اوري (دا د سميع يې فعيل دی چي په معنی د مفعل يعني مسمع راغلی دی، يور ټني چي زه بيا اره کړی يم او خوب نه راځي او حال دادی چي زما ملګري هجوع يعني بيده دي)

**پوه سه:** چي انذار اخبار دی و ځانه چي تخويف ورسره ملګری وي، لکه تبشير چي اخبار دی چي خوشالي پکښې وي.

**سوال:** رسول الله ﷺ خو بشير او نذير دواړه ؤ. نو بشير يې د څه حکمت لپاره نه راوړی؟

**ځواب:** انذار چي په کافرانو کي تاثير ونه کړي، نو تبشير خو يې په طريق اولی نه کوي لان الانسان مجبول على ان يقدم دفع الضرر عن جلب المنافع، او بل ځواب دادی چي په اولين دعوت کي د رسول الله ﷺ اهل البشارة نه وه. ټول له اهل مکه مشرکان وه.

**فائده:** راغب اصفهاني وايي چي عالم نوم دی د فلک او چي فلک احاطه پر وکړي من الجواهر والاعراض.

**سوال:** عالم چي په مفرد لفظ ټولو ته شامل دی، نو جمع يې څرنګه صحيح ده لانه يقتضي تعدد الافراد؟

**ځواب:** د عالم اطلاق پر هره نوعه روا دی لکه عالم الانس عالم الجن عالم الما، وعالم النار الى غير ذالک. فالجمعية باعتبار الانواع.

**پوښتنه:** جمع په واو او نون يا په ياء او نون سره چي جمع سلامت يې بولي، دا خو مخصوص په عقلاؤ سره ده او سره د دې چي اکثر انواع د عالم خو غير ذوی العقول دي. لکه حيوانات، نباتات و جمادات؟

**ځواب:** ابن الشيخ رح وای چي جمع سلامت يې په دې راوړه چي مقصود استغراق د ټولو افرادو د عقلاؤ دی من نوع لانس والجن لا جميع افراد عالم.

**سوال:** ملائکه خو هم ذوی والعقول دي، او له افرادو څخه د عالم دي؟

**ځواب:** هو! لکن له خارج څخه دا معلومه ده چي رسول ﷺ مبعوث و ملکوته نه ؤ، فلم يبق من افراد ذوی العقول الا الجن والانس فهو رسول اليهما جميعًا انتهى. او بعض علماء په توجيه کي د جمع سلامت داسي وايي چي انسان چي د

نور مخلوق سره يو ځای وي ده ته تغليب ور كول كېږي پر نورو انتهى.

**سوال:** تاسي دمخه وويل چي ملائكه له رسالت څخه د عليه الصلوة والسلام خارج دي او په حديث صحيح كي راغلي دي: ارسلت الى الخلق كافة؟

**ځواب:** دا عـام مخصوص الـبعض دى كما قيل ما من عـام الا يخص بعض افراده منه.

**فائده:** يو نبي د انبياؤ ؑ نه دى استول سوى مگر خپل قوم ته ماسوى د رسول الله ﷺ څخه.

**سوال:** د نوح ؑ رسالت خو هم عامؤ ټولو انسانانو ته، ځكه په طوفان نوح ؑ ټوله خلك له منځه ولاړه، ماسوى د كښتي د سپرو انسانانو. او يوه ښځه او نر د حيواناتو كما مر؟

**ځواب:** د نوح ؑ رسالت كه څه هم موجودينو ته دده د زماني عام ؤ لكن د وروسته راتلونكو نسلو لپاره نه ؤ عام بخلاف رسالة النبي ﷺ فانها باقية الى يوم القيامة.

**تنبيه:** امام مظهري له عموم څخه د رسالت د نوح ؑ منكر دى. استدلالاً بقول نوح ؑ كما جاء في القرآن ياقوم، او مظهري له دې څخه هم منكر دى چي په طوفان نوح دي ټوله دنيا غرقه سوې وي وهو في ذالک مخالف لجميع المفسرين رح.

**سوال:** د سليمان ؑ خو هم انس او جن تر تصرف لاندي وه، نو دده رسالت عام نه دى او كه څرنگه؟

**ځواب:** سليمان ؑ و جن ته لپاره د دعوت و ايمان ته نه ؤ مبعوث بلكي جن يې مسخر وه د خداى ﷻ په حكم ولا يلزم من التسخير العام عموم الدعوة.

## الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا

(الذي) خبر د مبتدا، محذوفي دى اى هو الذي (له) لام لپاره د اختصاص دى اى خاصة له دون غيره لا استقلالاً ولا اشتراكا (ملک السموٰات والارض) كاشفي وايي پادشاهي اسمانها را وزمينها چه وى منفرد است بآفريد آنها پس اورا رسد تصرف در آنها واينست معناى ملک (ولم يتخذ ولدًا) دا رد دى پر نصارىٰ ؤ باندي.

**ترجمه**: الله ﷻ هغه ذات دی چي خاص دده لپاره دی ملکیت د اسمانو او مځکي او خدای ﷻ نه دی اخستی د ځان لپاره ولد که نر وي لکه نصاری چي وايي چي عیسی ابن الله یا یهود وايي عزیر ابن الله، یا ښځه اولاد لکه بعض مشرکین چي وايي الملائکة بنات الله لانه حي لایموت. او ولد هغه چا لره وي چي دده وارث وګرځي وروسته تر مرګ دده.

**فائده**: ولد په معنی د مولود دی، واحد او جمع، صغیر او کبیر، ذکر او انثی ټولو ته شامل دی، وروسته آیت رد دی پر مشرکینو د مکې.

## وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهٗ تَقْدِيْرًا ۝

او نسته خدای ﷻ لره شریک په ملک السموات والارض کي تا چي دده منازعت یا ومعاونت وکړي په دې مملکت کي، قال المولوي المعنوي في المثنوي:

واحد اندر ملک اورا یارني ........ بنده گانش را جزاو سالارنی

نیست خلقش را دگر کس مالکی ....... سرکش دعوی کند جزهالکی

(وخلق کل شیئ) او پیدا کړی دی خدای ﷻ هر شی (د ټولو موجوداتو چي حادث دي یعني له مواد مخصوصهؤ څخه پر صوررو معینهؤ مختلفة الآثار والاحوال) نو خدای ﷻ اندازه کړی او آراسته کړی دی هر شی د خواصو لائقهؤ په هغه شي پوري، د مثال په توګه انسان خدای ﷻ پیدا کړی دی دده سره د مناسب شیانو لپاره کالادراک والفهم والتدبر في امور المعاش والمعاد واستنباط الضائع رنګارنګ لکه موږ چي د انسانانو د پوهني قسم قسم مخترعات او کمالات دنیاویه او علوم اخرویه ددوی، وعلی هذا فقس احوال سائر مخلوقاته ﷻ.

## وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً لَّا يَخْلُقُوْنَ شَيْـًٔا

او ګرځولي دي مشرکانو د ځانو لپاره (من دونه: حال دی والمعنی حالکونهم متجاوزین عبادت الذي خلق هذه الاشياء. آلهة: جمع د اله ده یعني معبودات چي بتان دي) چي هغه خدایان ددوی قادر نه دي پر خلق د یو شي له اشیاؤ څخه اصلاً لکونها جمادات.

**سوال:** ضمير د یخلقون خو د عقلاؤ لپاره دی، نو بتانو ته څرنګه راجع سو؟

**ځواب:** مشرکانو خپل بتانو ته د عقلاؤ درجه ورکول. نو خدای ﷻ د دوی پر زعم خطاب ور سره و کړی، کذا في تفسير ابى الليث السمرقندي رحمه الله.

## وَهُمْ يُخْلَقُونَ وَلَا يَمْلِكُونَ لِأَنْفُسِهِمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا

دوی لکه نور مخلوقات د خدای ﷻ پیدا دي (لان الكفار يصنعونها من حجر او نحاس او فضة او ذهب وامثالها وكل هذه الاشياء مخلوقة لله عزوجل) او دوی يعني الاصنام په طاقت نه ده پوره ضرًا بحذف المضاف اى دفع ضر مثلاً څوک دي دوي ماتوي.

**پوه سه:** چي دفع الضرېږ تر نفع دمخه کړی لان الاول اهم من الثاني (ولانفعًا) بحذف المضاف اى جلب نفع، نو څرنګه به له عابدینو څخه د دوی دفع د ضرر وکړي یا په هغو ته جلب د نفع وکړي. نو دا معبودان د دوی تر حیواناتو لا بې وسه او بې قدرته دي، ولي حيوانات في الجملة دفع د ضرر له ځانه څخه کولای سي، خر په لغتو دفع د ځان کولای سي او سپی په غاښو او منګلو دفع د ضرر له ځانه څخه کولای سي الى غير ذالک. او جلب د نفع هم کولای سي خر چي یو ځای واښه ووینی په مزه مزه یې خوري او سپی چي یو ځای غوړ هډوکی پیدا کړی په غاښو او په ژبه یې خوري وهكذا سائر الحيوانات.

## وَلَا يَمْلِكُونَ مَوْتًا وَلَا حَيٰوةً وَلَا نُشُورًا ۝

يعني د دوی له قدرته نه ده پوره وژل د ژوندي ذی روح. او نه ژوندي کول د مړو شیانو لکه نطفه د حیواناتو په دنیا کي او نه بعث بعد الموت، نو شی چي د غسي عاجز دوي هغه په معبوديت نه ارزي عقلاً، ولي چي په دوی يعني بتانو کي لوازم د الوهيت نسته بلکي اضداد د الوهيت پکښې دي، د دې معنی دا ده چي معبود بالحق به قادر وي پر اماتة او احياء مرة في الدنيا ومرة في القيامة.

## وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هٰذَا إِلَّا إِفْكٌ افْتَرٰهُ وَأَعَانَهُ عَلَيْهِ قَوْمٌ اٰخَرُونَ

او وايي هغه کسان چي کافران دي (لکه نضر بن الحارث، عبيد الله بن اميه، نوفل بن خويلد وامثالهم واتباعهم من مشركي مكة) نه دی قرآن چي محمد (ﷺ) یې نازل من الله بولي (کلمه د ان نافیه ده) مګر نه دروا غ (یعني مصروف من الحق

الی الباطل لان الصرف عن الحق معتبر في مفهوم الافک لغةً) چي جوړ کړی دی
محمد (ﷺ) له ځانه، او کومک کړی دی ده سره پر جوړولو د قرآن نور قوم، کفارو د
قریشو به ویل چي یهودان د مدینې وه ده ته اخبار د تېر سو امتو را استوي او دی یې
په عربي ژبه خپروي او وايي چي زه رسول یم ماته وحي من عند الله راځي.

**فائده:** فرق په منځ کي د افتراء او د کذب دادی چي افتراء په قصد دروغ من
قول نفسه ته وايي او کذب عام دی، ولي چي کله ګاهي سړی دروغ وايي تقلیداً لغیره
کذا في الاسئلة المفحمة.

## فَقَدْ جَآءُوْ ظُلْمًا وَّزُوْرًا ۚ

دوی راتګ وکړی په دې قول کي خپل یا یې په دې فعل، مآل د دواړو تفسیرو
یو دی، ولي چي جاء او اتی دواړه په معنی د فعل مستعملیږي (ظلمًا) تنوین لپاره
د تعظیم دی ای ظلمًا عظیمًا چي کلام الله چي له اتیان ځخه د مثل یې خلګ عاجز
دي دوی مختلق د یهودو له خوا ځخه وباله (وزورًا) ای کذبًا کبیرًا ولي چي دوی
نسبت د داسي شي و علیه الصلوة والسلام ته وکړی چي دی له هغه ځخه پاک دی
یعني الکذب علی الله.

## وَقَالُوْٓا اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلٰى عَلَيْهِ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ۝

او دوی به ویل په باره کي د قرآن چي دا د اولینو خلګو قصې دي،

**پوه سه:** چي اساطیر جمع د اسطورة ده چي و منقول دروغو ته وايي یعني دا
قصې چي محمد (ﷺ) یې مونږ ته کوي دا د پخوانیو خلګو خرافات دي لکه قصه د
رستم او اسفندیار، بالفارسیة افسانهای اولیانست که در کتابها نوشته اند.

**پوه سه:** چي معنی د کتابت دا نه ده چي علیه الصلوة والسلام لیکلي دي، ولي
چي علیه الصلوة والسلام خو کاتب نهٔ او مشرکون په دې خبروه بلکې معنی یې
داده امر ان تکتب له یعني بل یې امر کړی دی چي ته یې ماته را نوشته کړه، د دې
مثال دادی چي عرب وايي (افتصد فلان) فلاني رګ وواهه، نو سړی خو په خپله
خپل رګ نه خلاصوي بلکې معنی یې داده چي امر غیره په رګ وهلو سره (فهي
تملی) نو دغه اساطیر القاء کېږي یعني تلاوت یې کېږي (علیه) ای علی محمد
تا چي دی یې د هغو له خولو ځخه په یاد کړي لکونه علیه الصلوة والسلام امیًا
(بکرة واصیلًا) په اول او په اخیر کي د ورځي، والمراد الدوام.

قُلْ اَنْزَلَهُ الَّذِىْ يَعْلَمُ السِّرَّ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝

ووایه یا محمد (ﷺ) په رد کي د قول ددوی او په بیان کي د حق و دوی ته) چي نازل کړی دی دا قرآن هغه چا چي پ‍ه سر او غیبت خبر دی په اسمانو کي او په مځکه کي، په تحقیق خدای ﷻ بخښونکی او مهربان دی.

**یوه سه**: چي مراد له غیب څخه غیب من الله نه دی بلکې مراد د غیب عن الناس دی. نو چي دا قرآن داسي چا نازل کړی دی، نو تاسي یې ولي اساطیر الاولین بولئ او که چیري دا خبره رشتیا وي چي زه یې له ځان څخه جوړوم، نو تاسي په مثل د قرآن بلکې په مثل د لسو سورتنو د قرآن بلکې په مثل د یوه سورت د قرآن راتګ وکړئ.

**یوه سه**: چي لفظ د کان که څه هم ماضي ده لکن دلته ځندي مراد استمرار دی یعني خدای ﷻ غفور او رحیم ؤ او دی او وي به غفور رحیم، والمعنی انه تعالی غفور رحیم ازلاً وابداً. نو هم دا سبب دی چي ستاسي په تعذیب کي تعجیل نه کوي پر ما تقولون في کلامه تعالی من انه اساطیر الاولین مع کونه تعالی قادراً علی تعذیبکم او سره ددې چي تاسي مستحق د عذاب هم یاست په دې آیت کي اشاره ودې ته هم ده چي دغه کسان چي قرآن عزیز ته یې د کذب او اساطیر الاولین نسبت کاوه که د خپل کفره توبه وکاږي او ایمان پر خدای ﷻ بالتوحید او پر قرآن بکونه کلام الله تعالی وبکون محمد رسول الله ﷺ، خدای ج به مغفرت د ماضي کفر څخه ورته وکړي او رحم به پر وکړي، قال الله تعالی (واني لغفار لمن تاب) گفته اند در توبه بازست وحق تعالی دستگیر.

وَقَالُوْا مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ يَاْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِيْ فِى الْاَسْوَاقِ ؕ

ووییل مشرکانو چي اشراف د قریشو وه لکه ابو جهل، عتبة بن ربیعة، امیة بن خلف، عاص بن وائل و امثالهم چي دوی اجتماع کړې وه د کعبې مبارکې سره، څه سبب دی دغه رسول لره یعني چي دی ځان رسول بولي.

**یوه سه**: چي ما استفهامي دی لپاره د انکار د وقوع یعني که دی رسول وای دا آئینده کارونه باید ده نه کولای، او کلمه د ما مرفوع ده لکونه مبتدا، وخبرها قوله (هذا الرسول)

**یوه سه**: چي کلمه د ل جلا نوشته ده په مصاحفو کي که څه هم باید په وصل

نوشته سوې وای لکن اتباع د مصحف سنت ده. او لفظ د هذا لپاره د تحقیر د شان د علیه الصلوة والسلام دی. ولي چي علیه الصلوة والسلام په دغه مجلس کي د دوی حاضر نه ؤ. نو بايد دوی ذالک ويلی وای، په کتابو کي د علم معاني وايي چي کاهي اشاره و قريب شي ته په اسم اشاره د بعيد وکړل سي تعظيماً لشان ذالک القريب مثل قوله تعالى: ذالک الکتاب لاريب فيه. او کاهي اشاره په اسم اشاره د قريب وغائب بعيد ته وکړل سي لپاره د تحقير کما في ههنا عند هؤلاء الظلمة. او اطلاق د رسول پر علیه الصلوة والسلام لپاره د استهزاء دی.

(ياكل الطعام) چي دوه دی. خوري لکه موږ چي يې خورو يعني غذاء ته محتاجه دی (ويمشي في الاسواق) او ګرځي په بازارو کي لپاره د طلب د معاش لکه موږ چي ګرځو. نو دی پر موږ څه فضيلت لري. حاصل د کلام د دوی دا دی چي رسول بايد پر صفت د بشر نه وي. نو که دده دعوٰی صحيح وي. نو بايد حال دده زموږ له حال څخه مخالف وای. حسين کاشفي وايي: ندانستند که نبوت منافى بشريت نيست بلکه مقتضى آنست تا تناسب وتجانس که سبب افاده و استفاده بحصول پيوندد انتهى.

لَوْلَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُۥ نَذِيرًا ﴿٧﴾

(لولاء) حرف تخصيص دی په معنٰی د هلاّ دی په فارسي وايي چرا. په پښتو وايي ولي (لولاء انزل اليه ملک) ولي نه نازل کړه کېده ده ته ملک يعني پر صورت اصلي د ملکي چي جلا د صورت د بشر وای. نو به وای هغه ملک دده سره يعني د عليه الصلوة والسلام بېرونکی له عذاب څخه د ورځي د قيامت.

**فائده:** يکون منصوب دی. ولي چي جواب د لولاء دی.

أَوْ يُلْقَىٰٓ إِلَيْهِ كَنزٌ أَوْ تَكُونُ لَهُۥ جَنَّةٌ يَأْكُلُ مِنْهَا

او يا نازل سوې وای د اسمان له خوا څخه ده ته يوه خزانه. او يلقى آه عطف دی پر انزل باندي. نو دی مستغني د يمشي في الاسواق څخه لپاره د تحصيل د موادو ارتزاقيه ؤ.

**يوه سه:** چي کنز مال منکوز ته وايي ای المجموع المحفوظ لوقت الحاجة (او يکون له جنة ياکل منها) او يا که ملک نه وای نازل سوی او نه له اسمانه خزانه

یعني ګنج نه وای فلا اقل باید یو باغ د انګورو یا د خورما خو به یې درلودای چي ده خورک ځني کولای لکه اهل غنٰی او اهل د قریو چي یې لري.

وَقَالَ الظّٰلِمُوْنَ اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا ⑧

او ویل به ظالمانو.

**فائده:** مراد له ظالمانو څخه هغه اول قائلان دي.

**سوال:** نو چي هغه مراد دي نو خو بې ضمیر ورته راجع کړی وای یعني وقالوا نو د اسم ظاهر په راوړلو کي څه حکمت دی؟

**څواب:** حکمت یې تصریح او حکم په ظلم سره ددوی دی عن تجاوزهم عن الحد في الغی والضلال (ان تتبعون) تاسي متابعت یعني کـه چېري تاسي متابعت هم وکړئ نه کوئ (الا رجلا مسحورًا) مګر نه د یوه سړي چي په ده چا سحر او جادو کړی دی، نو دماغ یې ورخراب کړی دی. نو ځکه خلاف د مذهب د آباؤ او اجداد چي شرک دی خبري کوي چي توحید د معبود دی.

اُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوْا لَكَ الْاَمْثَالَ فَضَلُّوْا فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا ⑨

وګوره ته یا محمد (ﷺ) څرنګه بیانوي دوی ستا لپاره امثال یعني احوال او نومان چي له عقل څخه ډېر لیري لېري دي او ستا له حال څخه ډېري لېري دي. ولې چي دوی به ته قبل دعوی النبوة امین مکه بللې اوس دي ګاهي شاعر بولي. ګاهي دي ساحر بولي، ګاهي دي مسحور بولي. ګاهي دي مفتر بولي او ګاهي دي فقیر بولي الی غیر ذالک، نو دوی ګمراهان سوه له حق څخه په ضلال، نو دوی طاقت نه لري د لاري بحذف المضاف ای سلوک سبیل الی الهدی او مخرجًا عن الضلالة نو په دغو اعتراضو ددوی پر رسول اللهﷺ دوی هغه استعداد فطري د لاسه ورکړی.

تَبٰرَكَ الَّذِيْٓ اِنْ شَآءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِّنْ ذٰلِكَ

ای تکاثر خیر الذي بحذف المضاف کمامر، کـه د خدای ﷻ اراده وسي در به کړي وتا ته به شی د دغو شیانو چي کافرانو تا ته ویل یعني او یلقی الیه کنز او یکون له جنة.

**بوه سه:** چي مراد دادی چي په دنیا کي به یې درکـ در معلوم سوی وای ان شاء

لانه تعالى شاء ذالک له في الآخرة. لکن خدای ﷻ هغه خیر خندولی دی تر آخرت لان نعیم الآخرة خیر وابقی حیث خاطبه ﷺ (لو لاک لما خلقت الکائنات) کذا في برهان القرآن چي یو زیبا تفسیر دی.

**درویش وایي:** چي بعض تور مخي کتاب فروشان او سلفیان او نوري ورته دلي دا حدیث موضوعي بولي.

جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ ۙ وَ یَجۡعَلۡ لَّکَ قُصُوۡرًا ﴿۱۰﴾

(جنات تجري من تحت الانهار) بدل دی له خیراً څخه او محقق او مثبت د خیر والي یې دی مما قالوا) هغه خیر جنتونه دي یعني باغونه د قسم قسم مېوو چي بهېږي لاندې تر درختو د هغو ځلور ویالې اوبه، شیدې، عسل او شراب (ویجعل لک قصوراً) عطف دی پر جعل لک، او درکړي به یې وای تاته بنګلې، کوټیانې یعني په دې دنیا کي. فارسي: کوشکهای عالی ومسکنهای رفیع.

**درویش وایي:** که در اسباب نزول مذکور است که چون مالداران قریش حضرت رسالت بفقر وفاقه سرزنش کردند رضوان که نماینده روضات جنات است با این آیت نازل شد ودرجی (یعني صندوق) از نور پیش آنحضرت نهاد و فرمود که فروردگار تو میفرماید که مفاتح دنیا دراین درج است آنرا بدست تصرف تو میدهم، بی آنکه از کرامت ونعمتی که نامزد تو کرده ایم در آخرت مقدار پر پشه کم گردد. حضرت ﷺ که ای رضوان مرا باینها حاجت نیست فقر را دوست تر دارم ومیخواهم که بنده شکور وصبور باشم، رضوان گفت اصبت اصابک الله بک نشانه علو همت آنحضرت همانست که باوجود تنگدستی واحتیاج گوشه چشم التفات بر خزائن روی زمین نیفگند، وهمچنان در شب معراج نظر بما سوی الله نکشود که در این آیت ذکر شده (ما زاغ البصر وما طغی).

بَلۡ کَذَّبُوۡا بِالسَّاعَۃِ ۟ وَ اَعۡتَدۡنَا لِمَنۡ کَذَّبَ بِالسَّاعَۃِ سَعِیۡرًا ﴿۱۱﴾

بلکه کفار مکه تکذیب په قیامت. حشر او نشر کوي، او موږ اراسته کړی دی د هغه چا لپاره چي تکذیب د ساعت کوي سعیراً یعني عظیم اور شدید الاشتعال.

**پوښتنه:** د قیامت ورځي ته ولي ساعت وایي؟

**ځواب:** تشبیهًا لها بالساعة لسرعة حسابه، کریمه: وهو اسرع الحاسبین.

كريمه: كانهم يوم يرونها لم يلبثوا الا ساعة.

إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا ﴿١٢﴾

چې ووينې دا سعير دا كافران د لرې ځايه څخه يعني چې نهايت لرې وي. دوى به واوري د سعير له خوا اواز د شديد غضبان سرې چې ځيګر يې له جوشه د غضب او غصې ډک وي (وزفيرا) زفير هغه اواز دى چې د سرې له نسه راپورته کېږي.

**درويش وايي:** چې يوه مهمه پوښتنه خلک کوي چې دوږخ خو اور دى. نه سترګې لري. نو څرنګه وويل سوه چې سعير ووينې دا كافران د لرې ځاى څخه لکه د مشرق څخه تر مغربه پورې. او نه عقل لري چې كفار يې وپېژني. نه ژوند لري چې د غصې او د غضبه كافرانو ته ځګر او نس ډکى سي؟

**ځواب:** روح البيان او نور تفاسير هم وايي چې د اهل السنة مذهب دادى چې بنية يعني جسم او كوم خاص صورت لکه د انسان شرط د حيٰوة او د عقل او د رؤيت او د خبرو شرط نه دى، نو عين ممکنه ده چې سَعير او دوږخ پر دغه خپل چې دى خداى ﷻ په ده كي حيات او عقل او رؤيت او خبرې پيدا کړي وما هو على الله بعزيز لايعجزه شئ.

**درويش وايي:** چې د دې مذهب د اهل السنة ډېر احاديث مباركه كوي، صحيح حديث دى چې عليه الصلوٰة والسلام وويل چې زه هغه ډبره پېژنم چې زه به غار حراء ته تلم دې به ويل السلام عليک يا رسول الله، او له ابن مسعود ؓ څخه صحيح روايت دى چې موږ به كاسه كي ښوروا وغيره خوړل تسبيح د كاسې وغيره به مو اورېدلې يعني سبحان الله، او په صحيح حديث كي راغلي دي چې ابو جهل يوه ورځ څو دانې شيګې په موټه كي ټينګي نيولي وې، و عليه الصلوٰة والسلام ته يې وويل که دې دا زما په لاس کي شى را وښووى پر تا ايمان راوړم، عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چې ښونه خو يې آسان كار دى که دا ستا د لاش شى كلمه د توحيد وويل ته ايمان راوړې، ابو جهل ورته وويل چې دا خبره به اعجب وي، نو سنګرېزو په لاس كي د ابو جهل چې ده هم واورېده داسې وويل: لا اله الا الله محمد رسول الله، ابو جهل فرعون هذه الامة هغه شيګې وغورځولې او عليه الصلوٰة والسلام ته يې وويل چې پر دې شيګو دې هم سحر وکړى.

**يوه سه:** چي په عربو كي دا دستورؤ، په حيوة كي د رسول الله ﷺ يعني په مسلمانانو كي د مديني منورې، چي كوچنى به يې پيدا سو تر هغو يې هيڅ شى د خوراک نه ورکاوه يوه يا دوې دانې خورماوي به يې راواخستلې كوچنى به يې راوستى و عليه الصلوة والسلام ته، نو عليه الصلوة والسلام به خورما په خوله كي وژوول او ناړي به يې كوچني ته په خوله كي وركړې، نو اول شى چي به د كوچني نس ته ورغلى، د عليه الصلوة والسلام ناړي به وې، وروسته به يې د مور شيدې وغيره وركولې، دې كار ته يې په عربي كي تحنيک وايه، يوه ورځ يوه صحابي خپل طفل ابن اليوم د تحنيک لپاره و عليه الصلوة والسلام ته راوستيؤ، ده مبارک د مخه تر تحنيک و طفل ته وويل من ابوک؟ پلار دې څوک دى، طفل د خپل پلار نوم واخستى، وروسته عليه الصلوة والسلام ورته وويل من انا؟ زه څوک يم؟ طفل ورته وويل انت رسول الله ﷺ.

**درويش وايي:** چي دا حديث تائيد د مذهب د اهل السنة والجماعة كوي كما لايخفى، او نور دلائل د دې مذهب هم ډېر دي وفيما ذكرناه كفاية لمن يعلم قدرة الله ﷻ او هغه څوک چي بې عقلي شيانو شى نه مني او د عقل غلام وي هغه يوه سو كاريې يوه سو.

**درويش وايي:** چي د دې مقام او تاويلاتو ضرورت نسته لكه چي مريان د عقل يې كوي، ولي چي تاسي واوريدى مذهب د اهل السنة والجماعة چي د ظاهره سره د دغو آياتو موافق دى كما حرره هذا العبد الضعيف آنفًا فاي ضرورة الى التاويل لانهم قالوا التاويل كالميتة اذا اضطرت اليها يجوز لک اكلها واذا استغنيت عنها فهي باقية على حرمة اكلها فعليک بالتاويل الدقيق في هذه الآيات ولاتكن من الغافلين، والمؤلين لايات الكتاب بلا ضرورة ... مصرع:

دا باران چي پر همه ؤ مخكو اوري .... مشرف كړى ذات د كيميا ولي

وَإِذَآ أُلۡقُوا۟ مِنۡهَا مَكَانࣰا ضَيِّقࣰا مُّقَرَّنِينَ دَعَوۡا۟ هُنَالِكَ ثُبُورࣰا ﴿١٣﴾

او هغه وخت چي واچول سي.

**فائده:** ضمير د منها راجع دى و سعير ته چي مؤنث سماعي ؤ، او مكانًا منصوب په نزع د خافض دى اى في مكان ولفظ منها بيان تقدم فصار حالاً كما في كتب النحو

(ضيقًا) صفت دی د مكان، والمعنى هسې ځای چې تنګ وي تاچې عذاب د سعير په دې تنګۍ سره دوه چنده وګرځي، (مقرنين) ای حالکونهم چې جوت سوي وي لاسونه ددوی د غاړو سره په ځنځير سره او يا معنی داده چې دوی به د شيطانانو سره تړل سوي په ځنځيرانو (دعوا هنالک) دوی خواست او ښېرا کوي پر خپلو ځانو باندې په دغه مکان ضيق کې د سعير (ثبورًا) د هلاک يعني خدای ﷻ دې موږ مړه کړي چې له دې عذابه خلاص سو، قال الکاشفي رح واين کلمه (يا کلمه ويل) کسی ګويد که آرزو مند هلاک باشد از جهت سختی زندګی، د عربو د قانون سره برابر په وخت کې د تنګۍ او بد حالۍ دوی داسې وايي: يا ثبوراه، يا ويلاه، يا هلاکاه، دا ندا مجاز دی يعني مرګه چېرې يې راځه چې وخت دې دی.

**فائده:** په حديث شريف کې راغلي دي چې اول تر ټولو چې کالي د اور به په اغوستل کېږي ابليس دی او دده اولاد به وروسته په پسې وي. ابليس دا ناري وهي واثبوراه ذريه يې دا ناري وهي واثبورهم حتی چې د سعير د کندې پر غاړه ودرول سي. ابليس وايي واثبوراه او ذريه يې وايي واثبوراهم. نو خدای ﷻ په ژبه د ملکو لپاره د تنبيه پر دې چې تاسې ته به هلاک نه وي خالدين في النار ياست.

لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُورًا وَاحِدًا وَادْعُوا ثُبُورًا كَثِيرًا ﴿١٤﴾

تاسې خواست مه کوئ نن ورځ د قيامت ده پر يوه ثبور اکتفاء مه کوئ، او تاسې خواست د ډېرو وارو د ثبور وکړئ.

**پوه سه:** چې مراد کثرة في نفسه نه دی. ولې چې ثبور خو في ذاته يو دی بلکې مراد تکرار او عدد دی. ولې چې ستاسې عذاب له جهته څخه د غايت شدت او د طول د مدې تر ابد پورې مستوجب دی لتکرير الدعاء في کل آن.

قُلْ أَذَٰلِكَ خَيْرٌ أَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ ط

ته ورته ووايه يا محمد (ﷺ) يعني کفارو ته د مکې چې آيا د دغه عذاب چې تاسې يې کم او کيف واورېدی خير دی که جنت د همېشه لپاره هغه جنت الخلد چې وعده يې کړل سوې ده يعني له جانبه څخه د خدای ﷻ د تقوی داره بندګانو سره.

**فائده:** مراد له تقوی څخه مطلق تقوی ده چې مربوط په نفس کلمه د لا اله الا الله محمد رسول الله ده يعني نه تقوی په دويمه مرتبه کې چې په طاعاتو واجبه پر

سړي راتګ يعني کوي يې او له ټولو منهياتو څخه پرهيز کوي، او نه دريمه درجه د تقوىٰ چي تقوىٰ د انبياء عليهم السلام ده او د کاملانو د اولياء الله ده يعني فقط نه دويمه درجه مراد ده او نه فقط دريمه درجه مراد ده. ولي مؤمن بالقلب واللسان که څه هم په غايت عصيان کي وي مګر ابدي دوږخ ورته نسته خلافًا للمعتزلة دوى وايي چي مرتکب د کبائرو ګنهو چي بې توبې مړ سي ځاى يې ابدي دوږخ دى، اهل السنة والجماعة وايي چي مؤمن چي بې توبې مړ سي يا په رحمت عامه د خداى ﷻ ټول له کبائر ورو بخښل سي، او يا به يې رسول الله ﷺ په اجازه د خداى ﷻ شفاعت وکړي، په دواړو صورتو کي اور ته نه داخلېږي، او که دواړي لاري پر بندي سي په قدر د ګناه به دوږخ ته ورسي اخير به بېرته جنت الخلد ته ورځي.

**فائده:** مراد له جنت الخلد څخه يا معنى لقبي ده چي هر جنت جنت الخلد دى يعني د دوام ځاى او يا معنى علمي مراد ده چي د يو خاص جنت نوم دى، والاول اولى و انسب فتامل.

**سوال:** دا استفهام څرنګه لا رلري چي عذاب مؤبد د سعير ښه دى او که جنت الخلد. او استفهام خو د شک او ترديد لپاره په دې کي دى که هيڅ څوک شک او ترددنه لري چي جنت الخلد تر سعير مؤبد بهتر دى؟

**ځواب:** دا استفهام يې د کفارو د سرزنش او د تهکم لپاره او غم ځپول د دوى دى پر هغه شي چي ددوى څخه د لاسه ووتى چي جنت الخلد دى په سبب د کفر ددوى په دنيا کي.

كَانَتۡ لَهُمۡ جَزَآءً وَمَصِيرًا ۝

چي ؤ دغه دار الخلد ددوى يعني مؤمنانو لپاره.

**سوال:** کان خو ماضي ده او دار الخلد چي مؤمنانو ته ورکول کېږي هغه په قيامت ورکول کېږي چي استقبال بعيد دى؟

**ځواب:** بعض مفسرين ددې سوال دفع په دغه الفاظو کوي اى في علم الله او بعض مفسرين وايي چي دار الخلد چونکه موعود د خداى ﷻ دى والله تعالى لايخلف الميعاد، نو نازل يې کړى پر منزله د امر متحقق في الماضي فافهم هداک الله تعالى، کريمه: تلک الجنة التي اورثتموها بما کنتم تعملون (ومصيرًا) يعني مرجع يرجعون اليه.

لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَآءُونَ خَٰلِدِينَ ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ وَعْدًا مَّسْـُٔولًا ﴿١٦﴾

دوی لره دي هغه شیان چي اشتهاء يې ورته كېږي يعني من الماكل والمشارب ومن انواع النعيم چي د دوی د مراتبو سره برابر وي، دا قيد چي د دوی د مراتبو سره برابر وي د دې لپاره ما ووايه چي څوک تو هم د دې ونه کړي چي اهل جنت ټول په مراتبو کي سره برابر دي.

**درویش وایي:** چي د دې آیت څخه ظاهر سو فساد د قول د شرح الاشباه والنظائر چي په جنت کي لواطت روا دی لجواز ان یریدها اهل الجنة. او ده دلیل په عموم د دې آیت کړی دی (لهم مایشآؤن) وجه د فساد د دې قول داده چي لواطت خو د خبائثو کارو څخه دی التي ماتعلقت الحكمة په روا والي سره د هغه يعني اللواطة في عصر من الاعصار لكه زنى. فكيف يكون ماهو خلاف الحكمة الالهية مرادًا ومشتهى لاهل الجنة، والحاصل ان عموم الآية انما هو بالنسبة الى المتعارف وموافق للحكمة الالهية، د دې آیت مفاد دادی چي مرادات د بندګانو په جنت کي پوره كېږي بخلاف الدنيا چي د سړي و شي ته اشتهاء كېږي او مراد يې وي لكن په لاس نه ورځي، (خالدين) يعني همېشه به وي دوی يعني في الجنة چي نه موت سته خلود بلا موت نه اخراج سته له جنته (كان) دي د غه مذكوره شيان چي دخول دی د جنت او خلود دی فيها او مايشاؤن وه.

**درویش وایي:** چي په لفظ د مذکور هغه سوال دفعه سو چي مناسب د کانت ؤ ولي چي مرجع د ضمیر د کان خو ډېر شیان وه. حاصل د جواب دادی چي هر څو ډېر شیان چي وي لکن په تاویل د مذکور یا ماذکر یو شي ګرځي (علی ربک وعدًا مسؤلاً) يعني دغه شيان چونكه موعود د خدای ﷻ دي په خپل فضل او كرم سره حق د دې لري چي مؤمنان يې له خدايه وغواړي.

**سوال:** على خو لپاره د وجوب دی نحو لي عليک دين. او سره د دې چي پر خدای ﷻ خو وجوب نسته؟

**ځواب:** كلمه د على يې د دې لپاره راوړه چي خلاف په وعده كي د خدای ﷻ ممتنع دی، نو لکه واجب داسي سو.

## وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ

ذکر کړه یا محمد (ﷺ) و قوم ته خپل هغه ورځ چي جمع به کړي خدای ﷻ دوی او هغه شیان چي دوی یې عبادت کاوه ماسوی له خدایه څخه.

**پوه سه**: چي کلمه د ما علی التحقیق که څه هم عامه ده للعقلا، وغیرهم لکن په قرینه د جواب آتي مراد ځني عقلا دي کالملائکة وعیسی وعزیر علیهم السلام.

## فَيَقُولُ ءَأَنتُمْ أَضْلَلْتُمْ عِبَادِي هَٰؤُلَاءِ أَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيلَ

آیا شما بودید یعنی، خدای پاک وایي و معبودینو ته. تاسي ګمراهان کړي وه زما بندګان چي دغه دي یعني تاسي ای معبودینو دعوت ورکړی وُ خپل عبادت ته، او که دوی په خپل فکر ګمراهان سوي د لاري حقي څخه یعني چي دوی نظر صحیح نه کاوه او اعراض یې کړی وُ د مرشد نصیح څخه.

**سوال**: خدای ﷻ په ازل کي په حال د معبودینو چي دوی دعوت نه دی ورکړی او خلک یې نه دي امر کړي په خپل عبادت سره، نو په دې سوال کي څه فائده؟

**ځواب**: فائده یې الزام د عابدینو دی په دې معنی چي د معبودینو څخه سوال وسي په مذکور سوال سره او معبودین جواب ورکړي بما هو الحق الواقع، نو د عابدینو د دوی به غم او حیرت او دهشت ډېر سي او عابدین به په جواب د معبودینو ملزم سي یعني بتکذیب المعبودین دوی لره او اظهار د معبودینو بېزاري د دوی څخه او اظهار د معبودینو چي موږ دوی نه دي امر کړي په عبادت د خپل ځان، نو شق ثاني به ثابت سي یعني ام هم ضلوا السبیل، چي دوی په خپله ګمراهان وه.

## قَالُوا سُبْحَانَكَ مَا كَانَ يَنبَغِي لَنَا أَن نَّتَّخِذَ مِن دُونِكَ مِنْ أَوْلِيَاءَ

معبودین به وايي دا جمله مستانفه یې بیاني د سوال یعني معبودینو په جواب د سوال د خالق لایزال څه وویل (سبحانک) پاکي ده تا لره، دا کلمه د تعجب ده د دوی د سوال چي د دوی څخه وسو، یا تنزیه د خدای ﷻ د انداد څخه (ما کان ینبغي لنا) نه ښایي او نه ده لائق موږ لره، چي موږ به ګرځوو متجاوزین ستا څخه یو ولي له اولیاؤ څخه.

**فائده**: کلمه د من زائد ده لپاره د استغراق د نفي او لفظ د اولیاء مفعول د تتخذ دی او اتخاذ دلته متعدي و معفول واحد ته دی.

**پوښتنه**: خدای پاک خو ددوی څخه دا سوال وکړی آیا تاسي ګمراهان کړي دي زما بندګان په معبودیت خپل سره او دوی په جواب کي ورته ووایي ماکان ينبغي لنا آه چي مونږ غیر له تا څخه بل معبود نه وایو او نه یې عبادت کوو، نو حاصل د پوښتني دادی چي دا جواب خو د سوال سره برابر او دفع د هغه نه په کېږي؟

**خواب**: دفع د سوال په طريق برهاني سره وکړه سوه يعني څوک چي په خپله د من دون الله عبادت نه کوي، نو غیر به څرنګه په عبادت د غير الله امر کوي چي عبارت ددوی د خپلو ځانو څخه دی.

وَلَكِن مَّتَّعْتَهُمْ وَآبَاءَهُمْ حَتَّىٰ نَسُوا الذِّكْرَ وَكَانُوا قَوْمًا بُورًا

يعني مونږ خو نه دي ګمراهان کړي دوی بلکي سبب د دوی دا وګرځېدی چي دوی ته تا نعمتونه ګوناګون ورکړي وه او طويل عمرونه دي ورکړي وه تاچي دوی حق د هغو نعمتو ادا کړي او د هغو شکر ووایي لکن دوی په شهواتو کي غرق سوه.

تردي اندازې پوري په شهواتو نفسیه وو کي غرق سوه چي ستا ذکر او شکر يې هېر کړی يعني ځندي غافله سوه او نعمتونه ستا چي وسیله د هدایت او ایمان وه دوی ته سبب د ضلال او کفر وګرځېدی (وکانوا قوما بورا) ای صاروا بسبب اختيارهم الضلال على الهدى يو قوم هالکين په هلاک معنوي سره چي کفر دی.

**فائده**: بور جمع د بائر ده په معنی د هالک.

كَذَّبُوكُم بِمَا تَقُولُونَ فَمَا تَسْتَطِيعُونَ صَرْفًا وَلَا نَصْرًا

يعني خدای ﷻ و عابدينو ته وايي چي په تحقيق سره تکذيب وکړی ستاسو د معبودينو ايها الكفرة.

**پوه سه**: چي کلمه د با، په معنی د في ده او کلمه د ما مصدریه ده ای في قولكم انهم آلهة وانهم امرونا بذالك الكفر.

(فلا تستطيعون صرفا) نو تاسي طاقت نه لرئ يعني اې هغه کسانو چي خدای ﷻ ته مو شرکاء وويل دفع د عذاب د خپلو ځانو بوجه من الوجوه لا بالذات ولا بالواسطة او نه کومک يو قسم کومک در سره کېږي يعني نه د ځان له خوا او نه د بل چا د خوا يعني هغه کسان چي تاسي یې عبادت کاوه او سره ددې چي تاسي په دنيا کي دا ويل چي دا زمونږ معبودين زمونږ کومک کوي او زمونږ څخه به عذاب دفع کړي.

وَمَنْ يَظْلِمْ مِّنْكُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا كَبِيرًا ﴿١٩﴾

او هر څوک چې ظلم یعنې پر ځان له تاسې ځخه وکړي ایها المکلفون. په ده به وڅیښو یعنې ده ته په ورسوو عذاب لوی چې عبارت له دخول ځخه د نار دی او خلود فیها دی.

**پوه سه:** چې مراد له ظلم ځخه شرک دی بقرینۃ مابعده. له مابعد ځخه مراد د نذقه الخ دی. ولي عذاب کبیر نه وي مګر پر ظلم کبیر الذي هو الشرک.

**شان نزول:** کفارو به ویل مالهذا الرسول یأکل الطعام ویمشي في الاسواق کمامر خدای ﷻ په دې آیت جواب ورکړی.

وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ الطَّعَامَ

او مو نه دي استولي هیڅ څوک له رسولانو ځخه مګر په داسې ډول چې هغه رسول به ډو ډی خوړل لکه نورو خلکو چې به خوړل.

وَيَمْشُونَ فِي الْأَسْوَاقِ ۗ وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً

او په بازارو کې به ګرځېدل له پاره د طلب د معاش. نو دا خورک د طعام یا مشي بالاسواق خو ددوی د رسالت سره منافي نه ؤ. نو ستا د رسالت سره هم منافي نه دی کما زعم قومک.

او مو ګرځولي بعض ستاسې یعنې یا ایها الناس د بل بعض لپاره فتنة یعنې امتحان او ابتلاء. مثلاً امتحان د فقراء په اغنیاؤ سره دی چې فقیر پر خپل فقر او مسکنت صبر کولای سي او که نه وبالعکس یعنې چې غني د خپلي غنی شکر ویلای سي او که نه. والمرسلین[۴] بالمرسل الیهم چې رسولان پر اذیت او عداوت صبر کوي که نه. او د رنځورانو امتحان په جوړانو سره دی یعنې ناجوړي پر خپلي ناجوړي صبر کولای سي که نه. وبالعکس یعنې د جوړانو امتحان په بیمارانو سره دی چې جوړ د خپل صحت او عافیت شکر اداء کوي او که نه. والاسافل کښته رتبه په عالي رتبه سره امتحان کېږي چې دا سافل الرتبة پر خپله رتبه صبر کوي او که د عالي الرتبة سره حسد کوي وبالعکس چې عالي الرتبة زور او ظلم کوي او که نه. والرعایا بالسلاطین یعنې دوی و هغو ته بغاوت کوي او که یې حکم مني او د پندو

خدای ﷻ امتحان په بصیر سره کوي چې دی پر خپل ړوند والي صبر کوي او کدنه، وبالعکس لاجل شکر البصیر علی بصارته، والضعفاء چې په بدن ضعیفه وي په هغو سره امتحان کوي چې ابدان یې قوي وي، او امام واسطي رح وایي ماوجد موجود الا لفتنة یعني د ابتلاء لپاره وما فقد مفقود الا لفتنة.

أَتَصْبِرُونَ وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا ﴿٢٠﴾

(اتصبرون) غایة للجعل المذکور ای لنعلم تصبرون وفیه حث علی الصبر وفي عکسه حث علی الشکر (وکان ربک بصیرًا) او خدای ﷻ خبر دی په من یصبر او یجزع وفي العکس، خدای ﷻ چې څوک شکر د نعمت وایي او کفران کوي او شهوت پرستي کوي، اصلاً په دې آیتو تسلي و علیه الصلوة والسلام علی ماقالوا في حقه من انه ساحر، او شاعر او مجنون الی غیر ذالک، شیخ عطار رح وایي:

مگر دیوانه شوریده میخاست ........ برهنه آمد زحق کرباس میخواست
که الهی پیرهن د رتن ندارم ........ وگر تو صبر داری من ندارم
خطاب آمد ان بی خویشتن را ........ که کرباس میدهم اما کفن را
زبان بکشان آن مجنون مفطر ........ که من دانم ترا ای بنده پرور
که تا اول نمیرد مرد عاجز ........ تو ندهی هیچ کرباسش هرگز
بباید مرد اول مفلس عور ........ که تا کرباس یابد اندر گور

**درویش وایي:** چې الحمد والمنة والصلوة والسلام علی خیر البریة وعلی آله وصحبه الکملة قد وفقني الله لتفسیر الجزء (۱۸) وقت العشاء یوم السبت (۴) تخمینًا من شهر ذی قعدة الحرام سنه (۱۴۳۰) ه ق، ارجوا من الله القادر المتعال ان یوفقني لتفسیر بقیة اجزاء القرآن الکریم انه تعالی علی کل شئ قدیر وبالاجابة جدیر.

تروم العز ثم تنام لیلاً ........ ومن طلب العلی سهر اللیالي
بقدر الکد تکتسب المعالي ........ یغوص البحر من طلب اللآلي
که فاسق یم که فاجر یم ........ پر تفسیر باندي مین یم

روز محشر هر که آید تصویر جانان دربغل
من نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن دربغل

# د تفسیر ایوبي د مضامینو فهرست


| شمېر | مضمون | مخ | شمېر | مضمون | مخ |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | سریزه | ۳ | ۲۴ | فاذکروا اسم الله علیه | ۲۰۲ |
| ۲ | ښهانه فائده | ۱۱ | ۲۵ | افلم یسیروا في الارض | ۲۱۳ |
| ۳ | د ام اتخذوا آلهة تفسیر | ۲۵ | ۲۶ | نکته | ۲۱۵ |
| ۴ | سوال او ځواب | ۳۴ | ۲۷ | درویش وایي | ۲۲۵ |
| ۵ | خلق الانسان من عجل | ۴۳ | ۲۸ | الفائدة الموعودة | ۲۳۰ |
| ۶ | ونضع الموازین القسط | ۵۲ | ۲۹ | وجاهدوا في الله حق جهاده | ۲۴۷ |
| ۷ | حکایت | ۶۹ | ۳۰ | د اتلسمي پارې پیل | ۲۵۲ |
| ۸ | د ابراهیم [ع] مختصره قصه | ۷۱ | ۳۱ | حکایت | ۲۵۶ |
| ۹ | درواېش وایي | ۸۴ | ۳۲ | درویش وایي | ۲۵۸ |
| ۱۰ | تفریع | ۹۱ | ۳۳ | ثم جعلنا نطفة | ۲۶۸ |
| ۱۱ | وایوب اذ نادی ربه | ۹۷ | ۳۴ | یو دقیق سوال | ۲۷۲ |


Scanned by CamScanner

الحمد لله زموږ اداري ته دا ویاړ ور په برخه دی چي د دین د شعبې د هر فن کتاب یې وپښتو ژبي ته ژباړلی دی، لکه څرنګه چي زموږ اداري څو کاله دمخه یو کتاب په نامه د "تعلیم العقائد" له اردو ژبې څخه وپښتو ته وژباړی چي الحمد لله ډېر مقبول وګرځېدی، لکن چونکه هغه کتاب د ابتدائي طالبانو لپاره و، نو اوس زموږ اداري د عقائدو په اړه یو بل کتاب د جناب قاري محمد فضل الحق حقاني په خوږه پښتو سره ژباړلی دی ان شاء الله ډېر ژر به منظر عام ته راسي.

# عقائد الاسلام

چي د جناب مولانا محمد ادریس کاندهلوي صاحب تصنیف دی چي دا کتاب د اهل السنة والجماعة د عقائدو ویندویه دی چي د باطلو فرقو نښاندهي هم پکښي ده.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

مکتبة القراءات والتجوید

کاسي روډ کوټه

د سرور کائنات فخر موجودات سردار کل عالم خاتم النبیین حضرت محمد ﷺ او دده د خوږو ملګرو مبارکانو صحابه کرامو ﷺ مبارک ژوند و هر مسلمان ته بلکې و هر نوع انسان ته قدم پر قدم د نېکبختۍ زېرې ورکوي. کوم څوک چې ددوی مبارکانو پر لار او نقش قدم باندې روان سو، بس هم دغه انسان کامیابي پیدا کړه. د مکې تر ټولو لوی سردار ابوجهل ددوی له لارې څخه سرغړونه وکړه د دوارو جهانو ذلت وربه برخه سو. یوه حبشي غلام ددوی پیروي وکړه په دې دنیا کې و هغه ته موږ حضرت بلال ؓ وایو او د هغه جهان نېک بختي خو یې په برخه ده چې ده.

نو ددې مبارکو هستیو د ژوندانه په اړه او د دین لپاره ددوی د خدمت، ترخې او خوږې، تکالیفو او قربانیو به باره کې موږ د حضرت مولانا محمد یوسف الکاندهلوي ؒ کتاب حیاة الصحابة و خوږې کندهارۍ پښتو ته راژباړلی دی، او و چاپ ته رسېدلی دی.

# حیاة الصحابة

په دې کتاب کې د مبارکانو صحابه کرامو ﷺ د ژوندانه ټول حالات د ټولو غزواتو پوره احوال او د خلفاء راشدینو د خلافت ټوله احوال موجود دي، او ددې تر څنګ به نور ډېر څه تاسي د کتاب د کتلو په وخت وګورئ دا تاسي دا یې کتاب.

**مکتبة القراءت والتجوید**

کاسي روډ کوټه بلوچستان

تفسیر ایوبي حنفي۱۲ ټوک

د نصیراحمد احمدي لـخوا

سکین او pdf سـو.

تاریخ. ۲۶-۱۰-۱۳۹۸

واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعـا محـتـاج احـمـدي!